مکمل او مدلل
د زکوٰة مسئلې
د قرآن او سنّت په رڼا کښې
مؤلف:
مولانا محمد رفعت قاسمی
مدرس دار العلوم دیوبند
پښتو ژباړه:
عبدالملک (حصیف)
خپرونکي
مکتبهٔ رشیدیه
سرکی روډ کوټه، فون: ٢٦٦٢٢٦٣
www.taleemulislam-radio.com

مکمل اومدلل

# دزکوة مسئلې

## دقرآن اواحادیثو په رڼا کې

مؤلف

ددیوبند ددارالعلوم مدرس مولانا **رفعت** (قاسمی )

پښتو ترجمه **عبدالملک** (حصیف )

**خپرونکي**

رشیدیه کتابخانه سرکي روډ کوټه

# دکتاب پېژندنه


دکتاب نوم دزکوة مسئلې

مؤلف مولانارفعت قاسمی

پښتوژباړه عبدالملک حصیف افغاني

دکمپوزاوترجمې چارې: دنورالقرآن اداري دکمپوزاوترجمې څانګه

تصحیح اوډیزائن: دهمدې اداري خادم ابوخالدمولوي عبدالاحدمجروح

کمپوزر مولوي ثمرګل حنفي وردګ

همکار عبدالغفورمظلوم یار

خپرونکي رشیدیه کتابخانه سرکي روډ کوټه

دچاپ کال ۲۰۰۷ / دمارچ میاشت

دچاپ ځای لاهور

دچاپ شمیر ۱۵۰۰

چاپونکي محمد ساجد - دموبائل شمیره / ۰۳۳۳۷۸۲۵۴۸۴

عنوان | مخ

عنوان (ب) مخ

عنوان — مخ

عنوان (ګ) مخ

عنوان (ل) مخ

د عشر واجبېدلو دليل

| عنوان | (ن) | مخ |
| --- | --- | --- |

عنوان
مخ

عنوان (ف) مخ

عنوان (ص) مخ

عنوان (ق) مخ

عنوان (ر) مخ

عنوان (ش)

مخ

**ضروري يادونه :**

یواځې لوی خدای ﷻ هغه ذات دی چې ،
ټول کارونه ئې په پوره معنی بشپړ او
مکمل دي خوانسان هغه ناقص او بې توانه
موجود دی چې هیڅ یو کار ئې هم بې
تمګړتیا نه وي.
ګرانو لوستونکو ! که تاسو ته دلیکنې ،
تصحیح ، چاپ، جلد سازي او دارنګه په
هره برخه کې کومه غلطي په نظر درغله
دمهربانی او بشري تقاضا له مخې یې مونږ
ته زمونږ په نمبر یاادرس خبر راکړی. ترڅو
په دوهم چاپ کښې ئې اصلاح کړو. اوتاسو
ته لوی خدای ﷻ اجر اوثواب درکړي.

د مکتبه رشیدیه سرکي روډ کوټه لخوا
فون: 081-266223
موبائیل: 0333-7825484

## دژباړن سریزه

بسم الله الرحمن الرحیم:

**الحمدلله المنزه عن الصاحبی والاولاد.خالق المائع والجماد احمدحمداً یفوق الاعداد واصلي علی رسوله المبعوث الی جمیع العبادوعلی ال ومن تبعهم الی یوم المیعاد .**

شایدزه دیوبنده په حیث دخپل خدای جل جلاله ددغه رنګه نعمتونو دشکراداء کولوتوان ونه لرم،اودهغه داداء دپاره داسي الفاظ ونه لرم چي ورباندي هغه رنګه شکراداء کړم څنګه چي حق دی؛خوداچي دقدرت په اندازه عمل دانسان مکلفیت دی،نوزه دخدای جل جلاله ډیرشکراداء کوم اودهغه حمدوایم چي زمادپه شان بي اهلیته چاته ئي دداسي یوکتاب دژباړي توفیق راکړچي دډیري مُدي راپه دیخوا دپښتوژبودپاره یوه داسي اړتیاوه چي هریوه ئي شیبه په شیبه دوررسیدلولارڅارله.

نوموړی کتاب (چي دهند میشتي مدرسي (دارالعلوم دیوبند ) تکړه استادمولنامفتی قاري محمدرفعت قاسمي صاحب ئي دراټولولو ،ترتیب اوخیړني زیاراېستلی اوصرف دخپلومسلمانوورونو دلارښووني اوپوهاوي دپاره ئي مخلصانه عرق ریزي کړي ده ) دوخت ډیروهغوپوښتنوته چي له انسان سره دزکوة اوصدقوپه اړوند پیداکیږي په خپله زرینه علمي ځولۍ کي ځوابونه راوړي دي. ډیرداسي څه شته چي ددي کتاب دلوړارزښت اوپه عواماوخواصوکي دمقبولیت شاهدي ورکوي چي په مثال راوړلوکي ئي په اردوژبه کي دځلورو لویوچاپونکوادارورقابت یادولای شو. دقاسمي صاحب دي زیارچي له هري مسئلي سره ئي دمشهوروعلماؤ رحمة الله علیهم دتصانیفو(فتاوی ؤ) حوالي راوړي دي دکتاب شتمني له بي باورۍ څخه ژغورلي ده

او هرهغه چاد پاره ئي چي له شک سره مخ کيږي لوړ مراجع په ګوته کړي دي. د دغه کتاب په اردو ژبه چاپ شوي جلدونه له ځان سره دوخت د مشهورو څيرولکه د دار العلوم د مفتي اعظم فقيه العصر مولانا محمود حسن (قدس الله سراه) د دار العلوم د مشر مولانا مفتي نظام الدين (غفر الله له ) او د مولانا مفتي ظفير الدين صاحب زړه راښکونکي تقريظونه هم لري چي پکښي د قاسمي صاحب په کارونو باور څرګند شوی او د هغه د خدمتونو په لوړ کچ ستاينه شوي؛ خو دلته د دوئ ياد لړله دي خاطره په څوتورو کي وشو چي د کتاب د حجمي زيادت مخنوی وشي. بايد ووايم چي که څه هم د زکوة او صدقو مسئلي په نورو کتابونو کي هم په زيات شمير موندلای شو، خو له دي امله چي د پښتني ټولني په وګړو کي د چاد پاره دا ګرانه، او چاد پاره بي امکانه ده چي د بيلا بيلو ژبو د کتابونو له خورو ، ورو مضامينو څخه خپل هدف ترلاسه کړي د دغه کتاب د پښتو ته ژباړلو اقدام وشو ترڅو دوئ د زکوة د هري پوښتني د ځواب د پاره دغه يو کتاب ولټوي چي د ژباړلو باړئي د(نور القرآن علمي اداري) له خوا څخه زما په اوږو واچول شو؛ لهذا امانه يو دا چي په دغه ترجمه کي، بلکه په ټولو کي له خپل هر اړخيځ توان څخه کار اخيستی او هره لحظه مي په دي اړوند فکر کړی، خو بيا هم له هغه يقين څخه ډير ليري والی احساسوم چي زما د کار د پوره والي او سموالي په اړه به ترلاسه کيږي ،ځکه چي انسان او خطأ سره دوه نه بيليدونکي شيان دي. نو ځکه په دي اميديم چي که قدرمن نظر ته مو په دغه کتاب کي څه زيادت يا کموالی درشي، نو د اسلامي مسئوليت له مخي مو نږو ر څخه خبر کړئ.

او په اخير کي اړه بولم چي له دي بهير سره د ډاکټر **سيف الرحمن** صاحب له هغو پرله پسي مرستو څخه مننه وکړم چي هيرول به ئي زما د پاره ناشکري وي.

## دنورالقران اداري لخوا څوګرښې

له لوى خداى جل جلاله څخه زيات راضي يم چي دقاسمي صاحب داتلسورسالود پښتوژباړي لړۍ پوره كيدونكي ده مايقيناً دانساني توان له مخي داژباړه دتصحيح په نيت په كمپيوتر كي تكي په تكي مطالعه كړه، خوبياهم چاچي داكار كړي وي .هغه ته ښه معلوميږي چي دهرڅومره كوشش باوجود غلطياني پاته كيږي ، څكه پرماداسي واقعه هم راغلي چي تول كتاب مي تصحيح كړي خوپه غټ روښانه عنوان كي غلطي راڅخه پاته شوي ده ،نوڅرنګه چي مخكي ژباړن (حصيف صاحب ) داعذر وړاندي كړي ،زه هم په څو ،څوځله داعذروايم اوغوښتنه مي هماغه غوښتنه ده چي موږ ته خبرراكړئ ترڅوپه دوهم چاپ كي تكرارنه شي ،اوبله خبره داهم كوم چي داكتاب يوه نوي ترجمه ده چي په لمړي ځل دپښتولوستونكوورونواوخويندومخته وړاندي كيږي ،نوزماله تولوكتونكوڅخه داهيله ده چي يوائي په دي غاړه ونه باسي چي دكتاب سراوپاي اوڅه برخه فهرس دمصنف اوژباړن نوم وګوري اوبس. څكه په دي كتاب كي رشتياهم داسي جزيي (وړي وړي مسئلي ) اوجنجالي مسئلي اونادري مسئلي راغلي چي په لويو كتابوكي به ئي موږ ډير په ګرانه پيداكوواوځان پري پوه كوومثلاً سيدانوته دزكوة په اړه ،دګيهو زكوة ، دمعدنونوزكوة ،دمدرسوداستازيو وكالت ، په ډاكخانه كي زكوة ليږل ، اوداسي نورچي په رشتياهم ديوه لوي عالم لپاره په لويو عربي فتاواوكي ئي پيداكول اوحكم راايستل يوګران كار دي.نوره خبره نه اوږدوم صرف يوزيري لاهم دركوم چي **دشرك اوبدعت** رساله دملاقات اداب رساله دسفرمسائل داوداسه مسائل داعتكاف مسائل ددي لړۍ اخيري رسالي دي ،چي دلوي خداي په مرسته به په ډير لندوخت كي له چاپه راووزي - ستاسودښي دعااوزياتومرستوپه هيله:-

*دنورالقرآن اداري خادم*

ابوخالد مولوي عبدالاحد(مجروح )

۲۰۰۷ميلادي كال دجنوري دمياشتي( ۲۵ )مه

دهجرت مينه پښتون اباد:كوټه

## اهداء:

دتولو هغو مؤمنانو په نامه چي خاص دخدای جل جلاله دپاره دهغه له محتاجو او بي وسه بندګانو سره په خپلو زکاتونو، قربانیو او صدقو مرسته کوي؛ او دهغو سپیڅلیو په نامه چي ترخپل سپیڅلي رب جل جلاله خپل ارمانونه او ځانونه قربانوي. (عبدالملک حصیف)

## اعوذبالله من الشيطن الرجيم

## بسم الله الرحمن الرحيم

وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ٣٤ يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَـٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ

**لنډ تفسیر**: یعنې کوم خلک چې سره او سپین زر جمعه کوي. او هغه د پاک خدای ﷻ په لاره کې نه لګوي ، نو هغه ته د دردناک عذاب زېرى ورکړئ. د ولاینفقونها په لفظ کې دېته اشاره شوې ده چې کوم خلک چې یوه ضروري اندازه د دنیاد الله ﷻ په لاره کې خرڅوي ، نو بیا هغه پاته راټول کړل شوى مال د هغه لپاره په ضرر کې نه دى. پخپله حضور صلى الله علیه وسلم په یوحدیث شریف کې فرمایلي دي چې د کوم مال چې زکوة وایستل شي ، نو هغه په (ماکنزتم) کې داخل نه دى ، (ابوداؤد ، احمد وغیره) څرنګه چې څرګنده شوه چې د زکوة ورکولو ورستو چې کوم مال پاته کیږي د هغه جمعه کول ګناه نه دي ، همدغه مسلک د جمهورو فقهاؤهم دي.

په ایت شریف کې ددغه دردناک عذاب تفصیل په لاندې ډول راغلى دى: يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَـٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ

یعني زکوة نه ورکونکو ته به د قیامت په ورځ دا دردناک عذاب وي چې کله د هغو راټول کړل شوي سره او سپین زر د دوزخ په اور باندې ګرم کړل شي او بیا ورباندې د هغو تندي (تندې) څنګونه او شاګاني وداغلي شي او هغوته د ژبنۍ سزا ورکولو په ډول وویل شي چې دا

هغه څه دي چې تاسو جمعه کړي ؤ د خپلو ځانونو لپاره ، نو خپله راټوله شوې شتمني وڅکئ - له دې څخه معلومېږي چې جزاء د عمل عين عمل دی - کومه شتمني چې په ناروا ډول تر لاسه شوې وه ، او بله په سم ډول تر لاسه شوې وه خو زکوة ورڅخه نه ؤ اداء شوی ، نو پخپله هغه سرمايه د هغو خلکو لپاره عذاب وګرزېد له.
په دغه ايت شريف کې د داغ لګولو لپاره د تندو ، څنګونو او شاګانو ذکر شوی دی - د دې دوې وجې کېدای شي . لومړی دا چې له دې څخه مراد ټول بدن دی . دوهم دا چې دغو ځايونو ته شايد په دې وجه خاص والی ورکړل شوی وي چې هغه بخيل انسان ته ( چې خپل مال د الله ﷻ په لاره کې خرڅ کول نه غواړي چې کله يو غريب يا زکوة غوښتونکی راشي ، نو تر ټولو ړومبی د هغه په تندي کې د خفګان علامې ښکارېږي ، بيا له هغه څخه د نظر اړولو لپاره ښی او کيڼ اړخ بدلوي رابدلي ، خو که سربېره په هغه هم سوال کونکی لاړ نشي ، نو بيا ورته شا ورګرزوي نو ځکه تندي ، څنګونه او شاد دغه عذاب لپاره خاص کړل شوي دي . (معارف القرآن ۴ جلد ۳۲۳ مخ)

## زکوة :

زکوة په لغت کې پاکي ، برکت او زيادت ته ويل کېږي ا د شريعت په اصطلاح زکوة د خپل مال د هغې ټاکلي اندازې چې شريعت مقرره کړېده بل مستحق مالک ګرزولو ته ويل کېږي ، د زکوة د لغوي او اصطلاحي معنی له پوهاوي وروستو بايد په دې هم پوه شو چې دغه کار ( يعنې له خپل مال څخه د شرعي ټاکل شوې اندازې بل څوک چې مستحق وي مالک جوړول ) د مال هغه برخه چې له اصلي مالک سره

پاته کېږي پاکوي. په هغې کې د پاک خدای ﷻ له طرفه برکت اچول کېږي ، او د هغه دغه مال یودا نه چې په دنیاکې ډېرېږي بلکه پاک خدای ﷻ د هغه د اخیرت دورخې په ثوابوکې هم زیادت کوي. او دهغه مال خاوند له ګناهونو او نورو بدو کارولکه بخیلتوب او نورو څخه پاکوي ، نو ځکه دغه کارته زکوة ویل کېږي ، (( زکوة )) ته صدقه هم ځکه ویله کېږی چې دا کار د خپل مال د یوې برخې دورکونکي د ایماني دعوي د سمون او رښتنولی دلیل دي.
(مظاهر حق جدید ج۲ - ۴۸۳مخ - کتاب الفقه - ۱ج ۹۵۸مخ)

## د زکوة تعریف او تفسیر:

په شریعت کې له زکوة څخه مطلب دا اخیستل کېږي چې ( یوداسې غریب او محتاج څوک د خپل مال د یوې تاکل شوې اندازې مالک ګرزول چې نه د هاشمي کونی ( یعنې سید )وي ، او نه له شرعي پلوه د هغه غلام وي ، او نه تر د غي ورکړي له مخه کوم دنیاوي سازشونه او ګټې وي ، او نه دا د څه شي په بدله کي وي . (عالمګیري۴ج۳مخ بحواله تبین الحقائق)

**مسئله** : مسلمان مستحق به په داسې ډول د زکوة د مال مالک ګرزوي چې د زکوة ورکونکي هر ډول ګټه اخیستنه له هغه ماله څخه قطعه شي ، دا وجه ده چې نه زکوة ورکونکی زکوة خپل اصل لکه ، پلار ، مور ، نیکه او انا ته ورکولای شي ، او نه یې خپلوفرعو لکه زوی ،لور لمسي او لمسی ته ورکولای شي - ځکه چې هغوته په ورکولو سره یې ګټه بېرته زکوة ورکونکي ته رسېږي . (درمختار۲ج۲-مخ)

## زکوة او د هغه ثبوت:

زکوة د اسلام له ارکانو څخه پنځم رکن ، یا د اسلام له بناؤ څخه پنځمه بناء ده چې په هر هغه چا باندي فرض عین دی چې د زکوة لپاره

تاکل شوي شرائط یې پوره کړي وي – (د زکوة ټول شرطونه او معلومات په راتلونکو مخونو کې کتلای شئ)
زکوة په هجري سنه (۲) کې فرض شوی دي چې په اسلام کې د هغه فرض کېدل په هرحال ټولوته معلوم دي د هغه فرضیت له کتاب، سنت او اجماع څخه ثابت دي. پاک خدای ﷻ په خپل سپېڅلي کتاب کې د هغه په اړوند فرمایي (واتوالزکوة) یعنې زکوة اداء کړئ–
او په حدیثو کې هم د زکوة د ګڼو حکمونو ثبوت شته. چې له هغو څخه د سرور کائینات دغه مبارک ارشاد یادولای شو چې د اسلام بنیاد پر پنځو شیانو ولاړ دی، (چې له هغو پنځو څخه یو زکوة دي) همدا رنګه دغه حدیث هم دی چې امام ترمذي د سلیم بن عامر رضی الله تعالی عنه په روایت راوړی دی هغه وایي چې ((ماله ابوامامه رضی الله تعالی عنه څخه واربدل چې هغه وویل چې ما د حضور صلی الله علیه وسلم د حجة الوداع تقریر اورېدلی دي چې پکښې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي چې له الله ﷻ څخهووېرېږئ خپل پنځه وخته لمونځ کوئ. کله چې د رمضان المبارک میاشت راشي نو روژه نیسئ، د خپل مال څخه زکوة اداء کوئ او د خپل مشر فرمانبرداري کوئ، نو تاسو به جنت ته داخل شئ)) سربېره پر دې نور هم د دغه مضمون لرونکي حدیثونه شته – پاته شوه د اجماع خبره، دغه ټول امت په دې خبره هم غږی دی چې زکوة د اسلام له پنځو بناء ګانو څخه یوه بناء ده، چې د خاصو شرائطو لرونکی دي.
(کتاب الفقه ۱ ج ۸۵۹ مخ)

**مسئله** : درمختار او شامي نومي کتابونه ليکي چې په قرآن کريم کې دزکوة حکم له لمانځه سره (۳۲) ځايه راغلی دي – او دا چې بغير له لمانځه د زکوة يادونه ځو ځايه شوې ده ، دايې نه دي ليکلي.

(فتاوي دارالعلوم ۶ج ۱۴مخ)

## څه وخت د زکوة په حکمونو پوهاوی فرض دی ؟

**مسئله** : انسان چې تر څه وخته د زکوة د نصاب خاوند نه وي ګرزېدلی ( يعنې اوه نيمې ۷ تولې سره زر چې ۸۷ ګرامه او ۴۷۹ ملي ګرامه کېږي ، اويا ۵۲ دوه پنځوس تولې سپين زر چې ۶۱۲ ګرامه او ۳۵ ملی ګرامه کېږي او يا د دغو د قيمت په اندازه نغدي روپۍ او يا د تجارت يا د بل څه سامان خاوند نه وي ) نوتر هغه ورباندې په عملي ډول د زکوة حکمونه زده کول فرض او ضروري نه دي. خو د زکوة د فرضيت عقيده لرل په هر حال ورباندې فرض دي – او کله چې د دومره شتو خاوند شو چې زکوة ورباندې لازمېدو ، نو هغه وخت زکوة عملي زدکول ورباندې فرض شو – ( په هغه وخت کې د حکمونو زده کولو ) قيد ځکه ولګول شو چې د عقيدې تر حده خو هر چاته د زکوة د فرضيت اقرار ضروري دی.

## زکوة څه وخت فرض شو ؟

د احاديثو او نبيانو شخه دا ځرګندېږي ، او د اسلام د پنځو بناء ګانو د تاريخ په تشريح کې د دې تائيد دي چې تر ټولو له مخه پنځه وخته لمونځ د معراج په مبارکه شپه پر مسلمانانو فرض شو . بيا په هجري کال ـ۲ـ کې په مدينه منوره کې روژه فرض شوه ، او تر ځنګ يې سرسايه ه فرض شوه ، تر ځوروژه لرونکی له چټياتو کارو او بې ځايه

څېرو څخه پاک شي ، او د هغې په سبب د اختر په ورځ د مسکینانو سره مرسته وشي. وروستوله دې څخه د نصاب او اندازو زکوة فرض شو . مګر په دې بندې کوم قطعي دلیل نه دی چې د زکوة په اړوند دغه حدود (limitatid ns) په کوم کال کې ټاکل شوي دي.
(فقه الزکوة۱ج-۱۰۱مخ) (و فتاوي دارالعلوم دیوبند ۲ج ۴۱ مخ)

د زکوة په فرضیت کې صحیح قول دا دی چې د هغه د امر نزول په اولینو حالاتو د اسلام کې شوی ؤ ، څرنګه چې د دې لپاره دلیل د تفسیر ابن کثیر امام د سورة مزمل دغه ایت (وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ) راوړی . ځکه چې دغه سورت د وحی د پیل له بالکل لومړنیو سورتونو څخه دي. په هغه کې د لمانځه تر څنګ د زکوة حکم هم دی البته د حدیثو له روایتو څخه داسې معلومېږي چې د اسلام په پیل کې د زکوة لپاره خاص نصاب یا خاصه اندازه ټاکل شوې نه وه ، بلکه هر هغه څه چې د یو مسلمان له خپلو ضرورتو څخه به زیات شول هغه به یې ټول د پاک خدای ﷻ په لاره کې لګول. د نصابونو ټاکل او زکوة د اندازې بیان له هجرت څخه وروستو په مدینه منوره کې شوی دی. او بیا د زکوة او صدقو د راکړې ورکړې نظام له حکمو سره د مکې له فتحې وروستو عملي شوي دي په دغه ایت کې د اصحابانو او تابعینو په اجماع د دغې واجبې صدقې د لګولو د ځای بیان دی ، کوم چې د لمانځه په څېر په مسلمانانو باندې فرض دي ځکه چې کوم ځایونه د لګښت چې په دغه ایت کې ښودل شوي دي ، هغه د فرضي صدقې د لګښت ځایونه دي . د روایاتو د صراحت په بناء په نفلي صدقو کې د ېره فراخي شته ، هغه په دغو اتو ځایونو د لګښت باندې راکوتاه شوي نه دي — (معارف القرآن ۴ ج ۳۹۴ خ)

## د زکوة حکم په پخوانیوشریعتونو کي

د زکوة د دغي لوړ اهمیت او ګټورتیا په وجه د هغه حکم د پخوانو نبیانو په شریعتو کي هم د لمانځه سره سم ؤ. په سورت انبیاء کې د حضرت ابراهیم او د هغه د زوی (حضرت اسحق) او دهغه د زوی (حضرت یعقوب علیهم السلام) د یادوني تر څنګ دا رنګه ارشاد مبارک فرمایل شوی دي (وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَإِقَامَ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءَ الزَّكَاةِ وَكَانُوا لَنَا عَابِدِينَ ۷۳)

**ترجمه**: اوولېږو مونږ دوی ته حکم د نیکي کولو (په خاص ډول) د لمانځه درولو اوزکوة ورکولو.

همدا رنګه په سورت مریم کې د حضرت اسماعیل (علیه السلام) په اړوند ارشاد مبارک دي (وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ) او ؤدی چې امر یې کړی ؤ خپل اهل ته په لمانځه او زکوة سره) د قرآن کریم له دغه ایت نه څرګندېږي چې لمونځ او زکوة د همېشه لپاره د اسماني شریعتونو خاص ارکان او شعائر پاته شوي دي. خو د هغود حدودو، ټاکنو او تفصیلي حکونو تر مېنځ فرق بیابله خبره ده -او دا رنګه فرق زمونږ د شریعت په اولینو او اخېرینو حالاتو کې هم ؤ د مثال په ډول د اسلام په پیل کې به هر فرض لمونځ دوه رکعته ؤ، خو وروستو بیا له سهاره بغیر د نوروټولو وختونو رکعتونه زیات شول. دغه رنګه تر هجرت له مخه په مکه مکرمه کې د قیام په زمانه کي هم د زکوة حکم ؤ چې د سورت نمل، سورة لقمان او سورة مؤمن په ابتدایي ایتو کي د ایمان د خاوندانو د لازمي صفتونو په ډول د لمانځه درولو او زکوة ورکولو یا دونه شوې ده. (معارف الحدیث. ۴ ج ۲۳ مخ)

## د مکي مکرمې په دور کې د زکوة مطلب

مګر د مکې مکرمې په دور کې د زکوة مطلب صرف داؤ چې د الله په محتاجو بندګانو باندې او دخير په نورو کارونو خپله ګټه ولګوله شي. د زکوة د نظام تفصيلي احکام هغه وخت نه ؤ راغلي، وروستو له هجرته په مدينه منوره کې په دغه دول زکوة راڅرګند شو ;نو کومو تاريخ ليکونکو او مصنفينو چې دا ليکلي دي چې د زکوة حکم تر هجرت دوه کاله وروستو، او په دغو دؤکالو کې راغلی دي د دې مطلب به غالباً دا وي چې د زکوة حدود ټاکني او تفصيلي حکمونه په دغه وخت کې راغلي دي. کنه دزکوة مطلق حکم خو په پوره يقين سره د اسلام په لومړنی دوره کې تر هجرت پوره له مخه راغلي ؤ، مګر د زکوة د نظام تفصيلي مسئلې، حدود او ټاکني تر هجرت وروستو واقع شوې او په مرکزي دول خود راکړې ورکړې نظام په هجري کال (۸) کې قائم شو – ( معارف الحديث ۴ج ۲۴ مخ ) د اسلامي قانون په تاريخ کې مشهوره خبره دا ده چې زکوة په مدينه منوره کې فرض شوی دي نو له دې خاطره دا پوښتنه راپورته کېږي چې دغه خبره له هغو سورتونو سره چې په مکه کې نازل شوي دي څومره هم غږې ده .د دې پوښتنې ځواب داسې دی چې دزکوة يادونه چې کومه په مکه مکرمه کې په نازل شو سورتو کي شوي ده هغه يعينه دغه زکوة نه دي چې بيا وروستو په مدينه منوره کې فرض شوی دی چې څانله ټاکلي اندازه او معلوم حدود لري او دهغه د رايو ځای کولو او د هغه د سم لګښت ځايونو لپاره کار کونکي ولېږل شول او يومشرتابه به د هغه د نظم چاري سنبالولې د مکې مکرمې په دور

کې چې کوم زکوة ؤ هغه مطلق ؤ او پکې حدود او قیود نه ؤ او د هغه مدار ( راڅرخېدنه ) د خلکو په ایمان ، د هغو په شعور او د هغو د ورور ګښلوۍ په احساس سره وه ، او هغه وخت به له مؤمنانو سره په ښه چلند کې کله کم لګښت کېدلو او کله به زیاتـه .(فقه الزکوة ١ ج ٨٢- یوسف قرضاوي)

د مکې مکرمې په دوره کې د مسلمانانو اسلامي دعوت په انفرادي ډول ؤ او هغه د دغه دعوت په بناء له جامعې څخه پرې شوي او څانله څانله شوي ؤ ، خو کله چې مسلمانان مدینې منورې ته ورسېدل ، نو په یو تنظیم شوي ډول په ګډ صورت سره راغلل او په مدینه کې د مسلمانانو د مشرتابه تشکیل جوړ شو ، او هغوی په سر دقدرت راغلل ،نو څکه خو بیا د اسلامي اساساتو او نورو هم په نوي صورت حال کې د عاموالي او مطلقیت ځای د حدلرلو او خاصوالي صورت غوره کړ او کوم څه چې پخوا تر دې صرف د لارښوونې لپاره هدایتونه ؤ هغو د لازمیت او قانونیت ډول غوره کړ ؛ او د دغو قوانینو د اجراء لپاره له ایمان او یقین سره سره له واکدارۍ او زور څخه کار اخیستل هم یوه ناعلاجي شوه . دغه رنګه مدینې منورې ته له راتلو سره سم د زکوة ډول هم بدل شو هغه په دې سره چې شارع ( علیه السلام ) ( یعنې حضور صلی الله علیه وسلم ) د هغو مالونو حد و تاکی په کوم کې چې زکوة ورکول فرض دي ، او د هغه د فرضیت شرطونه او د هغه لازمي اندازې یې معلومې کړې ؛ د هغه د لګښت ځایونه یې په ډاګه کړل ، او د هغه ښه تنظیم او کاري دائرې لپاره یې د عمل لائحه وفرمایله.

( فقه الزکوة ١ ج ٨٢ مخ )

## د زکوة درې اړخونه

په زکوة کې د نېکۍ او ګټې درې اړخونه شته – یو دا چې په څه ډول یو مؤمن د لمانځه په قیام رکوع او سجدې سره د خپل خدای ﷻ په وړاندې د خپلې بندګۍ ، خوارې ، او عاجزې ښکارندوي په خپل وجود ، روح او ژبه سره کوي تر څو د الله ﷻ خوشحالي ، رحمت او نژدېکت حاصل کړي – په همدغه ډول د زکوة په اداء کولو سره د هغه په دربار کې خپل نذري مال په دغه غرض وړاندې کوي ، او د دې خبرې عملي ثبوت وړاندې کوي چې هغه څه چې له ما سره دي هغه زما خپل نه ، بلکه دا ټول د خدای ﷻ دي ، او په دې سره یقین هم لري. او د خدای ﷻ د رضاء او نژدیکت حاصلولو لپاره هغه قربانوي او نذرانه کوي. د عبادتونو په لړکې زکوة هغه عبادت دي ، او د دین او شریعت په خاصه اصطلاح (په عبادتونو ) کې د بنده هغو عبادتونو ته ویل کېږي له کوم نه چې خاص مقصد او موضوع د خپل خدای ﷻ په حضور کې د خپلې بندګۍ او علویت د تړاو ظهور ، او د هغه په ذریعه د الله ﷻ رحم ، مهرباني او نژدیکت پیدا کول وي –

د زکوة دوهم اړخ دا دي چې د هغه په ذریعه الله ﷻ د غریبو او بې وسه بندګانو خدمت او مرسته کېږي چه له دې پلوه زکوة د اخلاقیاتو څخه یو مهم ترین باب دي. درېیم اړخ د زکوة د ګټورتیا دا دي چې هغه د ال د محبت او دولت پرستي چې یوه ایمان وژونکې او ډېره مهلکه روحي ناورغي ده ) علاج او د هغه په سبب نفس د هغوی له ناوړه اثراتو څخه پاکېږي. (معارف الحدیث ۴ ج ۲۰ مخ)

## د زکوة یو بل مقصد

اسلام دانه غواړي چې دولت دیوې ډلې تر واک لاندې راشي یا به سوسایټي ( ټولنه ) کې کومه داسې طریقه پیداشي چې دولت په خزانو ، خزانو سره یوځای کوي بلکه اسلام د تل لپاره دولت په گردش او چلند کې غواړي ، او هغه باید د قوم او ملک په ټولو خلکو کې خپور او وېشل شوی و اوسي - همدا وجه ده چې اسلام د ورثاؤد تقسیم او اسهامو(برخو ) قانون نافذ کړی دي . او د نړۍ د نورو قومونو په څېر يې د کورنۍ د یوه نفر په واک کې نه ده وراچولې - کله چې یو څوک له دنیا نه سترگې پټې کړي ، نو د هغه دولت (شتمني ) (چې تر دغه وخته د یوفرد په لاس کې وه ) اوس په وارثانو کې د وېش له امله په څوځایو کې خپرېږي - همدا رنگه بیا په یو او بل پسې د هر وارث بیا بل وارث هم وي او دغه شتمني په پرله پسې ډول د وېشلو او خپرېدلو په حالت کې وي (حقیقت زکوة ٢٠ مخ )

## له زکوة څخه دمنکر حکم

دزکوة دغه لوړ اهمیت ته په نظرسره دفقهید علم علماؤفرمایلي دی چې له زکوة څخه اودهغه له فرضیت څخه منکر کافر دی ،اوپه پوره ډول له اسلامه وتلی دی.په دغه سلسله کي امام نووي رحمة الله علیه فرمایلي دي چي که یوداسې څوک چي په ډېرنژدې وخت کي یي ایمان راوړي ؤ ،اویاخویي ایمان پخوار اوړي ؤخوله ښهر څخه لیرې په داسې غره یاځنگل کي پیداشوي اولوی شوي وو چي هلته یي دزکوةپه اړوند معلومات نشوای ترلاسه کولای ، اوبیایي دزکوة له فرضیت څخه انکار کاوو ، اوهغه یي نه اداء کاؤ ،نوهغه ته باید لمړي

دزکوة دفرضیت وجي ، او بیا دهغه اهمیت وروښودل شي ، خو که له دې سره بیا هم پخپله وینا دانکار ولاړ ؤ ، نو په هغه دې د کفر حکم ولګول شي خو که یو څوک په مسلمانه ټولنه کې اوسېدو او د زکوة په فرضیت باندې عالم ؤ خو د دې باوجود یې نګار کاؤ ، نو دغه کافر کېږي او درباندې به د مرتد حکمونه جاري کېږي یعنې لومړی به هغه ته ویل کېږي چې له دې خبرې واوړی او توبه وکاږي ، خو که بیایې هم توبه ونه کیښله ، نو ودې وژل شي . څکه چې د زکوة د فرضیت علم لازمي دي – او بیا دهغه د علم باوجود له هغه څخه انکار کول د الله ﷻ او د هغه د استاذي (ص) تکذیب دي. (المجموع ۵ ج ۳۳۴ مخ) لنډه دا چې له زکوة څخه د منکرینو په اړوند ښکاره شرعي حکم موجود دي او اجماع هم په دغه قول سره ده (فقه الزکوة ۱ ج ۱۲۰ مخ – کتاب الفقه ۱ ج ۹۵۹ مخ).

## له زکوة نه ورکونکو سره جنګ کول :

د اسلام مبارک دین صرف په دې سره بسوالی کړی نه دی چې له زکوة نه ورکونکو څخه دي مالي تاوان واخستل شي او یادې هغوی ته تعزیري (د ترټنې )سزاګانې ورکړلي شي ؛ بلکه که یوه زورورهډله د سر غړوني په غوره کولو سره د زکوة له ورکولو څخه انکار وکړي ، نو اسلام مسلمانانو ته له هغو سره د جګړې حکم ورکړی دي . او د دغه فرض د اداء کولو لپاره یې له ځان وژلو او وینو بهولو څخه منعه نه ده کړې – او حال دا دي چې داسلام راتګ د دې لپاره دي چې د انسانانو د ژوند ساتنه پکې وشي . خو هغه وینه چې د حق ژوندي کولو پخاطر و بهېږي هغه هېڅکله بې ځایه نه ضائع کېږي – او د الله ﷻ په لاره کې قتلېدونکي د خدای ﷻ په څمکه کې د عدل راوستولو

پخاطر مړه کېدونکي کله هم نه مړه کېږي ؛ او هغه روحونه چې د الله ﷻ او دهغه د رسول (ص) د نافرماني په وجه ، او د هغود حق نه اداء کولو ، اوکړي وعدې نه پوره کولو په بناء له مینځه ځي هغه له دې وجې چې دوی هغه ساتنه چې اسلام ورته ورکړې وه د خپل بد چلند او بدي کړې لارې په وجه له مېنځه وړي. (فقه الزکوة ۱ج ۱۱۱مخ)

د بغاوت او سرغړوني په ډول له زکوة څخه انکار کونکو سره جګړه کول په صحیحو حدیثونو او د اصحابانو له اجماع څخه ثابت ده.

وروستو له وفاته د حضور (صلی الله علیه وسلم ) ، حضرت ابوبکر صدیق (رضی الله تعالی عنه ) له هغو عربو سره چې د زکوة په نه ورکولو به یې ټینګار کاؤ هم دغه کردار غوره کړ او لویو اصحابانو د هغه موقف تائید کړ او ورسره یې د زکوة نه ورکونکو په جګړه کې ګډون وکړ، تر دې چې هغه شمېر اصحابان هم په دغه جګره کې ورګډ شول چې په لومړی ځل د حضرت ابوبکر صدیق له نظر سره د جنګ په باره کې په یو نظرنه ؤ او په دغه ډول په اسلامي شریعت کې د زکوة له نه ورکونکو سره جنګ کولو یو ټولنیز ډول خپل کړ ، ځکه چې له هغو سره د جګړې کولو لپاره ده حضرت صدیق (رضی الله تعالی عنه ) ډېر دلائل راوړل ، تر څو ډېرو اصحابانو د هغه دغه نظر تائید او په هغه سره د ټولو اجماع وشوه. (المجموع ۵ج ۳۳۴ مخ)

## ولي حضرت ابوبکرصدیق له زکوة نه ورکونکوسره جنګ وکړ؟

له زکوة نه ورکونکوسره د حضرت صدیق (رضی الله تعالی عنه ) جنګ غالباً له دې پلوه ډېر ارزښتناک وي چې په انساني تاریخ کي دا لومړی ځل ؤ چې یو حکومت او مشریزه د ټولني د بې وسه وګړواو د مسکینانو او غریبانو د حقونو دورکولو لپاره جګړې کولو ته تیاره

شوې وه ، د داسې تاريخ په لمنه کې چې همېشه به د ټولني زوروري طبقې کمزوري طبقې خوړلې او حاکمان او اميران به کله د غريبانو او مسکينانو په حال پسې نه ګرځېدل. بلکه ډېر ځله به دوخت حکومت د شتمني طبقې ملاتړ کاؤ . (الاماشاء الله) (فقه الزكاة: ۱ ج ۱۱۵ مخ)

## د اسلام او د غربت د مسئلې حل :

په څه ډول چې اسلام د ناداری د مسئلې حل ، او دبې وسه ، کمزورو محتاجانو د کفالت نظام وړاندې کړی دي ، نو دهغه مثل په هېڅ بل آسماني او انساني مروجه قوانينو کي نه تر سترګو کېږي ؛ او د اسلام چې په دغه بهير کي کوم دروزني نظام او رهنمايي ورکړې ده ، او کوم قوانين او انتظامات يې ورته کړي دي او بيا يې د دغو قوانينو او انتظاماتو د اجراء او عملي کولو کومي قاعدې انسان ته ښودلې دي نو د دنيا په هېڅ بل قانون او مذهب کې د دې مثال نشته.
دا چې اسلام د غربت د مسئلې حل ته څومره توجه کړې ده ، او څومره زيات يې د دې خبري اهتمام کړی دي ، نو دا اندازه له دې خبري څخه معلومولای شو چې اسلام په خپل ډېر لومړني پړاو کې چې څوپه شمار مجبور او بې وسه مسلمانان يې لرل ، او د اسلام د بلني د قبلولو د جرم په بدله کې به يې راز راز دردونه او ظلمونه په ځانو تېرول ، چې نه يې کوم سياسي وجود لاره او نه ورته کوم اقتدار حاصل ؤ په داسې حال کې يې د غريبانو په طرف پوره پام واړاؤ ، او قرآن کريم په دغه سلسله کې ډېر مهم هدايات وکړل ، کله به قرآن کريم د دغې مسئلې يادونه د ( طعام مسكينٍ ) ( خوراک ورکول مسکين ته ) په الفاظو سره کوله او کله به يې د الله ﷻ له ورکړل شوي

رزق څخه بل چاته د نفقې ورکولو نصیحت کاوٴ ، او کله به یې د سوال کونکي او محروم د حق اداء کولو حکم درکاوٴ او کله به یې د مسافر او مسکین د حق په اداء کولو ټینګار کاوٴ او کله به یې بیا د ( ایتاء زکوة ) یعنې زکوة ورکولو عنوان غوره کاوٴ.
لنډه دا چې په دغه ډول د مکې مکرمې د پیل په دوره کې قرآن کریم د مسلمانانو په روح کې دغه حقیقت ځای کړی دی چې د هر مسلمان په مال کې د غریب او محتاج لپاره لازماحق شته ؛ په هر ډول چې وی باید اداء کړل شي څکه چې دا نفلي صدقه نه ده چې ورکول او نه ورکول یې د انسان د خوښي کار دي. (فقه الزکوة ۱ ج ۷۱ مخ)

## د زکوة فائیدې

(۱) نن سبا په ټوله نړۍ کې د ګڼو خبري کېږي چې پکې د غریبانو د خلاصون او بهبود په نعرو وهلو سره دوی د شتمني طبقې په خلاف یو خواته غورزول کېږي له دغه تحریک څخه به د غریبانو خبرېدل څه وخت کېږي ؟ . دا یوه ځانګړې موضوع ده مګر دلته غوړام دا ووایم چې د شتمن او غریب تر منځ دغه جګړه د دې لپاره پیدا کېږي چې شتمنه طبقه د غریبانو له هغو حقونو څخه خپلې اوږې خلاصي کړي که د ملک د شتمنو ځلوېښتمه برخه په غریبانو وویشله شي ، او دا عمل د یو کم وخت لپاره نه بلکې د تل لپاره جاري وساتل شي او د امراوٴ طبقه د څه ترغیب او حرص کولو او زور څخه بغیر د تل لپاره دغه فریضه اداء کړي ، او بیا دغه روپۍ په سم ډول په اړو او محتاجانو باندې وویشلې شي ، نو کم وخت وروستو به تاسو وګورئ چې هېڅ یو غریب به له شتمن او امیر څخه شکایت ونه لري . او د

امیر او غریب تر مېنځ چې کوم جنګ دي او دنیا یې په دوزخ بدله کړېده ، دا به د دغه نظام په راتلو سره د خوشحالي او ارامتیا په ځای (جنت) بدل شي .زه صرف د پاکستان مسلمان ملت ته نه بلکه د ټولي نړۍ انسانانو او ټولنوته وایم چې د اسلام د زکوة د نظام په نافذولو سره دي د دغه کار برکتونه پخپلو سترګو ویني ، او د سرمایه لرونکو هیوادونو چې څومره شتمني په عامه خلاصون کې په مصرف رسېږي هغه دي هم په دغه کار کي ورګډه کړي.

(۲)د مال او دولت حیثیت په انساني ژوند کې داسې دی لکه د ویني په بدن کي. که د وینې په ګرزېدو را ګرزېدو کې څه خنډ راشي ، نو د انسان ژوند له خطر سره مخ کېږي او کله خو د زړه د حملې په وجه ناڅاپه انسان د مرګ کندې ته لوېږي بس په همدغه ډول که د هیواد ګردش په انصاف سره نه وي ، نو د ټولني ژوند په خطر کې وي ، او هر وخت د زړه د ټکانونو د بند پدلو وېره وي.

پاک خدای ﷻ د حکومت د سم (منصفانه) وېش او عادلانه چلندلپاره ډېر زیات تدابیر اولاري چاري فرمایلي دي چې له هغو څخه یو هم د زکوة او صدقو نظام دي– تر څوچې دغه نظام په سم ډول نافذنه وي . او ټولني دغه نظام په پوره ډول منلی نه وي ، نونه د حکومت په انصاف چلیدلو فکر کېدای شي او نه ټولنه د ګډوډۍ او زوال څخه په امن کي ساتلي پاته کېدای شي.

(۳)که ټوله دنیا د یو بدن په څېر تصور کړو ، اوټولنه د هغه اندامونه وبولو نومونږ ته معلومه ده چې د کومې پېښې له امله په یو اندام کې وینه له راټولېدو وروستو ټینګه شي ، نو هغه بیادورستېدلو اویا دانو کېدلو په شکل ګرزی او بیا بهېږي دغه رنګه چې کله د ټولنې په

خلگوکې تر ضرورت زياته وينه يوځای کېږي ، نو هغه هم تينګېږي اوبيا کله په زيادت خرڅي او عيش کولو کي وزي ، کله د محکمو او وکيلانو په ګرزېدو راګرزېدو کې ضائع کېږي ، کله په ناروغيو او روغتونونو کې په مصرف رسيږي ، کله بيا دلوړو ، لوړو ودانيو او کورونو په جوړولو کې بربادېږي .شان الهي ﷻ دزکوة او صدقو په ذريعه د دغو تپاکو او خرابيو تد اوي ښودلې او فرمايلې ده کومي چې د دولت د يو ځای کولو په وجه د ټولني په بدن خپږي

(۴)له خپل ډول سره ( يعنې يو انسان ) سره رسته او همدردي کول د انسانيت تر ټولو لوی صفت دي ، د چا چې زړه د ځان په څېر د بل انسان د بې وزلی ، لوږي مجبوری ، او تنګ لاسی په ليدلو سره ونه دردېديږي ، نو هغه انسان نه بلکه يو ځناور دي ؛ او څرنګه چې نفس او شيطان په داسې حالت کې انسان له انساني همدردي څخه منعه او ليري کوي ، نو ځکه ډېر کم خلک د دې حوصله او برداشت کوي.

پاک خدای ﷻ له خپلو بې وسه بندګانو سره د مرستي په خاطر په شتمنو خلکو دا فريضه لازمه کړه تر څو د پاک خدای ﷻ د دغې فريضې په وړاندي د کوم ناپوه ملګري په مشوره عمل ونکړي.

(۵)هر چيري چې د ژوند کولو بنياد په مالداري ولاړدي هلته د انساني اخلاقو او روزني په جوړولو او خرابولو کي هم د هغه ژوره اغېزه وي ، کله وخت د شتونه لرل انسان غير انساني خوځښت ته راکاږي او د ټولني د بې انصافي په ليدلو سره هغه د ټولني د ارامي دلوټلو بندوبست کوي ، کله د غلا ، لاري وهني او قمار په څېربه حرکتونه پيل کوي او کله بيا دغربت او لوږي څخه د تنګېدو له امله له ژونده څخه دلاس اخستلو فيصله کوي . کله د نس ډکولو لپاره

خپل عزت او درنښت ليلام کوي . او کله بيا د لوږي اوناداری د ختمولو لپاره ترخپل دين او خپل ايمان تېرېږي - په دې اړونديو حديث شريف دي چې لوږه او نېستي انسان نژدي کفرته رسوي دغه ټول غير انساني حرکات له نېستی څخه ريښه اخلي چې کله وخت پوره کورنی بربادوي ، ددې حل لاره پيدا کول د ټولي ټولني زمه واري ده او پاک خدای ج ددغوبدو او تاوان رسونکو حرکاتو د مخنوي لپاره دزکوة او صدقو حکم فرمايلي دي

(۲)ددې برعکس ځينې داسې خرابياني دي چې تر مناسب حد د مال له زيات لګښت نه سرچينه اخلي . شتمن چې دکومو نخرو او عبسياتو خيالونه وهي ، او کوم ډول غير انساني کارونه له هغو څخه پيښېږي د هغود بيان ضرورت نشته پاک خدای ج له مال او دولت نه له پيدا کيدونکو اخلاقي بديو څخه انسانان د زکوة او صدقو په ذريعه راګرزولي دي ، تر څو هغوی د غريبانو د ضرورتو نو احساس وکړی او د غريبانو حالت د دوي لپاره هم يو پوره اولوی عبرت د ي

(۷)د صدقاتو او زکوة‌تو په نظام کې يو دا حکمت هم دي چې د هغه په سبب هغه غمونه اوافتونه چې په انسان باندې نازلېدونکي وي دفع کېږي . په دې اړوند ډېر حديثونه راغلي دي چې د صدقې ورکولو په وجه بلاګاني ليرې کېږي او دانسان مال او بدن له افتونو څخه خوندي کېږي .

(۸) د زکوة او صدقو يوه ګټه داهم ده چې د هغو په اداء کولو سره په مال او شتو کې برکت لوېږي : او په زکوة او صدقو کې بخل کول پر انسان باندې د اسمانونو دروازې بندوي . په يو حديث شريف کې د حضور (صلی الله عليه وسلم ) ارشاد دی : حې کو م قوم حې زکوة نه

اداء کوي ، نو پاک خدای ﷻ په هغه قوم باندي قحط او وچ کالي مسلطوي. او له اسمان څخه ورباندي د بارانو اورېدل بندېږي.
(طبراني -اپ کې مسئل ۳ج ۳۳۶مخ)

## د خدای ﷻ فیصله :

د انسان مادي ضرورتونه د دې دنیاله مادي شیانو سره تړاو ورکول یو قدرتي کار دي او داهم د پاک خدای ﷻ د حکمت یوه کلکه فیصله ده چې د نیوي اسباب او وسائل دي د ټولو انسانانو تر مینځ په یو ډول ونه وېشل شي ، بلکه ضروري دا ده چې ځیني خلکوته دي دژوند کولو لپاره دومره فرېمانه اسباب او وسائل ورکړل شي چې د هغو د ژوند کولو تر ضرورت ډېر زیات وي ، او نوروته دي بیا له دی نه دومره برخه ورکړله شي چې ورځني ضرورتونه هم ورباندې پوره نکړای شي. په دې اړوند د پاک خدای ﷻ ارشاد مبارک دي:
(نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا (۳۲آیة)

**ترجمه** : او ددنیا د نظام او سمون په ځای ساتلو لپاره د غه ټیټوالی او پورته والی بالکل ضروري - او لازمی شي دي مګر پاک خدای ﷻ د دغې فائیدې او نقصان په مقررولو سره دواړه ډلي د هغوپه حال پرېښودلې بلکه چېري چې یې له یوه طرفه د زرګونو پیدایښي مصلحتونو لاندې دغه ټیټ والی او پورته والی راوستی دي همدغه خدای ﷻ د شریعت په ډول دا حکم هم ورکړی دي چې:
(فِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ ۲۴) د دوي په مالونو کې ټاکلې شوې برخه ده د غوښتونکو او محرومو خلکو لپاره (سورة المعارج ۲۴ آیت)
یعنې د شتمنو په مالوکي د اړو او محرومینو لپاره ټاکلې برخه ده څوک چې د دوی دغه حق نه اداء کوي ، نو ګویاچې هغه د دوی د حق

غصب کونکي دي او په ناروا ډول يې د هغوپه حق خېټه اچولې ده.
لکه چې له يو حديث شريف څخه د اشارې په ډول دا خبره ښکارېږي،
حضور (صلى الله عليه وسلم) فرمايي چې څه وخت په يو چا باندي
زکوة واجب شي، نو سمدستي په خدايي رجستر کي د هغه مال
څلوېښتمه حصه په جلا ډول د محتاج او غريب مستحق په نامه
ليکله کېږي. په داسې حال کې نور زکوة نه اداء کول (مستحق ته د
خپل حق نه ورکول) نه دي، بلکه په دوهم ځل د مستحق تاکلې شوې
برخه په خپل مال کې ورګډول دي. همدا رنګه يوبل حديث شريف دي
(ماخالطت الزكاة مالا قطّ الاّ اهلكته)

**ترجمه**: د زکوة مال چې په هر مال کې ګډ شي، نو هغه مال تر هغه نه
پرېږدي تر څويې هلاک کړي همدا رنګه په يو حديث شريف کې زکوة
د مال خيرى بلل شوى دي چې حضور (صلى الله عليه وسلم)

انّ هٰذه الصّدقاتُ انّما هِيَ اوْساخُ النّاسِ (مشكوة شريف-۱ج ۱۵۷مخ)

يعني بېشکه دغه د زکوة مال د خلکو د مالونو خيري دي – څرنګه
چې له دغه خيريْ څخه د مالونو پاکولو په اړوند د پاک خداى ﷻ حکم
دي (خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا)

**ترجمه**: اى محمد(ص) ته د هغوله مالونو څخه زکوة واخله او ته د
هغومالونه پاک کړه او د دوى باطن د زکوة په ذريعه پاک کړه.
(سورة توبه ۱۰ سپاره ۱۰۳ ايت)

په ابوداؤد شريف کې د حضور (صلى الله عليه وسلم) ارشاد مبارک
دي چې پاک خداى ﷻ زکوة ځکه فرض کړى دي چې په هغه سره
ستاسو نور مالونه درپاک کړي (مشكوة شريف ۱ج ۱۵۲مخ)

## زکوة د مال خیری دي

څرنګه چې د ګني د شرې یا اوبو په ایشولو سره له هغه څخه ګوره یابوره جوړېږي نو تر پښېدلو لږ څه وروستو د ځګ په شکل د هغې څه خیري راپورته کېږي چې ورڅخه لیري کول یې ضروري دي ، که له تولي شرې ( د ګني څخه د ایستل شوو اوبو ) څخه دغه خیري لیري نکړل شي نو ټول مال ورباندې خراب او بدشکله کېږي. همدغه رنګه کله چې د نصاب حد ته رسېدلي مال باندي یو کال تېرېږي ، نو د هغه خیری را پورته کېږي ، چې خبر یې حضور (صلی الله علیه وسلم ) پخپله لیدلی او بیایې ومونږ ته راکړی دي. که دغه خیري کوم چې په راټولېدلو ټولېدلو پخپله ځانته کړی شوي دي دوهم ځل په هغه کې ورګډ کړل شي ، نو ټول مال ورباندې خرابېږي او څرنګه چې د غوره مال په مارکېټ کې د خراب مال لپاره هېڅ بازار او اخستونکی نه پیدا کېږي همدغه رنګه د زکوة دغه مال د مالدار په ښو کارو کې نه لګېږي بلکه په ډول ډول ناځایي او هغو آفتو کې په مصرف رسېږي چې پخواتر دې یې امیدنه کېدی چې ورته په پورتني حدیث کې هم اشاره شوې ده او نورهم په دغه ډول احادیث موجود دي.

د شریعت له نظام څخه که صرف د زکوة امر په پوره ډول د عمل په ډګر واچول شي نو د دنیا تر نیمایي زیات غمونه او پرېشانیانې به خودبخوده له مینځه ولاړی شي شتمن چې کله د زکوة صدقې او یابل څه روپۍ غریب ته ورکوي اوپتي یې هغه ته ورسپاری ، نو د هغه غریب په زړه کې چې د شتمن له مال سره کوم حسد او بغض پروت دي هغه د تل لپاره نرم او ارام ګرزي - همدارنګه کله چې یو شتمن له

غريبانو سره نژدې وي او هره لحظه د هغو مشكلات او تكليفونه وينې ، نو د هغه په زړه كې خداى ﷻ ته د خپلې خوشحالې د شكر اداء كولو جذبه پيدا كېږي ، او په دې سره هغه د مال قدر پېژني (الترغيب ٢ ج ٢٩ مخ)

## په اخرت كې د زكوة نه وركونكو پاى :

حضور (صلى الله عليه وسلم ) يو ارشاد مبارک دى چې زه د معراج په شپه په يو قوم تېرېدم ماوليدل چې د هغو په شرم ځايو باندې له مخكني او شاتني لوري څخه ځيرى ځيري كړې شوې توتې وې او د څارويو په ډول څرېدل - او خوراک يې له زقوم او د جهنم له ډبرو څخه وو ماپوښتنه وكړه چې دغه كوم خلک دي ؟ ؛ نو حضرت جبرئيل (ع) راته وويل چې دا هغه خلک دي چې له خپلو مالونو څخه به يې زكوة نه اداء كاوْ په دوى باندې خداى ﷻ ظلم نه دى كړى او ستا رب ﷻ پخپلو بندګانو ظلم كونكى نه دي د زكوة نه وركونكو لپاره چې پاک خداى ﷻ كومې سزاګانې په اخيرت كې ټاكلى دي هغه له نورو سزاګانو څخه جلادي . دغه عذاب خو به له حشر څخه پيلېږي - او كوم چې سخت مجرمين وي هغوته به د دغو حوالو له مخې تر مقدمې فيصله كېدوله مخه هم څه تكليفونه مخې ته راځي او حساب وركولو ته به هم په ذلت او رسوايي كې راوستل كېږي . (ترغيب ٢ ج ١٨٢ مخ)

په يو حديث شريف كې د سروري ثقليين (صلى الله عليه وسلم ) ارشاد مبارک دي چې اسلام په پنځو شيانو ولاړ دي :

(١) د دې خبرې شاهدي وركول چې بغير له خداي ﷻ بل څوک لايق د عبادت نشته او محمد (صلى الله عليه وسلم ) د هغه بنده او رسول دي

(٢) لمونځ كول

(۳) د رمضان المبارک روژه نیول.
(۴) زکوة ورکول.
(۵) د بیت الله شریف حج کول. (صحیح مسلم۱ج۳۲مخ)
همدا رنګه په یو بل حدیث شریف کې دي چې یو چا د خپل مال څخه زکوة اداء کړ، نو هغه د خپل مال له شره څخه ځان وساتي.
(کنز العمال مجمع الزوائد ۱ج ۶۳مخ)
په بل حدیث شریف کې راځي چې کله تاسو د خپل مال څخه زکوة اداء کړ، نو د زمه واری کوم بار چې ستاسو په اوږو پروت ؤ هغه لتا سو څخه ولو ېدو -(ترمذي۱ج ۷۸مخ)
او په بل حدیث شریف کې بیا داسې راغلي دي چې: خپل مالونه په زکوة ورکولو سره محفوظ کړئ، د خپلو ناروغیو علاج په صدقه ورکولو سره وکړئ - او د غمونود طوفان مقابله په دعا ګانو او عاجزیو سره وکړئ -(ابوداؤد)
په یو حدیث شریف کي راغلي دی چې چا دخپل مال څخه زکوة اداء نکړ په قیامت کې به دهغه مال د یوه ښوی مار په څېر راشي او د هغه په غاړه کې به د کلک ځنځېر په ډول وګرزي -(نسائي ۳۳۳)
چا ته چې پاک خدای ﷻ مال ورکړی وي او هغه یې زکوة نه اداء کوي، نو له هغه مال څخه به ورته مارجوکړل شي او د هغه په غاړه کې به ور واچول شي او ورته وايي به چې زه ستا مال یم او زه ستا خزانه یم. مار چې هر کله په یو کور کې پیدا شي، نو په توره شپه کې هغه کورته ورننوتل لا څکه ډېر مشکل وي چې خدای مکړه ومونه چیچي - مګر د الله ﷻ استاذی فرمایي چې همدغه مال چې نن په خزانو او اوسپنیځو الماریو کې ښودل کېږي که ورنه زکوة اداء نکړل شي، نو

دقیامت په ورځ به ورته مار جوړول کېږي او بیا به ستاسو په غاړه
چارطرفه پېچل کېږي -په کور کې ننوتلی مارته خلک له دې وجې نه
ورځي چې ناګنابه پرې راتوپ کړي او حال دا وي چې دلته توپ کول د
مار یقیني نه وي هسې یو احتمال وی چې له دېخوا به پرې راغورزار
شي او له هغې خوابه پرې راغورزارشي د دې نه یقین باوجود له
دومره فکره او احتیاطه سره ورننوزي چې ورباندي د مار د هېڅ ډول
حملې امکان پاته نه وي ؛ او د زکوة په نه ورکولوکې دغه یقین دی
چې مار به د هغه په غاړه پېچل کېږي خو بیا هم دهغه له مونږ سره
هېڅ غم نه وي ! فضائل صدقات ( ۲۳۲ )مخ

## په زکوة نه ورکولو سره دنیاوي عذاب :

د یو صحابي حضرت برېده (رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې
حضور (صلی الله علیه وسلم ) فرمایلي دي چې هر قوم د زکوة اداء
کول پرېږدي ، نو الله ﷻ ورباندې وچ کالي راولي ، او هر کله چې دوی
له خپلو مالو څخه زکوة نه ورکوي ، نو حتما به ورباندې له اسمانه
څخه بارانونه بندشي ، تر دې چې که څاروي نه وای ، نو یو څاڅکی
به هم اورېدلی نه وای ( ترغیب۲ج ۱۹۰مخ فقه الزکوة۱ج ۱۰۷مخ )

دوچ کالي افت پر مونږ خلکو دارنګه مسلط شوی دي چې اندازه یې
نشته ، په زرګونو لاري د هغه د لیرې کولو لپاره کار ېږي یوه یې هم
ګټوره نه پرېوزي -کله چې پاک خدای ﷻ د څه ګناه په وجه څه تکلیف
یا غم راولېږي ،نو بیا په دې تو له دنیا کې د چا په وس پوره ده چې له
خپل ځانه یا بل څخه دغه تکلیف لیرې کړي ؟ دا یوه داسې ناروغي
ده چې د زکوة په لیري کولو سره لیري کېږي ، پاک خدای ﷻ راته دغه

ناروغي ( آفت ) هم ښوولې ده او د هغې سمه درملنه یې هم راته ښوولې ده چې که په ربښتیا تاسو د اروغي له منځه وړل غوښتل ، نو ورته سمه تداوي (د قران او حدیث په رڼاکې ) غوره کړئ. (تفسیر صدقات ۱ ج ۱۵۲ مخ)
همدا رنګه یو حدیث شریف دی چې (( په کوم مال کاې چې زکوة پاته شي نو هغه ټول مال خرابوي )) د پورتني حدیث شریف نه دوه مطلبه اخستی شو ؛ یو دا چې په مال کې چې د هغه زکوة پاته شي او ونه ایستل شي ،نو هغه زکوة د دغه مال د ضائع کېدلو او خرابي سبب ګرزي دوهم دا چې کوم څوک چې پخپله شتمن وي او هغه د بل چا څخه د زکوة مال ورواخلي او له خپل مال سره یې ګډ کړي ، نو د هغه ټول مال ورسره له منځه ځي. (فقه الزکوة ۱ ج ۱۰۸ مخ بحواله نیل الاوطار ۴ ج)

## زکوة د مسلمان لپاره یو ساتل شوې ذخیره ده :

زکوة د مسلمانانو د ساتندوئي کارخانه ده. دغه د هغو لپاره پر اویدنه فنډ یا هغه روپۍ دي چې د مامور له میاشتنی تنخواه ګرزول کېږي او بیا د ماموریت په پای کې هغه ته بېرته ورکول کېږي دغه د دوی لپاره د بې کاراتو د مرستي پانګه ده دغه د دوی د معذورینو ، مجبوزینو ، ناروغانو یتیمانو او کونډو لپاره د ساتنې ذریعه دی او برسېره پردې زکوة هغه شی دی چې د مسلمانانو فکر له سبا څخه په پوره ډول بې پرواکوي - له سبا ورځې نه بې پروايي په دې ډول کېدی شي چې نن ورځ ته شمن بې نوته له نوروسره مرسته وکړه . بله ورځ چې ته مجبور شې ، نو نور خلک به حتماله تاسره مرسته وکړي - تاته : به د دې فکر کولو ضرورت نه وي چې که زه خوار شوم بیا به څه کوم ؟ که زه مړ شوم ، نو زمامېرمن او ماشومان به په

افتونو اخته وي. که ماته ناڅاپه کوم غم پېښ شو يعني زه ناروغ شوم ، يا مي په کورکي او رولګېدو ، يا مي په کور سيلاب راغی او يابل څه وشول ، نو ماته به له دغو تکليفو څخه د خلاصون لاره کومه وي ؟ له دغو ټولو فکرونو څخه د زکوة په اداء کولو سره ته ارامتيا ته خلاصېدای شې - په تاباندې صرف دومره کول دي چې په خپل له ضرورته زيات مال کي دوه نيم في صده د الله ﷻ د ساتندويي کمپنۍ ته د ساتلو لپاره ورکړه - دا وخت خو ستا دغه مال ته ضرورت نشته په هغه سره به دا وخت هغه خلک کډه وچلوي چې ورته ضرورت لري - خو کله چې بياته ورته ضرورت ولرې ، يا ورته ستا اولاد يا مېرمن ضرورت ولري ، نو نه يودا چې ستا ورکړل شوی مال ، بلکه تر هغه زيات مال به بېرته درکړل شي . ( فقه الزکوة ۲ج ۷۱۳ )

## سرمايه داري او زکوة

د سرمايه داري او اسلامي اصولو او نتائجو تر مېنځ پوره ضديت او ټکرتر سترګو کېږي. ځکه چې د سرمايه داري تقاضادا ده چې روپۍ دې سره را ټولې او وساتلي شي او د هغو دلاډېرولو لپاره دې له سود څخه هم کار واخستل شي تر څو د دغو ويالو له لاري خورې ورې روپۍ داټولي کړای شي او په يو تالاب کې جمعه کړای شي . خو اسلام بالکل د دې په خلاف حکم ورکړی دي چې روپۍ اول خو بايد جمعه نکړای شي ؛ خو که بيا ورنه جمعه جوړه شوه ، نو بيا بايد ورنه وخت په وخت زکوة وايستل شي تر څو هغه خلک هم يو څه ولري چې د غريبۍ شپې ورځې تېروي - او په دې سره د شتمنو او محتاجانو تر مېنځ فاصله را کمه کړله شي . د سرمايه داري په نظام کې د شتمنيو

ادلون بدلون مقید دي خو داکار بیا په اسلام کې په ازاد ډول تر سره کېږي. د سرمایه داري په نظام کې دا یو حتمي شی دي چې وارله مخه به خاص ستاسو اوبه په تالاب کې وي بیا به تاسو کولای شئ چې له هغه نه اوبه درواخلئ که داسې نه وه ، نو بیا تاسو یو څاڅکی اوبه هم ورڅخه نشئ در اخیستلای. د دې په مقابل کې د اوبو د خزانې په اړوند د اسلام قاعده بیا دا ده چې له هر چاسره تر ضرورت زیاتي اوبه ( له اوبو څخه مقصد مال دي ) وي هغه به ورڅخه یوه برخه ( چې زکوة دي ) را اخلي او هغه چاته به یې ورکوي چې هغه بالکل اوبه (مال ) نلري. نو ښکاره خبره ده چې دوې طریقې د خپل اصلي طبیعت په لحاظ په پوره ډول له یو اوبل سره ټکردي ، او په یو منظم ژوند کې دواړه سره یو ځای کېدای نشي. (فقه الزکوة ۲ج ۷۱۴ مخ )

## ایا زکوة یو اسلامي ټیکس (مالیه ) دی ؟

زکوة ټیکس نه دی بلکه ډیر لوی عبادت دي. بعض داسې خلک دی چې زکوة یې په ذهن کې ډېر کم ارزښته ورغلی وي او دا د حکومت هغسې ټیکس بولي کوم چې په هر حکومت کې په مختلفو ډولونو باندې ټاکل کېږي – او حال دا دی چې زکوة د هېڅ یو حکومت لخوانه دي لازم کړای شوي – اونه حضور(صلی الله علیه وسلم ) د اسلامي حکومت د ضروریاتو د پوره کولو لپاره دغه کار کړی دي ، بلکه په ښکاره ډول په حدیث شریف کې ارشاد مبارک دی چې (( له شتمنو (مالدارانو ) څخه دي مال راواخیستل شي او د محتاجانو او بې وزلو طبقې ته دي ورکړشي )) همدا رنګه دا فکر کول هم غلط دي چې زکوة ورکونکی په محتاجانو او نادارو باندې احسان بار وي.

هېڅکله باید داسې ونشي . بلکه احسان به د محتاجانو یا زکوة قبلونکو لخواوي چې د دوی په ذریعه د شتمنو روپۍ د الله ﷻ په بانک کې جمع کېږي – د مثال په ډول که تاسو بانک ته د جمع کولو لپاره روپۍ سپارئ ، نو ایا احسان به ستاسو لخواوي ؟ نو داچې تاسو نشئ کولای په بانک احسان وبولئ همدغه رنګه تاسو نشئ کولای په مسکینانو باندې د زکوة احسان وبولئ – پخوانوامتونو چې به کوم مال دالله ﷻ په دربارکي د نذرانې په ډول وړاندې کاؤ ، نو دهغه استعمال هېڅ یو چاته روانه ؤ . بلکه هغې ته به سوځېدونکې قرباني ویله کېدله ؟ هغه ټول مال به د قربان ګاه په نوم یو ځای کې راټولیدي– نو بیا چې به ورته له اسمانه څخه اور راغی او هغه به یې وسوځل ، نو دابه د هغې قرباني د قبلېدو علامه وه او که به ورته اور رانغی او همداسې به پاته شوه ،نو دا به د هغه دردېدلو علامه وه پاک خدای ﷻ د محمد (صلی الله علیه وسلم ) په امت باندې په خاص ډول دالوربینه کړې ده چې شتمنو (مالدارانو ) ته یې داحکم کړی دي چې که تاسوکوم څه د پاک خدای ﷻ دربار ته وړاندې کول غواړئ نو هغه مسکینانو او مستحقینو ته ورکړئ – الله ﷻ په دغه لوی رحمت سره له یوې خواد محتاجانو د ضرورت پوره کولو یوه ښه د زیعه پیدا کړه ، او له بلې خوایې د دغه مرحوم امت خلک له رسوایي څخه وژغورل – اوس صرف خدای ﷻ په دی پوهېږي چې څوک له پاک مال څخه صدقه ( زکوة ) ورکوي ، او څوک داسې دي چې د نامه او شهرت پخاطر زکوتونه او صدقې ورکوي ؟ لنډه دا شوه چې زکوة ټیکس نه ، بلکه د خپل خدای ﷻ دربار ته یوه نذرانه وړاندې کول دي– نو څکه خو پاک خدای ﷻ ورته په قران کریم کې قرض حسنه ویلي دي:

﴿مَن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً وَاللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ۲۴۵﴾ (۲ پاره /سورة بقره)

دلته صدقي ( هر هغه څه چې دخداى ﷻ د رضالپاره ورکول کېږي ) ځکه په قرض حسنه سره تعبير شوې دي چې څرنګه چې د قرضواداءکول واجب دي دغه رنګه بايد د خداى ﷻ په رضاصدقه ورکونکى مطمئن شى چې د هغه ورکړل شوې صدقه به له زرګونو برکتونو سره هغه ته بېرته ورکوله کېږي . د دې مطلب دانه دى چې ګواکې خداى ﷻ د څه شى محتاج دي دا وجه ده چې صدقه د فقير لاس ته ترور تلو له مخه د پاک خداى ﷻ دربار ته رسېږي ، نو فقيرېې اصلاله زکوة ورکونکي څخه نه ترلاسه کوي بلکه د هغه خداى ﷻ له طرفه ورته ورکول کېږي چې خپل ټول مخلوق ته روزي ورکوي.

(آپ کې مسائل ۳ج ۳۳۸ مخ)

د زکوة او ټيکس تر مېنځ يو بل فرق دا دى چې حکومت له خلکو څخه ټيکس ( ماليه ) راټولوي او پخپلو کارونو يې لګوي ؛ مګر د اسلام دين زکوة په محتاجانو او غريبانو باندې تقسيم کوي ، اسلام د زکوة د لګښت لپاره اته (۸) کړې جوړې کړي دي. (حقيقت الزکوة ۵۸مخ)

## د زکوة او ټيکس تر منځ بنيادي فرق

**مسئله** : د ټيکس ( ماليې ) اداء کول د زکوة لپاره کافي بلل ، يا دزکوة په اراده د زکوة روپۍ په ټيکس کې ورکول صحيح نه دي اونه کفايت کوي. د زکوة او ټيکس تر مېنځ ډېر لوى بنسټيز او ښکاره فرق دى ، دا چې زکوة يو عبادت دي . نو ځکه پکې نيت او اراده ضروري ده ، او دا چې مطلب ورنه د خداى ﷻ سره اخلاص او د هغه امر په ځاى

کول دي ، نو ځکه يې د لګښت لپاره خاص ځايونه ټاکل شوي دي – غير مسلمانوته او په ټوله نيزو ( عام المنفعه ) کارونو کې د هغه استعمال روانه دي. او چاته چې زکوة ورکول کېږي هغه به مستحق وي او د مالک جوړېدلو صلاحيت به هم ورسره وي ، د هغه لپاره يو ټاکل شوې اندازه ده او ددې لپاره چې زکوة ورباندې واجبېږي هم يو مقرر حد دی – بيا چې کله مال حد د وجوب د زکوة ته ورسېږي ، نو بيا بايد ورباندې يو کال تېر شي – همدا رنګه زکوة په خاصو مالونو باندې واجبېږي په هر مال باندې زکوة نشته – دا ټول هغه حکمونه دي چې له قرآن او حديث څخه ثابت دي چې پکې د لږ څه بدلون حق او ګنجايش هم چاته نشته مګر ټيکس بيا داسې نه دی ، هغه عبادت نه بلکه د حکومت سره مرسته ، يا هغه ته د رسېدونې ګټې معاوضه (بدل ) دي. د هغه لپاره نه کوم ټاکلي تناسب او اندازه شته او نه پکې تعيين د مال شته نه د هغه لپاره څه نيت او اراده شته اونه يې د لګښت ځايونه هغه دي کوم چې د زکوة لپاره ټاکل شوي دي همدا رنګه د هغه لپاره د زکوة په څېر ټاکلي شرعي حد هم نشته بلکه ډېر ځله د ظلم تر حده پورې لوړېږي. ( جديد فقهي مسائل ۱۲۵مخ )

## د زکوة او ټيکس تر منځ څرګند فرق

د زکوة او ټيکس تر مينځ خو تر هر څه لومړی او ښکاره فرق د هغو په نومونو کې دی. ځکه چې د زکوة د لفظ معني پرورش او برکت دی. په اسلامي شريعت کې د مال هغې برخې ته چې زکوة ورکونکی يې محتاج ته ورکوي زکوة ويل کېږي. د هغه په اداء کولو سره د زکوة ورکونکي په نفس کې دا تاثير پيدا کېدل دي چې د هغه دغه مال

سراسر خیر او برکت دی او دغه د هغه مال ته پر مخ تګ ورکونکی او پاکونکی دي – په داسې حال کې چې د ټیکس ( ضریبه ) د لفظ مفهوم زور او الزام دی یعنې دغه یو هغه تاوان دي چې په زور او جبر باندې په مالدارانو خلکو اچول شوی دی ، نو ځکه خلک هغه یو بې حده لوی بار او د هغو په مالونو باندې اچول شوې جرمانه بولي د زکوة لفظ د خپلې پاکۍ برکت او ترقۍ د مفهوم تر څنګ د دې امر ښکارندويي هم کوي چې د مال څښتن چې کوم مال د پاک خدای ﷻ د حق اداء کولو څخه بغیر جمعه کوي هغه ناپاک دی او هغه شی چې مال پاکوي هغه زکوة دي . همدا رنګه زکوة د مال څښتن له بخیلتوب او حرص څخه پاکوي دالله ﷻ ارشاد دی (يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ ٢٧٢ ) د بقرې سورة:

## ایا د زکوة راټولول په حکومت باندې دي ؟

د دې پوښتنې ( چې زکوة ټیکس نه دي بلکه خالص عبادت دي ، نو بیا ولې د راټولو ، ویشلو او نورکارونه حکومت ته سپارل کېږي ) لنډ ځواب دا دی چې اسلام ټوله معاشره ( ټولنه ) یو وجود بولي او بیا د هغې د نظم او کنترول چارې اسلامي حکومت ته سپارې ځکه نو د هغو محتاجانو او غریبانو د ضرورتونو حل هم د اسلامي ټولنې د اقتدار قوې ته سپارل کېږي کوم چې په دغه ټولنه کې ژوند کوي – او د هغوی د دغه ضرورتونو د حل کولو لپاره د صدقو او زکوة نظام رامنځته کړی شوی دي . نو څرنګه چې د دوی د مشکلاتو د حل تر ټولولویه ذمه واري د حکومت په غاړه ده نو ځکه د دغه کار لپاره خاص بندوبست کول هم د حکومت فریضه ده همدا وجه ده چې په

حدیث شریف کې هغه خلک چې د حکومت لخوا دصدقو او زکوة و د راټولو او منظم کولو لپاره ګمارل شوي وي د الله ﷻ په لاره کې له جهاد کونکي سره تشبیهه شوي دي ( ابوداؤد ، ترمذي ) په دغه حدیث کې له یوې خواد دوی د خدمتونو ستاینه کېږي ، او له بلې خوا ورته د ډېري نازکي ذمواری احساس ورته ورکول کېږي یعنې که هغه دغه وظیفه چې د الله ﷻ په لاره کې ي جهاد بولي اداء کړي ،نو له خپلې ذموارئ نه به یې خپلي اوږې سپکې کړې وي او که یې له دغه مال نه د یوې پیسې په اندازه یو څه هم بې ځایه یعنې خیانت کړل ، نو دوی باید ښه پوه شي چې په الهي مال کې یې خیانت کړی دي او دا به د دوی لپاره د دوزخ اورته د ورتلو سبب جوړېږي څرنګه چې په یو حدیث شریف کې د حضور (صلی الله علیه وسلم ) ارشاد مبارک دي (( کوم شخص چې ما په کاروګماره او وظیفه مې هم ورته وټاکله نو که هغه بیا له دغه مال نه څه شی وراخلي نو هغه به په مال د غنېمت کې خیانت کونکي وي. ( ابوداؤد . اپ کي مسائل ۳ ج ۳۳۰ مخ )

## ایا حکومتي ټیکس په زکوة کې ګڼل کېږي ؟

**پوښتنه** : حکومت په تجارتی ګټو او د ځایونو ( ودانیو ) په کرایه بندې ټیکس اخلي ایا دغه په زکوة کې شمېرل کېدای شي او کنه ؟

**ځواب** : کومې روپی چې په ټیکس ( مالیه ) کې ورکولي کېږي هغه په زکوة کې نشي شمارل کېدای - زکوة باید په ځانګړی ډول اداء شي ( فتاوي دارالعلوم ۶ ج ۱۴۷ مخ - شامي ۲ ج ۳۲ مخ )

## ایاپه وارداتوباندي د حکومتي محصول په ورکولوسره زکوة اداکېږي ؟

**مسئله** ؛ دا چې وارداتي محصول د هیواد د ضرورتونو درفع کولو لپاره دحکومت لخوامقررېږي او زکوة په مسلمانان باندي د پاک خدای ﷻ له طرفه یوه فریضه او عبادت دی ، نو ځکه خو په هیواد ته راتلونکو شیانو باندې د محصول په ورکول سره زکوة نه اداء کېږي ، او زکوة په جلاډول له خپلو شرائطو او حدوو سره اداء کول فرض دي – (اپ کې مسائل ۳ج ۳۸۷مخ )

## د وخت حاکم او زکوة :

(۱) **مسئله** : که د وخت حاکم یو عادل مسلمان ؤ ، نو بیا ورسره د هر ډول مال د زکوة اخستلو حق شته . هغه دي له ټولو هیوادوالو زکوة راټول او په مستحقینو دې تقسیم کړي.

(۲)او که د وخت واکمن یو ظالم او یا غیر مسلم ؤ ، او بیا هېڅ حق نه لري چې له خلکو څخه د زکوة مالونه راټول کړي او که یې د زور له لاري دا کادوکړ، نو بیا دي زکوة ورکونکي وګوري. او که یې د زور له لاري دا کاروکړ، نو بیا دي زکوة ورکونکي وګوري چې که حاکم له دوی څخه اخستی مال په مستحقینو تقسیم کړ نو بیا دې دوهم ځل زکوة نه اداء کوي ؛ او که داسې نه ؤ نو بیا دوی ته پکار ده چې دوهم وار زکوة وباسي او پخپله یې په مستحقینو تقسیم کړي.

(۳ ) که یو چا له خپل مال نه زکوة نه اداء کاؤ ، نو د وخت واکمن ته پکار دي چې هغه بندي کړي او د زکوة غوښتنه ورڅخه وکړي – مګر په زور به ورنه مال نه ضبط کوي ځکه چې د زکوة د صحیح والي لپاره

نیت شرط دی – او دا ښکاره خبره ده چې که په زورسره ورنه مال واخستل شي ، نو هغه یکې د زکوة نیت نه کوي . ( علم الفقه ۴ ج ۳۱ مخ )

## په ظاهري او باطني مالونو کې د زکوة حکم

**مسئله** : حکومت خو صرف د ظاهري مالونو لکه په کار خانو او میلونو کې د پراته مال د تجارت مال او په بانک کې د جمع شوې سرمایې زکوة راټولوي ، خود باطني مالونو زکوة به هر سړي پخپله له خپلې اندازې او حد سره سم اداء کوي . ( آپ کی مسائل ۳ ج ۳۴۱ مخ )
ظاهري مالونه هغو مالونو ته ویل کېږي لکه په بانک کې جمعه شوې سرمایه ، په کار خانو او میلونو کې تیارېدونکی مال ، د تجارت مال او داسې نور . او باطني مالونه هغوته ویل کېږي لکه په کور کې نغدې روپۍ سره او سپین زر او داسې نور –

**مسئله** : اوس داسې زمانه ده چې مسلمانانو ته پخپله پکار ده چې خپل زکوة د شریعت له قاعدو سره سم وباسي او پخپله یې په مستحقینو باندې ولګوي همدا رنګه چې هر کله زکوة یا عشر واجب شي ،نو که سمدستي داسې څوک پیدا کېدو چې زکوة ورکېدل ورته صحیح ؤ نو في الحاله دې زکوة وباسي او که سمدستي څوک مستحق نه ؤ بیا دې هغه د امانت په ډول له ځانه سره تر هغه وخته وساتي تر څو یو مستحق پیداشي او ورېې کړي په دغه زمانه کې چې کوم خلک دې ته تیارېږي چې د مقدس شریعت په قاعدو باندې عمل وکړي نو په دې سره هغوی ته د الله ﷻ له طرفه لوی اجر ورکول کېږي څرنګه چې په ګڼو احادیثو کې هم دغه خبره په وضاحت سره راغلې ده . پاک خدای ﷻ دې مونږ ته توفیق راکړي . ( آمین ) ( علم الفقه ۴ ج ۴۱ مخ )

## د زکوة د واجبېدلو شرطونه :

د زکوة د واجبېدلو لپاره (۱۳) شرطونه دي چې

**اول** : دا دی هغه به مسلمان وي په کافر باندې زکوة نشته -دا فرق نه کوي چې هغه له اوله مسلمان دي او که يي له مرتد کېدلو وروستو اسلام راوړی دي -که مرتد ( د اسلام له دين څخه وتلی ) مسلمان شو ، نو په هغه باندې د ارتداد د زمانې زکوة اداء کول واجب نه دي - په څه ډول چې مسلماني د زکوة د واجبېدلو لپاره شرط دی همدغه رنګه د هغه د اداء صحيح والي لپاره هم شرط دي ځکه چې زکوة بغير له نيته صحيح نه دی او د کافر نيت نه کېږي -

**دوهم** : بلوغ دي ، په نابالغ باندې زکوة نشته.

**دريم**: پرليونی باندي زکوة نشته ، همدا رنګه په هغه چا هم زکوة نشته چې د داغ يا په کوم بل مرض اخته وي او د هغه په سبب يې عقل خراب شوی وي -مګر که غير اصلي ليونی ؤ ( يعنې تر بلوغ وروستو دغه تکليف ورته پيدا شوی ؤ ) او د عقل د خرابي تکليف يې پوره کال ؤ ،نو بيا زکوة ورباندې نه دی فرض ؛ او که ليونتوب يې پوره کانه ؤ نو بيا هغه لغوه بلل کېږي او زکوة ورباندې فرض دي. او که اصلي ليونتوب ؤ (يعنې تر بلوغ له مخه ليونی وی ) ، نو په هر حال معتبر دی يعنې که ټول کال نه ؤ ليونی هم زکوة ورباندې نشته ، د مثال په ډول يو څوک دي چې په ټول کال کې يو يا دوه واري ورباندې ليونتوب راځي نو په هغه باندي د دغه کال زکوة نشته - بلکه هغه وخت چې د هغه ليونتوب بالکل ختم شي نو له هغه ځايه د دغه کال پيل وبلل شي -(درالمحتار)

**څلورم** : دا چې هغه به د زکوة په فرضیت باندي پوه او خبروي او په اسلامي خاوره کې به وي. که یو څوک د زکوة له فرضیت څخه ناخبره ؤ او په اسلامي خاوره کې هم نه ؤ ، نو بیا ورباندې زکوة نشته -

**پنځم** : ازادي ده ، په غلام باندي (هغه که کاتب غلام وي او که مأذون غلام وي ) زکوة ورباندې فرض نه دي . مکاتب غلام هغه ته ویل کېږي چې بادار په دې شرط ازاد کړی وي چې هغه دومره روپۍ وګټي او هغه ته یې ورکړي ، تر هغه پورې چې بادار ته یې هغه اندازه روپۍ ورګټلې او ورکړې نه وي نو هغه به غلام وي او هغه وخت چې دغه روپۍ یې ورورسولې بیا به دزاد وي – او مأذون غلام هغه ته ویل کېږي چې بادار اجازه ورته کړې وي چې څه وګټي او خپل مالک ته یې راوړي – (علم الفقه ۴ ج ۱۲مخ )

**شپږم** : دا چې هغه به دداسې شي د نصاب خاوند وي چې یو کال پاته کېدای شي . اوهغه شیان چې پوره کال پخپل حال روغ نشي پاته کېدای لکه تماتر ، کدوګان ختکي او نوره ترکاري او داسي نورنو په هغو باندې زکوة فرض نه دي بلکه عشردي.

**اووم** : دا چې په هغه مال باندې چې زکوة یې ورکړي پرهغه به پوره یو کال تېرشوی وي بغیر له هغه ورباندې زکوة نشته.

**اتم** : دا چې د کال په سراو پای دواړو کې به مال په حد د نصاب کې وي. که څه هم د کال په مینځ کې کم شوی وي. خو که د کال په پیل یا پای کې تر نصاب کم وي نو بیا ورباندې زکوة نشته.

**نهم** : داچې هغه مال به له داسې قرضو څخه خلاص وي چې دبندګانو له طرفه یې غوښتنه کېدای شي – که څه هغه د خدای ﷻ قرض وي لکه

د تېرو کلونو زکوة ، عشر ، مالیه او داسې نور . که څه هم دا خو د الله ﷻ قرض دي خو امام دوخت کولای شي چې هغه طلب کړي . یا د بندګانو قرض وي ،لکه د مېرمنې ولور ( مهر ) ؛ که څه هم هغه داسې وي چې ژر اداء کول یې لازمي نه وي - کوم مال چې کېدای شي په دغه رنګه قرضو کې ختم شي او یا داسې وي چې که ورنه قرضونه اداء شي ،نو بیا حد د نصاب ته نه رسېږي نو له هغه مال څخه زکوة ورکول فرض نه دي. خو که د یو چا په ذمه باندې داسې قرض ؤ چې د بندګانو لخواه یې مطالبه نشوای کېدای لکه د روژې کفاره یا حج ، نو په هغه باندې زکوة فرض کېږي - که په مېنځ د کال کې فرض پېښ شو ، نو داسې به بلل کېږی چې هغه مال له مېنځه لاړ ، تر دې چې که قرض غوښتونکی هغه قرض ورته وبخښي هم د زکوة ورکول ورباندې نشته. بلکه د راتلونکي کال پیل به بېرته له هغې ورځې څخه کوي په کومه کې چې ورته قرض بخښل شوي دي که له یو چاسره څو ډوله داسې مال ؤ چې زکوة ورباند فرض ( یعنی هر یو د هغو حد د نصاب ته رسېدلی وو ) او هغه سړی قرضدار ؤ ، نو هغه باید دغه قرض له هغه مال څخه اداء کړي چې زکوة یې کم وی ، او بیادي د هغه مال زکوة نه ورکوي : د مثال په ډول له یو چاسره د یو نصاب په اندازه سپین زر دي ، او د یو نصاب په اندازه وزې یا مېږې دي ؛ نو هغه ته پکار دی چې قرض د سپینو زرو د نصاب طرفته کړي. ځکه چې د سپینو زرو د نصاب زکوة په نسبت د وزو او مېږو د نصاب تر زکوة ډېر کم وي. او که قرض دومره ډېر ؤ چې د یو شي نصاب د هغه لپاره نه پوره کېدو ، نو بیا چې د هر څو شیانو په نصابو سره د هغه اداء

کېدای شوای له هغومرو څخه دې اداء کړي . او بیا دي د هغوتولو زکوة نه ورکوي .(علم الفقه: ۴ج ۱۸ مخ)

**لسم** : داچې هغه مال به د هغه له ضرورت اصلي څخه زیات وي د کوم چې هغه زکوة اداء کوي هغه څه چې د اصلي ضرورتونو لپاره دي په هغو شیانو باندې زکوة نشته. نو د دغې مسئلې له مخې د اغوستلو په جامو ،په هغه کور چې پکې اوسېږي ، په غلامانو او د سوارلۍ په اسانو او کور په سامانونو باندې زکوة نشته - همدارنګه په هغو کتابونو هم زکوة نشته چې د تجارت لپاره نه وي ، هغه که له عالم سره وي او که له جاهل سره او د کارګرانو په لوښیو او سامانونو لکه تبر ، ترښځ او داسې نورو هم زکوة نشته ، هغه که کار ګرته ګټه رسونکي وي او کنه . او په هغو روپو باندې هم زکوة نشته چې د اصلي ضرورتونو لپاره ساتلي شوې وي خو په دې شرط چې هغه ضرورت به په همدغه کال کې پېښېدونکی وي او که هغه ضرورت په دغه کال کې نه بلکه په راتلونکي کال کې ؤ ، نو بیا په هغوروپو باندې هم زکوة فرض دي. (ردالمحتار)

**یوولسم** : دا چې مال به یې پخپل یا د خپل وکیل په واک کې وي- کوم مال چې په ملک او قبضه د چا کې نه وي ، یا یې په ملک کې وي خو په قبضه کې نه وي ، نو زکوة یې ورباندې نشته -نو د همدې مسئلې له مخې په هغه مال چې مکاتب غلام ګټلی دي زکوة نشته نه په غلام باندې اونه په بادار باندي ، ځکه چې هغه مال د مکاتب غلام په قبضه کې خو ده ، خو د هغه ملک نه دی ، او د بادار بیا په ملک کې دی خو په قبضه کې نه دي - همدا رنګه د مأذون غلام په ګټل شوي مال کې هم زکوة نشته - او په ګرو شوي شي زکوة هم نه په ګروي

اخیستونکي باندې شته او نه په ګروي ورکونکي باندې ځکه چې ګروي اخستونکی د هغه شي خاوند نه ،بلکه قابض ( قبضه کونکی ) دي ؛ او ګروکونکی د هغه شي قابض نه ،بلکه د هغه مالک دي. همدا رنګه هغه مال چې څه مده ورک ؤ بیا وروستو پیدا شو نو ترکومه وخته چې ورک وي د هغه وخت زکوة ورباندي نشته ځکه چې تر هغه وخته یې په قبضه کې نه ؤ همدا رنګه که مال په دریاب کې ډوب شوی ؤ او څه زمانه وروستو را وایستل شو ، نو د هغې زمانې زکوة فرض نه دی کوم چې هغه په اوبو کې ؤ - یو چا مال په ځنګل کې خښ کړی ؤ او ځای یې ورځخه ورک شو . څه مده رورستو هغه ځای ورته معلوم شو ،نو د هغي زمانې زکوة ورباندې فرض نه دی چې هغه پکې ورک ؤ ؛ خو که با چا پخپل کور کې مال (لکه روپۍ،سره او سپین زر او داسې نور ) خښ کړي ؤ او بیا یې څه زمانه ځای ورک ،او وروستو پیدا شو ،نو د ورکوالي د زمانې زکوة ورباندې فرض دی ځکه چې دغه مال د هغه له قبضې څخه نه دی وتلی . دغه رنګه یو چاخپل مال له بل چاسره امانت ایښی ؤ او ورنه هېر ؤ چې ما خپل مال چاته امانت ورکړی دي. بیا وروستو ورمعلوم شو ؛ نو د هېرېدلو د زمانې زکوة ورباندې په دې شرط فرض نه دی چې هغه سړی به ( چې امانت ورته اېښودل شوی دي ) پردی (ناشناخته ) وي. او که داسې یو څوک ؤ چې د امانت ورکونکي ښه شناخته ؤ نو بیا د ورکوالي د زمانې زکوة هم فرض دي. همدا رنګه یو چابل چاته قرض ورکړل او قرض اخیستونکي په داسې حال کې انکار وکړ چې هېڅ یو شاهد او خط د قرضوپه ورکولو نه ؤ ، بیا څه زمانه وروستو هغه ومنل چې د فلاني پر ماباندې قرض شته ، نو د انکار د زمانې زکوة اداء کول

فرض نه دي. لنډه دا چې کله مال د چا له ملکیت او قبضې څخه وتلی وي ، نو زکوة یې هم ورباندې نشته. د زکوة فرض کېدلو لپاره دا شرط دي چې زکوة ورکونکی به د دغه مال مالک هم وي او قابض به هم وي.

**دوولسم** : داچې له دغو دروصفتو څخه به ضروریو صفت په دغه مال کې وي (١) نقدیت (٢) زیادت. (٣) نیت د تجارت.

په سپینو او سرو زرو کې نقدیت موجود بړي ، نو ځکه خو په هر حال په هغو باندې زکوة فرض دي. که نیت د تجارت یې پکې کړی وي او کنه او که هغه (سره یا سپین زر ) د سکې په ډول وي او که په کوم بل ډول لکه ګېڼه یا لوښی او داسې نور . او مال چې هر څومره د لوړ قیمت وي که پکې د تجارت نیت شوی وي ، نو زکوة اداء کول یې فرض دي او که دغه نیت نه وي نو بیا نشته د تجارت نیت کول د اخیستلو پر وخت پکار دی . که له اخستلو وروستو بیا د تجارت نیت کوي نو هغه تر هغه وخته د اعتبار وړنه دی تر څو د تجارت په کولو پیل وشي - او که کوم مال د تجارت لپاره اخستل شوی ؤ او له اخستلو وروستو بیا دغه نیت ختم شو ، نو هغه مال بیا دتجارت نه دی او زکوة ورباندې نشته - او که په دوهم ځل یې بیا د تجارت نیت وکړ، ن ترهغه وخته یې دغه نیت د اعتبار وړ نه دي تر څو چې هغه خرڅ نکړي.

**دیارلسم** : دا چې په دغه مال کې بُه د بل چا حق لکه عشر او مالیه واجب نه وي. که په دغه مال کې عشر یا مالیه وه ، نو بیا پرې زکوة نشته ځکه چې دوه حقونه په یو مال باندې نه فرض کېږي (علم الفقه ۴ج ۲۱ مخ )

## د زکوة د اداء کېدلو شرطونه

د دې لپاره چې د زکوة ورکونکي زکوة اداء شي (۲) شپږ شرطونه دي:

(١) مسلماني: کافر ته له خپله ماله څخه زکوة ایستل صحیح نه دي. که یو کافر څوکاله مخکې لاد راتلونکو کلو نو زکوة اداء کړ او بیا وروستو مسلمان شو ،نو مخته ورکړل شوی زکوة یې صحیح نه دي ، وروستو له اسلام راوړلو به بیا زکوة اداء کي-

(٢) دوهم دا چې زکوة ورکونکی به عاقل وي. که لیوني یابل داسې چا چې عقل یې خراب ؤ زکوة ورکړ ،نوزکوة یې نه دی اداء شوی-

(٣) دریم: دا چې فقیرته د زکوة ورکولو پر وخت د زکوة نیت کول ؛ یعنې په زړه کې د دې نیت کول چې په ما باندې د دومره مال ورکول فرض ؤ ،نو دادی زه یې د الله ﷻ د خوشحالۍ او رضاء لپاره فقیر ته ورکوم. که یو چاوروستو له زکوة ورکولو څخه د زکوة نیت په داسې حال کې وکړچې لا هغه مال له فقیر سره ؤ نو هم نیت یې صحیح کېږي او که مال د فقیر له لاسه څخه وتلی ؤ ،نو بیا یې په نیت کولو سره زکوة نه صحیح کېږي او دوباره به بیا زکوة ورکوي – که یو چا له خپل مال څخه د زکوة مال جلا کړ او د جلا کېدلو پر وخت یې پکې د زکوة نیت وکړ نودغه نیت یې کافی دی ، لازمه نه ده چې فقیرته د ورکولو پروخت به بیا د زکوة نیت کوي-

(٥) پنځم: داچې هغه څوک چې زکوة ورته ورکول کېږي هغه به د دغه مال پوره مالک ګرزول کېږي. که یو چا څه پاخه کړل او فقیران یې خپل کورته راوبلل او هغه یې ورباندې وخوړل او نیت یې پکې د زکوة کړی ؤ نو زکوة یې نه دي اداء شوی. خو که هغه پاخه شوي شیان فقیرته په داسې ډول په واک کې ورکړل شو چې هغه یې مالک شو او فقیر یې د هر ډول واک او تصرف خاوند شو ،نو بیا زکوة اداء شوی دي.

(٦) شپږم: دا چې د زکوة مال به داسې چاته ورکوي چې مستحق وي. (علم الفقه ۴ ج ۱۱ مخ)

## د زکوة د مال ضائع کېدلو حکم :

که په چا زکوة واجب شو ، خو بیایې مال ضائع شو ،(نو سره له دې چې د زکوة د ورکولو وخت هم راغلی وي او د وخت دواکمن له خوا ورنه د زکوة غوښتنه هم شوې وي (خو په څه وجه یې ورکړی نه وي ) د زکوة فرضیت ورنه ختم شو - خو که پخپله یې ضائع کړي ؤ ،نوبیا د هغه مال زکوة اداء کول ورته ضروري دي ، د مثال په ډول یوچاڅارویو ته وابه او اوبه نه ورکولې نو ځکه هغه مړه شول ،نو زکوة ورکول یې د هغه په ذمه پاته دي . که یو چا بل چاته قرض ورکړل او یا چاپه خواست ورنه د څه وخت لپاره څه دغوښتل او هغه ورکړل او ضائع شول ،نو دا په قصدي ضائع کولو کې نه راځي او زکوة یې هم له ضائع کېدلو سره ساقطږي . (علم الفقه ۴ ج ۲۹مخ و عالمګیري۲ج۴۰مخ )

## په بې هوښه باندې د زکوة حکم :

**مسئله** : که یو څوک بې هوښه ؤ که څه هم پوره یو کال یې بې هوښي دوام کړی وي زکوة ورباندې په دې شرط واجب دی چې خاوند دنصاب به وي . (فتاوي عالمګیري ۴ ج ۲مخ)

## د ماشوم ، او لېوني د زکوة حکم :

**مسئله** : د شرعي نابالغ په مال کې زکوة واجب نه دي او د ماشوم غیر مکلفیت په نص ( د خدای ﷻ په قطعي حکم ) سره ثابت دي او د لمانځه ،روژې او حج او نورو عبادتونو نه وجوب پر هغه باندې دا هم یو دلیل د زکوة دنه واجبېدلو دی . (فتاوي دار العلوم ۲ ج ۲۳مخ )

**مسئله** : په حنفي مذهب کې په نابالغ او لېوني باندې زکوة واجب نه دی . لهذا د هغو له سرپرستانو څخه هم دغه مال د زکوة نشي غوښتل

کېدای ځکه چې دا صرف یو عبادت دی او ماشوم او لیونی د عبادت د حکم له خطابه وتلي دي – مګر د هغوله ماله څخه قرض او نفقه ( مصرف د خوراک څښال پوښاک او داسې نور ) اداء کول واجب دي. همدا رنګه په دواړو باندې د ځمکې د محصول ( پیدوار ) لسمه برخه ، او سرسایه اداء کول هم واجب دي ، ځکه چې دغه له حقوق العباد ( د بندګانو له حق ) څخه شمېرل کېږي. او د لیوني په مال کې هم د ماشوم په څېر زکوة نشته. (الفقه علي مذاهب اربعه ۱ج ۹۲۰مخ . فقه الزکوة ۱ ج ۱۴۲ مخ )

**مسئله** : دنابالغوپه هغه مالو کې چې د امانت په ډول یې له سرپرستانو سره پراته وي زکوة واجب نه دي .(فتاوي دار العلوم ۲ ج ۷۲مخ . طحطاوي ۱ج ۳۸۹ مخ )

**مسئله** : پر بالغانو باندې زکوة واجب دي او دبلوغ علامې نن صبا هر چا ته معلومي دي ، خو که کوم هلک یا نجلۍ چې د پنځلس کلنۍ عمرته ورسېدل ، او بیا هم د بلوغ څه علامه پکې ښکاره نشوه ،نو د پنځلس کلنۍ په وجه هغه بالغ بلل کېږي. (آپ کې مسائل ۳ ج ۳۴۴ مخ )

## د زکوة د وجوب لپاره هجري کال باید وشمېرل شي که عیسوي ؟

د پوره کال تېرېدلو مطلب دا دي چې زکوة تر هغه وخته پورې واجب نه وي تر څوله چاسره د هغه مال چې حد دنصاب ته رسېدلی وي یو کال پوره شوی نه وي. او له کال څخه مراد د سپوږمیځو میاشتو د کال حساب دي – انګرېزی کال د اعتبار وړنه دی ځکه چې په سپوږمیځ حساب کال درې سوه څلورپنځوس (۳۵۴ ورځې کېږي ، او لمریزکال کله (۳۶۵ ) ورځې وي او کله لاتر دې هم یوه ورځ زیاته دي - (کتاب الفقه ۱ج ۹۹۴مخ )

**مسئله** : د زکوة په اداء کولو کې سپوږمیځ کال د اعتبار وړ دي . لمریزته اعتبار نشته. اول خو باید د سپوږمیځ کال په اعتبار اداء شي . او که یې د لمریز کال په اعتبار اداء کوي ، نو حتماً باید د لسو ورځو زیاتوزکوة اداء کړي (آپ کې مسائل ۳ج ۳۲۲ خ. وفتاوي عالمگیري ۴ج ۱۳مخ)

**مسئله** : د زکوة د حساب لپاره تاریخ معتبر دي ، په کوم تاریخ چې کال پوره کېږي په همهغه تاریخ باندې زکوة واجبېږي ؛ زکوة چې هر وخت اداء کوي خو اعتبار د هغه تاریخ د وجوب دي – په راتلونکي کال کې هم په دغه تایخ زکوة واجبېږي په کوم تاریخ چې تېر کال واجب شوی ؤ . (فتاوي دار العلوم ۲ج ۷۵مخ په حواله د مشکوة ۱۵۷)

**مسئله** اصلي حکم دادي چې په کوم تاریخ ته د نصاب خاوند شوي ئي ،نویو کال وروستو په هغه تاریخ په تاباندې زکوة فرض کېږي – او تر وخت پوره کېدو مخکې هم زکوة ورکول روادی او ورستووالی ئي هم روادي که تر مقرر تاریخ څه مخکې یا وروستو شي نو هم څه منعه نشته پکې. (آپ کې مسلئل ۳ ج ۳۲۸مخ – عالمگیري ۴ ج ۵ مخ)

## د زکوة د کال شمارلو اصول :

په کوم تاریخ چې یو څوک د نصاب د اندازې د مال خاوند گرزېدلی وي له هغه تاریخ څخه د سپوږمیځ کال په حساب د پوره کال په جریان کې چې څومره مال د هغه په ملکیت کې وي د هغه زکوة ورباندې واجب دی. (آپ کې مسائل . ۳ ج ۳۲۷مخ)

**مسئله** : د شریعت مسئله دا ده چې د کال په هره میاشت کې چې په کوم تاریخ څوک د نصاب خاوند شي ،نو د یو کال تېرېدلو وروستو

په دغه میاشت او دغه تاریخ وربانديٍ زکوة واجبيږي او دغه وخت يې اداء هم لازميږي – (آپ کې مسائل ۳ج ۳۶۸ مخ)

## که د نصاب له خاوند څخه وخت هېرؤ ؟

تاسو چې د سپوږمیځي میاشتي په هره نېټه د نصاب خاوندان شوي یاست د تل لپاره باید هغه نېټه د زکوة د حساب لپاره تاکلي وي – په دغه تاریخ کې چې لتاسو سره د سپینو او سرو زرو ، د تجارت له مال څخه او نغدي هر څومره مال موجودي وي ( که څه هم تر کال پوره کېدلو يوه رځ له مخه مولاس ته درغلې وي ) په هغو ټولو زکوة واجب دي – د زکوة حساب به همېشه په دغه نېټه کوئ خو که څه هم ژر اداء کول يې بهتر دي خو بیاهم دهغه خوښه ده چې ژريې اداء کوي که ناوخته ، په مرګ باندې هېڅ باور نشته. که له یو چاسره د کال په منځ کې د پوره نصاب مال نهؤ خو چې د نصاب د پوره کېدلو د کال پای رارسېدو هغه بیا د نصاب خاوند شو ،نو هم زکوة وربانديٍ فرض دي او که په منځ د کال کې يې مال بالکل ختم شو ، نو بیا به د بل نصاب له خاوند کېدلو وروستو د زکوة کال پیل کوي – که چاته په سپوږمیځ کال کې هغه تاریخ یاد نهؤ چې هغه پکې د نصاب خاوند شوی دي ، نو له ژور فکر وروستو چې په کوم تاریخ د هغه غالب ګمان راغی له هغې ورځې دې د زکوة کال پیل کړي. (احسن الفتاوي ۴ ج ۴۵۵ مخ)

## د کال پای ته رسېدل :

**مسئله** : هروخت چې د نصاب د خاوند کېدوله ورځې سپوږمیځ کال پای ته ورسېدو ،نو زکوة واجب شو ؛ د مثال په ډول یو څوک په اول د شعبان (برات ) په اول دنصاب خاوندشو نودراتلونکي کال دشعبان

په اول چې له هغه سره هر څومره مال دي په هغه باندې زکوة فرض شو
که څه هم داسې مال پکې ګډوي چې تر کال پوره کېدلو دوه ورځي یا
دوه میاشتي ترمخه د هغه لاس ته ورغلی وي - لنډه دا چې کوم مال
چې د کال په منځ کې هغه ته راځي نو د راتلو له ورځي به یې کال نه
پیل کوي بلکه د نصاب د پیل شوي کال له پوره کېدو سره به یې زکوة
اداء کېږي- (آپ کې مسائل ۳ ج ۳۷۳مخ)

## د تیر کال د زکوة نه اداء کولو په صورت کې به بل کال له څه وخته پیلوي ؟

**پوښتنه** : د تېر کال زکوة یې لا اداء کړې نه ؤ ،بل کال شروع شو ، نو د
نوي کال حساب به په څه ډول کوي ؟

**ځواب**: په کومه نېټه چې اول کال پوره شوی دي په هغې نېټه باندې په
هغه مال باندې د تېر کال زکوة فرض کېږي او له راتلونکې ورځې
څخه دا روان کال پیل کېږي -(آپ کی مسائل ۳ ج ۳۷۸مخ)

## ایا زکوة باید په رمضان کې اداء کړل شي ؟

**مسئله** : هر وخت چې د مال کال پوره شي نو زکوة ورکول یې بهتر دي ،
اوپه هره میاشت کې کولای شئ چې زکوة اداء کړئ . د رمضان
المبارک میاشت د دې لپاره څه خاصیت نه لري -خو که د چا د نصاب
کال دروژې په میاشت کې پوره شو، نو هغه دې په روژه کې زکوة اداء
کړي. خو دا خبره شته چې د رمضان په میاشت کې زکوة اداء کول تر
نورو میاشتو اویا (۷۰) ځله زیات ثواب لري. (فتاوي دارالعلوم ۲ج ۱۰۰مخ)

**مسئله** : د زکوة اداءکولو لپاره کومه خاصه میاشت یاورځ نشته
،البته بعض داسې میاشتې او ورځې شته چې د زکوة د ثواب په

زیاتوالی اثر ولري. خو ښه داده چې په کومه میاشت کې چې فرض شوی دی په هغې کې باید اداء هم شي. او دراتلونکي لپاره هم دغه میاشت مقرره کړاي شي. (فتاوي دارالعلوم۲ ج۷۲خ بحواله شامي۲ ج۱۵ مخ)

## تر رمضان پورې د زکوة ځنډول څنګه دي ؟

**مسئله** : د زکوة په اداکولو کې د غلطېدلو یو ډول داسې دي چې د ډېرو خلکو دا عادت وي چې په رمضان المبارک کې زکوة اداء کوي ځکه چې دوی وایي چې په رمضان المبارک کې دیو فرض ثواب له اویا فرضو سره برابر وي او بیا په هر رمضان کې د حساب دغه سلسله جاري ساتي ، نو بیا کله داسې وي چې کوم کال د نصاب د خاوند کېدلوله وخته پیل شوی وي هغه تر رمضان المبارک دوه یادرې میاشتې له مخه پای ته رسېدلی وي ،نو هغه سړی د کال د ختمېدلو څخه ، د زکوة تر اداء کولو پورې ورځو زکوة هم اداء کړي اوبیا د راتلونکی وخت لپاره له یوه رمضان څخه بیا تر بل رمضان پورې سلسله جاري وساتي - او کله بیا داسې وي چې له رمضان المبارک څخه درې څلور میاشتې وروستو کال ختمېږي ، نو هغه د رمضان المبارک په میاشت کېد دزکوة په ایستلو سره داسې فکر کوي چې ژرمې له زکوة څخه غاړې خلاصې کړې ، مګر په دې کې غلطي دا ده چې دغه سړی چې په رمضان المبارک کې زکوة باسي هغه دهغه مال زکوة باسی چې دا وخت له هغه سره موجود دي ، او حال دا دی چې امکان شته چې څومیاشتې وروستو چې د نصاب کال پوره کېږي مال تر دې زیات وي او په هغه زیات مال خو هم زکوة واجب دي . او د هغه چا زکوة چې کال د نصاب یې تر رمضان څو

میاشتي له مخه پوره کېږي ( ،خو هغه په رمضان المبارک کې زکوة اداء کوي ) په داسې ډول غلطېږي چې که فرض کړو د نصاب کال د شعبان په اوله پوره شو هغه وخت له زکوة ورکونکی سره (۱۰۰۰) زر روپۍ وي چې زکوة يې (۲۵) روپۍ کېږي – اوکله چې هغه زکوة اداء کوي ،نو د رمضان میاشت ده او له هغه سره اته سوه (۸۰۰) روپۍ دي چې پکې (۲۰) روپۍ زکوة کېږي نو دغه سړی په روژه کې (۲۰) روپۍ زکوة ورکړي ، نو پنځه روپۍ د هغه په ذمه پاته شوې دغه رنګه په دوارو ډولونوکې د هر کال په ختمېدلو سره دغه امکان شته.
که داسې فرض کړو چې پنځه کاله د (۵) روپو پاته کېدل جاري وي ،نو دابه داسې شي چې په پنځو کال کې یې د څلورو کلونوزکوة اداء کړي وي ،اودیو کال زکوة به وربانديې پاته وي نوځکه داضروري ده چې کله د نصاب کال پوره شي نو خپل ټول مال ته دې حساب وکړي او د زکوة اندازه دې ورسره وليکي ؛ نو بیا ،که له هغه د نصاب کال له رمضان څخه له مخه پوره کېدو ، نو په رمضان کې دې د هغه تېر حساب له قراره زکوة ورکړي . اوکه له رمضان څخه وروستو د نصاب کال پوره کېدو ،نو بیا دې د زکوة هغه اندازه چې په روژه کې یې اداء کړې ده ورسره وليکي هر وخت چې کال پوره شو نو بيادې زکوة ته حساب وکړي که نور زکوة هم پاته ؤ هغه دې اداء کړي او که زيات يې ورکړی ؤ ،نو هغه دې د راروان کال په زکوة کې شمار کړي.(امداد مسائل زکوة له ۳۴ مخ څخه تر ۳۶پورې )

## د زکوة پخوانی نصاب او نوی وزنونه :

**مسئله** : د سپينو زرو نصاب دوه سوه درهمه دي چې د وزن په اندازه دوه پنځوس نيمې (۵۰ /۵۲ ) تولې کېږي – او د سرور زرو نصاب اوه

نيمې تولې سره زر دي. او كه ګڼه د دواړه ډوله زرو وه نو بيا دې اول د سرو زرو قيمت معلوم كړي او بيا دې هغه د سپينو زرو قيمت ته وركډ كړي او بيا دې زكوة اداء كړي ، او په زكوة كې څلوېښتمه حصه وركول واجب دي. (فتاوى دارالعلوم ٦ج ٤٣مخ)

**مسئله** : د سرو زرو نصاب اوه نيمي (٥٠ / ٧) تولې سره زر دي . چې دوزن اندازه يې اوه اتيا ګرامه او څلور سوه نه اويا ملي ګرامه (٨٧ ګرامه ٤٧٩ ملي ګرامه ) كيږي - دا د هغه چالپاره چې ورسره صرف سره زروي . سپين زر ، د تجارت مال او نقدي روپۍ ورسره نه وي - همدا رنګه د سپينو زرو نصاب دوه پنځوس نيمي تولې دي چې د وزن اندازه يې شپږسوه دولس ګرامه او پنځه دېرش ملي ګرامه (٦١٢ ګرام ،٣٥ ملي ګرامه ) كيږي -او داهم په هغه صورت كې چې صرف سپين زر وي او سره زر او د تجارت مال او نغدي روپۍ نه وي ، او كه سرو او سپينو زرو سره نور د زكوة مال هم وي نو بيا دې ټول قيمت كړل شي ، كه ټول د سرو زرو د (٨٧ ګرام او ٤٧٩ ملي ګرام ) له قيمت سره ، يا د سپينو زرو د ( ٦١٢ ګرام او ٣٥ ملي ګرام ) له قيمت سره برابر شو نو زكوة وربانديې فرض دي. (احسن الفتاوي ٤ج ٢٥٤خ ، فقه الزكوة ١ج ٢٠١ مخ )

## د زكوة كوم نصاب د اعتبار وړ دي ؟

**مسئله** : د سپينو زرو نصاب ( چې زكوة وربانديې شته ) دوه پنځوس نيمي تولې دی چې ( ٦١٢ ګرامه او ٣٥ ملي ګرامه ) كيږي - ځكه چې په شريعت كې له دراهمو څخه وزن سبعه معتبر دي چې تصريح يې د فقهې د علماؤ په كتابو كې پيدا كولای شي او وزن سبعه دېته ويل كيږي چې لس درهمه له اوو(٧) مثقالو سره برابر دي او د يو مثقال

مشهور وزن څلورنیمي ماشې دي څرنګه چې د دې تصریح ډېر ځایه شته او لویو علماؤ دغه غوره بللې ده ، نو دوه سوه درهمه (۲۳۰) ماشې کېږي او که هغه په (۱۲) تقسیم کړو نو خارج قسمت به یې (۵۲نیمي ) شي او دا دفقهي نصاب دي، (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۷۹مخ به حواله درد المحتار ۲ج ۳۸مخ )

## د نصاب ، معني څه ده ؟

نصاب د مال هغې خاصې اندازې ته ویل کېږي چې ورباندې شریعت زکوة فرض کړی دي د مثال په ډول په اوښانو کې د پنځواو پنځه ویشت عددونه او په وزوکي د څلوېښتو او یوسل یوویشت (۱۲۱) او نورو عددونه او سپینو زرولپاره دوه سوه درهمه او د سروزرو لپاره شل مثقاله. (عالمګیري ۴ج ۷مخ )

## سپین زر د زکوة دمعیار ګرزولو وجه :

**پوښتنه** : په عام ډول چې مااورېدلي دي د زکوة لپاره شرطي نصاب (۵۲نیمي ) تولې یا (۷نیم ) تولې سره زر اویا دهغو د قیمت برابري ده ، نو پوښتنه دا ده چې که له یو چاسره نه سپین او نه سره زر وو صرف پنځه زره روپۍ ورسره وې ، نو هغه به په کوم نصاب عمل کوي – د سرو زرو په نصاب ، او که د سپینو زرو ؟

**ځواب** : ستا د پوښتنې په اړه په څو خبرو باندې پوهېدل ضروري دي . اول دا چې په کوم مال کې د څومره اندازې اداء کول واجب دي ؟ او په کوم مال کې په څومره نصاب باندې زکوة واجبېږي ؟ دا خبري صرف په عقل اوقیاس سره نشی معلوموﻻی بلکه د حضور (صلی الله علیه وسلم ) ارشاداتو ته پکې رجوع کول ضروري دي – او دا لازمه ده چې حضور (صلی الله علیه وسلم ) د کوم مال لپاره په څه ډول

نصاب تاکلی وي په هغه ډول اداء کړل شي او په هغه کې د لمانځه په
څېر دردولو او بدلولو گنجایش نشته–
دوهم: دا چې حضور (صلی الله علیه وسلم ) د سپینو زرو کوم نصاب
( دوه سوه درهمه ) او د سرو زرو نصاب (یو مثقال ) مقرر کړی دي په
هغو کې د بدلون راوستل زمونږ حق نه دي . که د حضور(صلی الله
علیه وسلم ) د زمانې او اوس د سرو او سپینو زرو تر منځ د قیمتونو
تناسب په ځای پاته وي اوکه نه وي لکه څرنگه چې د سهار د دؤو
رکعتونو پرځای څلور ، او د ماښام د درورکعتونو پر ځای دوه یا
څلور رکعته کول زمونږ د خوښي کار نه دي.
دریم: دا چې که له چاسره نغدی روپۍ وي او یا ورسره د تجارت
مال وي ، نو معلومه خبره ده چې د هغولپاره به له سپینو او سرو څخه
یو د نصاب لپاره معیار گرزوي. او پاته شوه دا خبره چې د سپینو زرو
نصاب به معیار گرزوي اوکه د سرو زرو ؟ د دې په اړه د امت حقیقي
فقها ؤ حکما ؤ دا فیصله کړې ده چې له دې دواړو څخه چې د هر یوه
سره نصاب پوره کېږی هغه به معیار گرزوي د مثال په ډول د سرو زرو
په قیمت نصاب . نه پوره کېدو نو د سپینو زرو حساب دی ورته
ولگوي ، او د دې دوه وجې دي ، او دا چې زکوة د دې لپاره دی چې
فقیرانو ته ورنه گټه ورسېږي او دوهم دا چې په هغه کې احتیاط ہ
زیات دی کله چې نقدې د سپینو زرو له نصاب سره پوره کېږي او
دوهم د سرو زرو سره نصاب نه پوره کېږي ، نو په دغسې حالت کې به
د احتیاط تقاضا دا وي چې له هر یو نصاب سره پوره کېږي ، نو هغه
دې معتبر وگنل شي . (آپ کی مسائل اوران کا حل ۳ ج ۳۵۲ مخ )

## که چاته دا معلومه نه وه چې څه وخت د نصاب خاوند شوی يم ؟

**مسئله** : که چا ته دا معلومه نه وه چې څه وخت د نصاب مالک ګرزېدلی يم ، نو د غالب ګمان په بنياد دې فيصله وکړي يعنې هغه دې فکر وکړي چې په هر وخت يې د نصاب پوره کېدلو غالب ګمان راغی له هغه وخته دې د زکوة کلونه پيل کړي - په غالب ګمان جوړولو کې بايد له ژور فکر او يا له نښانو د وخت څخه کار واخستل شي . او احتياط په دې کې د ی چې د څه وخت دي زيات زکوة اداء کړل شي ، د مثال په ډول که غالب يقين يې په دوه نيم کاله ؤ ،نو د دريو (۳) کلو زکوة دي اداء کړي - همدا رنګه چې څومره زيادت کېږي هغومره ثواب هم زياتېږي.او د کموالي په صورت کې د عتاب وېره شته . (فتاوي دارالعلوم۲ج ۴۴ خ بحواله درمختار۲ج ۲مخ )

## د غفلت په وجه د زکوة نه ورکونکي حکم :

**مسئله** : که د نصاب خاوند د غفلت په وجه د يو کال زکوة اداء نکړ ، نو بل کال به د تېر او روان ، دواړو کلوزکوة اداء کوي ؛ اداء به يې په داسې ډول کوي چې هر څومره روپۍ ، مال او نور د هغوزکوة دي له هغه قراره اداء کړي. او د روان کال چې هر څومره روپۍ ، مال او نور وي ، د هغو زکوة دی له خپله قراره اداء کړي ۰(فتاوي دارالعلوم۲ج ۲۵ مخ بحواله درمختار۲ج ۹مخ

## د نصاب خاوند چې د کال په منځ کې مال پيدا کړي ....

**پوښتنه** : له ماسره په کال کې څه روپۍ وې چې په چلندکې مې اچولې وې ، د کمکي اختر له مياشتې څخه بيا تر رجب پوري لس زره روپۍ له ماسره ګټه پاته شوه ، او په رجب کې ټوله آمدني (۳۵) زره روپۍ شوه ، نو ايا زه به د رمضان المبارک په مياشت کې د هغه لس زره

روپو زکوة اداء کوم او که به له (۳۵) زرو څخه هم زکوة باسم حال دادي چې د (۳۵) زرو روپو صرف درې میاشتې وتلې دي؟

**ځواب**: کله چې یو څوک د نصاب خاوند شو ، نو د هغه په نصاب باندې د کال تېرېدلو په بهیر کې چې هرڅومره سرمایه د هغه ترملکیت او قبضې لاندې راغلې ده په هغې ټوله باندې زکوة فرض دي – د سرمایې په هره هره برخه باندې جلاجلا کال تېرېدل شرط نه دي – نو ځکه په رمضان المبارک کې د هغې ټولې سرمایې زکوة په تاباندې واجب دي کومه چې هغه وخت لتاسره ده. (آپ کی مسائل ۳ج ۳۵۲مخ و علم الفقه ۴ج ۳۰مخ)

## په نغدو روپوکې د زکوة نصاب

**پوښتنه**: که له یو چاسره د سرو او سپینو زرو ټاکلی نصاب نه وُ ، نو زمونږ په زمانه کې چې څومره نغدي روپۍ له یو چاسره وي ، نو زکوة پرې واجب دي؟

**ځواب**: په دومره روپو باندې زکوة فرض دي چې ورباندې (۵۲ نیمې) تولې سپین زر اخستل کېداى شي د دومره اندازې نغدو روپو خاوند به د نصاب مالک بلل کېږي – او زکوة د مال څلوېښتمه برخه ایستل دي. (بهشتي زیور ۳ج ۲۳مخ بحواله درمختار ۱ج ۱۳۴، فتاوي رحیمیه ۳ج ۲۱، فتاوي محمودیه ۳ج ۵۰مخ)

## له نغدو روپوسره په ګډه تر نصاب د کمو سروزرو حکم:

**پوښتنه**: که له یو چاسره (۲۸) زره روپۍ او شپږ تولې سره زر وُ ، نو د هغو سرو زرو به هم زکوة اداء کوي ، که صرف د نغدو روپو؟

**ځواب**: په دغه صورت کې پر سرو زرو هم زکوة واجب دي ، په هغه ورځ چې د نصاب کال پوره شي د سرو زرو چې کوم قیمت دي له هغه

حسابه دي شپږ تولې سره زر هم په روپو کې ورګډ کړي او بيا دې ورنه زکوة وباسي - (آپ کي مسائل ۳ ج ۳۵۲ مخ)

## سره زر چې تر نصاب کم وي :

**مسئله** : که له يو چاسره صرف سره زر ؤ هغه هم تر نصاب کم. نور څه لکه سپين زر نغدي روپۍ او بل داسې شی ( چې زکوة ورباندې کېږي ) نه ؤ ، نو تر (۷نيم ) تولې ( ۸۷ګرام ، ۴۷۹ ملي ګرا م ) کم سرو زرو باندې زکوة نشته - (آپ کي مسائل ۳ ج ۳۵۹ مخ )

## تر نصاب د کمو سرو اوسپينو زرو حکم

**پوښتنه** : له يوې مېرمنې سره ګېڼه ده چې لږه د سرو زرو ده او لږه د سپينو زرو ، مګر دواړه تر خپلو نصابونو کم دي. نو د زکوة حکم يې څنګه دی ؟

**ځواب** : په دغه صورت کې د حساب په لګولو سره زکوة واجب دي. د مثال په ډول سره زر دي په قېمت کړي او بيا دې په سپينو زرو ورګډ کړي او بيا دې ټوله مجموعه وګوري که ورباندې د سپينو زرو نصاب پوره کېدو ،نو بيا زکوة واجب دي. (فتاوي دارالعلوم ۲ج ۱۲۳مخ بحواله بحر الرائق ۲ج ۲۳۰مخ ) يعنې د سروزرو قېمت دې وګوري که د هغو قېمت دوه پنځوس تولې د سپينو زرو کېدای شوای نو زکوة واجب دي

(محمد رفعت قاسمي)

## ديوشي دقېمت د لوړوالي په وجه نصاب ته د رسېدلو حکم

**مسئله** : که له يو چاسره د تجارت مال ؤ خو قېمت يې تر نصاب کم ؤ. څو ورځې وروستو يې قېمت لوړ شو او حد دنصاب ته ورسېدو ، نو

له کوم وخت څخه چې هغه حد د نصاب ته رسېدلی وي له هغه وخته به د نصاب کال پیل کوي.

**مسئله** : د هر څه ګټه چې ورنه د کال په دننه کې ترلاسه شوې وي ، هغه به د اصل سره ګډېږي او په اخیر د کال کې چې د اصل زکوة ورکول کېږي د هغې ګټې به هم زکوة اداء کوي که څه هم ورباندې پوره کال نه وي تېر شوي. (علم الفقه ۴ج ۳۰مخ)

## د دوؤ نصابونو حکم:

که له یو چا سره په داسې ډول د یو مال دوه نصابونه ؤ چې یو له بل سره نشوای ګډېدای ، د مثال په ډول د هغو څارویو روپۍ ورسره وې چې زکوة ئې ورکړی ؤ ؛ او څه روپۍ نورې وې بیا هغه ته له بل ځایه څه روپۍ نورې راغلې ، نو دغه روپۍ به له هغو روپو سره ګډوي د کومو چې کال ختم شوی دی یعنې که دوزو د قېمت د روپو کال مخته پوره شوی وي نو دغه روپۍ به له هغو سره ګډوي ، او که د دغو نورو روپو کال مخته پوره شوی ؤ نو بیا به یې له هغو سره ګډوي. (علم الفقه ۳ج۳۱مخ)

## د نصاب د خاوند بې اجازې زکوة وراخستل:

**مسئله** : په یو چا باندې زکوة واجب ؤ ، مګر هغه ایستلی نه ؤ. نو محتاج ته د دې اجازت نشته چې بې له اجازې د مالک څخه د هغه له مال څخه د زکوة په نیت څه شی ور واخلي. که یو محتاج په داسې کار لاس پورې کړي ، نو د مال خاوند ته دا حق شته چې واپس ورنه خپل مال واخلي که له هغه فقیر سره موجود وي ؛ او که موجود نه وي نو فقیر به د هغه ضامن وي. (فتاوی عالمګیري ۴ج ۲۸ مخ)

## د نصاب له خاوند څخه په زور زکوة وړل :

**مسئله** :که د کوم ځای مشران زکوة ، د قرباني پوستوکي او د سرسايې روپۍ جبرا له چا څخه اخلي ، نو دا کار هغوته روا نه دي.

(فتاوي دارالعلوم ۲ج ۲۸۲ مخ بحواله درمختار ۲ج ۴۲ ،فتاوی محموديه ۱۱ج ۱۴۵مخ )

بعض ځايونه دا دستور او د خلکو تر منځ يو قانون وي چې د يوې کمېټې يا د کلي مشران او نور د نصاب له خاوند څخه په زور باندې زکوة اخلي او بيا يې تقسيم کوي ، او په شريعت کې داسې کول روا نه دي ، ځکه چې په زکوة کې نيت شرط دي او په دغه صورت کې د زکوة نيت هېڅ نه کېږي -(محمد رفعت قاسمي رح )

## ضرورت اصليه څه ته وايي ؟

**مسئله** : کوم مال چې له يو چاسره وي نو هغه به د هغه له حاجت اصلي يعنې د ژوند له بنيادي ضرورتونو څخه علاوه وي لکه د اوسېدلو کور ، د بدن کپړې ، د کور په سامان د سوارلی په ځاروي ( يا مشين ، موټر سايکل ، موټر او داسې نور ) د خدمت لپاره په غلامانو او په اصلحه باندې زکوة واجب نه دي. دغه رنګه د خوراک په شيانو او د ژوند کولو په لوښو باندې زکوة واجب نه دي ، خو په دې شرط چې د سرو او سپينو زرو به نه وي : دغه رنګه که جواهرات ، ملغلرې ، زمرود او ياقوت او نور ، که د تجارت لپاره نه وي ، نو زکوة وربانديې نشته همدارنګه د علم د خاندانو په هغو کتابونو باندې هم زکوة نشته کوم چې اصلا د مطالعې او ګټې اخستنې لپاره وي. پورتنې تول شيان په ضرورت اصليه کې داخل دي.(فتاوی عالمګيري ۴ج ۷مخ و علم الفقه ۴ج ۱۴مخ )

## ايا اولاد ته واده كول په حوائج اصليه كې داخل دي ؟

**مسئله** : كه اولاد بالغ وي ، نو واده يې په پلار باندې فرض نه دي – بلكه نارينه اولاد پخپله شرعا د خپل واده ذمه واردى . او كه اولاد نابالغ وي ، نو په شريعت كې دهغه د نكاح ( واده ) نه ضرورت ظاهر دى . د اولاد واده په حوائج اصليه ؤ كې داخل نه دى –صرف په هغه صورت كې چې اولاد نابالغ وي ، نو په پلار يې نفقه واجب ده ، هغه هم هغه وخت چې اولاد دومره څه په واک كې ونه لري چې ورنه خپله نفقه پوره كوي . او كه اولاد مال ولري نوبيا يې نفقه پر پلار باندې لازمه نه ده ،بلكه د هغه له مال نه به يې وركوي

( فتاوي محموديه ٣ج ٩٣ مخ بحواله زيلعي ٣ج ٢٢ مخ )

**مسئله** : كه د چا اولاد معذورؤ ،نو بيايې نفقه پر پلار باندې واجبه ده ، ( كه بالغ وي او كه نابالغ ) ، نو ځكه صرف د هغه نفقه ( د ژوند كولو ضروري مصرف ) په حوائج اصليه كې دي ، مګر واده او نور په حوائج اصليه كې نه شمېرل كېږي . اونه د هغه واده او كوزده او نور څه دزكوة د وجوب مانع ګرزي . ( كفايت المفتي ٤ج ١٤٤مخ )

## په كومو شيانوزكوة فرض دى ؟

**پوښتنه** : په كومو ، كومو شيانو زكوة فرض دي ؟

**ځواب** : په لاندې شيانو باندې زكوة فرض دي :

(١) په سرو زرو باندې : چې اوه نيمې تولې ( ٨٧ ګرامه ، ٤٩٧ ملي ګرامه ) او يا تردې زيات وي .

(٢) په سپينو زرو باندې : چې دوه پنځوس نيمې تولې ( ٦١٢ ګرام ٣٥ ملي ګرام ) او يا تردې زيات وي .

(۳) په هغو روپو او مال د تجارت باندې : چې قيمت يې له دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو سره برابر وي-
**يادونه** : كه له يو چا سره څه اندازه سره زرۇ ، څه سپين ، څه نغدې روپۍ اوڅه اندازه د تجارت مال ۇ او د ټولو ګډ ماليت دوه پنځوس نيموتولو سپينو زرو ته رسېدو ،نو په هغو باندې هم زكوة فرض دي-
دغه رنګه كه له چا سره څه اندازه سره او څه سپين زر ؛ يا څه اندازه سره يا سپين زر ۇ او څه نغدې روپۍ اوياڅه سپين زر او څه د تجارت مال ۇ ، نو هغه به سره ګډ وي او بيا به ګوري ، چې د دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو ماليت ورنه جوړېږي او كنه ؟ كه ورڅخه جوړېدو ، نو زكوة واجب دي ، او كه نه ورنه جوړېدو ، بيا زكوة هم نه دي واجب.
لنډه دا چې كه له سرو زرو ، سپينو زرو ، نغدو روپو اود تجارت له مال څخه د ددو شيانو ماليت د سپينو زرو د نصاب اندازې ته رسېدو ،نو په هغه باندې زكوة فرض دي-
(۴) سربېره په دغو شيانو په څرېدونكو ( واښه خوړونكو ) پسونو باندې هم زكوة فرض دي او د مېږو ، وزو ، غوايانو ، مېښو او اوښانو هر يوه ځانله ، ځانله نصابونه دي.
(۵) د عشر د زمكې په پيداوار باندې هم زكوة فرض دي چې ( عشر ) ورته ويل كېږي. (آپ كې مسائل ۳ج ۳۵۴مخ ، احسن الفتاوي ۴ج ۲۸۷ مخ ، علم الفقه ۴ج ۲۲ مخ )

## اياهر كال زكوة شته ؟

**مسئله** : د كومو روپو او ګڼو چې يو كال زكوة اداء شوى وي ، كله چې بل كال پوره شي نو هم يې زكوة اداء كول لازم دي-د هر كال په

پوره کېدو سره يې بايد زکوة اداء شي - د دغو روپو او نورو څخه که په جريان د کال کې څه گټه اخستله کېږي او کنه.
(فتاوي دار العلوم ٦ج ٤٧مخ . بحواله ردالمحتار ٢ج ١٣مخ - وکفايت المفتي)

## په زکوة اداء کولو کې ځنډ کول:

**مسئله**: کله چې په هغه مال باندې چې د نصاب تر اندازې رسېدلی او يا زيات وي پوره کال تېر شي ، نو سمدستي يې بايد زکوة اداء کړئ ، په ښو کارونو کي ځنډ کول ښه نه دي ، داسی نه وي چې ناڅافي مرگ درباندي راشي ، او دغه امانت دي په ذمه پاته شي - خو که يو چا لاد تېر کال زکوة نو ؤ اداء کړی چې بل کال هم تېر شو ، نو هغه سړی گنهکار شو او بايد توبه وکاږي او د دواړو کلونو زکوة اداء کړي . لنډه دا چې د عمر په تېرو کلونو کې موچې کوم زکوتونه نه دي اداء کړي ، هغه حتما اداء کړئ . (فقه الزکوة ٢ج ٢٢٢ مخ بحواله فتح القدير ١ج ٤٨٢ مخ و امداد و مسائل الزکوة ٧٩ مخ)

## په زکوة کې د نيت حکم:

په هر حال چې وي نيت يو ضروري شی دي ، ځکه چې د يو کار د اثراتو او نتائجو ترتيب د نيت د لاندې کېږي نو ځکه خو يا بايد د زکوة اداء کولو پر وخت د زکوة نيت وشي ، او يا د زکوة د مال د جلاکولو پر وخت . که داسې وشو چې يو جا له خپل ځان سره دا نيت کړی ؤ چې زکوة به اداء کوم ، مگر هغه وخت يې په دغه غرض څه روپی يا مال له نورو څخه جلا نکړ بلکه د کال تر پايه يې سوکه ، سوکه ، لږ ، لږ زکوة ورکاؤ او په ټول دغه وخت کې يې ( د زکوة ورکولو پر وخت او يا د مال ځانله کولو پر وخت ) د زکوة نيت ونه کړ ، نو زکوة يې نه دی اداء شوي . خو که داسې ؤ چې يو چامال بل چاته ورکاؤ او بل چاورنه په عين حال کې پوښتنه وکړه چې دا څه شی

ورکوې ؟نو هغه ورته بغیر له فکر کولو ځواب ورکړ چې دا زکوة دی ، نو دیته نیت ویل کېږي ، او زکوة یې اداء کېږي – او که یې داسې وویل چې : زه چې تر اخېره د کال پورې څومره صدقې کوم هغه ټولې دي د زکوة په نیت وي ، نو دا روا نه دي. (سراجیه)

**مسئله** : که یو چا د زکوة اداء کولو لپاره وکیل نیو ، نو د روپو یا مال ورکولو پر وخت نیت کول کافي دي – که نیت یې د وکیل د نیولو پروخت نه بلکه د زکوة د مال د ورسپارلو پر وخت وکړ ،نو هم صحیح دي. (جوهرة النیره)

**مسئله** :په زکوة کې دزکوة ورکونکي نیت معتبر دي ، نه دهغه د وکیل (معراج الدرایه)

**مسئله** : اهل ذمه ( هغه چې حکومت یې ذمه قبوله کړې وي ) ته د زکوة د وېشلو ذمواري سپارله کېدای شي ، ځکه چې نیت خو د هغه چامعتبر او کافي دي چې هغه ته یې زکوة سپارلی دي (محیط السرخسي)

**مسئله** : د یو چانیت وکیل ته له روپو یا نورڅه ورکولو وروستو په داسې حال کې بدل شو چې هغه مال یا روپۍ لاد وکیل له خوا تقسیم شوې نه وي ،نو دغه مال یا روپۍ د هغه نیت په لاره ځي کوم چې وروستو شوي دي کله چې یو چا وکیل ته څه مال یا روپۍ د زکوة اداء کولو لپاره ورکړي او بیا مخته تر دې چې وکیل هغه تقسیم کړي د زکوة ورکونکي نیت بدل شو او ویې ویل چې دغه روپۍ زه په نذر کې ورکوم ، نو دغه رقم ( مال یا روپۍ ) به په نذر کې شمارلې کېږي. (سراج الوهاج)

**مسئله** : که د یو مسکین امانت له چا سره ؤو او بیا ورنه ضائع شول ، او هغه د دې لپاره چې له مسکین سره لانجه راولاړه نشي د امانت په

اندازه مال یا روپۍ د زکوة په نیت مسکین ته ورکي ، نو د هغه زکوة نه دي اداء شوی -( فتاوي قاضي خان )

**مسئله** : يو چا بغير له نيت څخه مسکين ته مال يا روپۍ ورکړې ،او وروستو يې پکي د زکوة نيت وکړ ، نو دا نيت يې په هغه حالت کې د اعتبار وړ بلل کېږي چې هغه مال يا روپۍ له هغه مسکين سره وي او که هغه مال يا روپۍ د مسکين له لاسه وتلې وې ، نو بيا پکې د زکوة نيت نه صحيح کېږي ( معرج الدرایه ، بحر الرائق ، عيني ، هدايه ، فتاوي دالعلوم ۲ج ۷۹ مخ )

**مسئله** : که يو چا دبل چاله طرفه پخپل سر دهغه له مال څخه زکوة اداکړ ، بيا خاوند ورته اجازه وکړه ، نو که د اجازې پروخت لا دزکوة مال يا روپۍ له مسکين سره وې ، نو زکوة يې ادا شوی دي او که د مسکين له لاسه تللې وي بيا يې زکوة نه دی وتلی .(سراجيه )

**مسئله** : که يو چا خپل ټول مال خيرات کړ خو د زکوة نيت يې پکې ونه کړ ،نو استحسانا د هغه له ذمې څخه زکوة ساقطېږي. يعنې د قياس تقاضا خو دا ده چې بغير له نيت څخه بايد زکوة نه وای اداء شوی خو دا چې اوس له هغه سره هېڅ ډول مال پاته نه دي . نو ځکه تر دغه صورت لاندې زکوة د هغه له ذمې څخه ساقطېږي. ( عالمګيري ۴ج ۵مخ )

**مسئله** : د زکوة د مال جلاکولو پر وخت ( له نوره ماله څخه ) نيت کول هم کافي دي ، که څه هم دا کار د اوصولو خلاف دي ځکه چې مسکينانو ته د ورکولو پر وخت خوبې نيت ځانله . ځانله وي - نو دا چې په هر وارکې نيت کول سخت کار دي ، نو ځکه هغه نيت کافي بلل کېدای شي کوم چې د مال جلاکولو پر وخت يې کړی وي ، ليکن په

محض جلاکولو سره يې غاړه نه خلاصېږي ، بلکه فقيرانو ته په ورکولو سره به يې غاړی خلاصې شي. (فقه الزکوة ١ج ٣٣١ مخ)

## بغير له نيت څخه زکوة ورکول :

**مسئله** : که يو چا بغير له نيت د زکوة څخه مسکينانو ته مال يا روپۍ ورخيرات کړې ، نو په دې سره زکوة نه اداکېږي او دغه خيرات شوی مال په زکوة کې نه شمېرل کېږي – (فتاوي دار العلوم ٦ج ٣٣٢مخ)

او که چاټول مال خيرات کړ ،نو بيا يې زکوة له ذمې څخه ساقطېږي ، ځکه چې نور مال ورسره نشته. (محمد رفعت قاسمي)

## آيا کور واله کولای شي چاته د زکوة په نيت څه ورکړی ؟

**پوښتنه** : که له يو چا سره د زکوة مال ؤ او د کور خلکو د زکوة په نيت ورنه يو څه چاته ورکړل ، او بيايې د نصاب خاوند ورباندې خبر کړ ايا زکوة يې اداء شوی دي او کنه ؟

**ځواب** : که د نصاب خاوند مخته تر ورکېدلو د مال د خپل کوروالو ته د زکوة ايستلو اجازه ورکړې وه ، نو بيا زکوة اداء شوی دي. او که يې اجازه نه وه ورکړې نو بيا که تر هغه وخته پورې چې د نصاب له خاونده څخه اجازه اخستله کېدله دغه مال يا روپۍ له هغه مسکين سره وې نو بيازکوة اداء شوی دي او که د مسکين له لاسه وتلې وې ، نو بيا نه دی اداء شوی. (فتاوي دار العلوم ٦ج ١٠١ مخ بحواله درالمحتار ٢ج ١٤مخ)

## ايا د زکوة او صرفې ثواب د ټولو کوروالو وي ؟

**پوښتنه** :که په يو کورکې نه يالس نفره وي او له دوی څخه د ټولو شيانو اختيار له يوه سړي سره وي او دغه اختيار د کور د ټولو غړيو

په خوښه سره ورکړل شوی وي ، نو که هغه زکوة یا خیرات کوي نو ثواب به یې د ټولو کوروالو سره ګډ وي او که به صرف د ورکونکي وي ؟

**ځواب** : کله چې زکوة یا خیرات د هغوله ګډ مال څخه د هغو په اجازه سره وي ، نو ثواب به یې ټولو ته ورکول کیږي (فتاوي دار العلوم ٦ج ٣٤٠مخ)

**مسئله** : که زکوة اداء کړي خو هغه د څه شرعي عذر په وجه اداء نشي ، نو ثواب یې ورکول کیږي ، ان الله لایضیع اجر المحسنین (الآیه)
فتاوي دار العلوم ٦ج ٣٣٣مخ)

## که یو څوک بغیر له اداء کولو د زکوة څخه مړ شو :

**پوښتنه** : که د نصاب پر خاوند باندې د زکوة د مال اداء واجب شوې وه خو هغه اداء کړی نه ؤ او مړ شو او یو نابالغ ماشوم ورنه پاته شو ، نو آیا د هغه مېرمن کولای شي د هغه له مال څخه زکوة اداء کړي ؟

**ځواب** : د مړي له وصیت څخه بغیر ، د هغه له پاته شوي مال څخه (چې د ټولو وارثانو سره ګډ وی ) زکوة نشي ایستل کیدای . ځکه چې وارث یې هم نابالغ هلک دي (فتاوي دار العلوم ٦ج ٣٣٠ مخ بحواله رد المحتار ٢ج ٩٨مخ)

## د وفات شوي خاوند زکوة حکم :

**مسئله** : د وفات شوي خاوند زکوة د هغه په کونډه ( مېرمن ) باندې فرض نه دي ؛ د هغې د مرحوم خاوند په ذمه دي او هغه یې په نه اداء کولو سره ګنهګار دي - که وارثان یې د هغه له طرفه اداء کړي ، نو ډېره به ښه وي - (آپ کي مسائل ٣ج ٣٤٧مخ او فقه الزکوة ٢ج ٣٨٠ مخ)

### که یو څوک د زکوة واجبدلو سره سم مړشو :

**مسئله** :پوښتنه : یو چادزکوة مال له خپل نور مال څخه جلاکړ ، یا یې وکیل ته ورکړ خو تراداء له مخه هغه مړ شو ، نو هغه مال باید څنګه شي ؟

**ځواب** : که مړي وصيت هم کړی وي ، نو بيا دې دغه مال ( روپۍ وي که بل څه ) په زکوة کې ورکړي . په دې شرط چې دټول مال تر دريمي برخې به زيات نه وي – او که يې وصيت کړی نه ؤ ، نوبيا به له هغه څخه په پاته شوي مال کې ګټل کېږي او په وارثانو به تقسمېږي – هغه ځوک چې مړي د زکوة وکيل ګرزولی ؤ يا يې اختيار ورته ورکړي ؤ د فقير قائم مقام نه دي – او په چا چې زکوة واجب ؤ د هغه په مړيني سره دغه هم له مېنځه لاړ ، نو ځکه هغه ته د دغه مال په زکوة کې د لګښت اختيار نشته . (احسن الفتاوي)

## ايا د مړی له مال څخه به زکوة اخيستل کېږي ؟

**مسئله** : له هغه مال څخه به چې له مړي څخه پاته شوی دي زکوة نه اخيستل کېږي – ځکه چې د زکوة لپاره نيت شرط دي ؛ او په دغه صورت کې نيت نشي کېدای . اوکه مړي د زکوة ورکولو وصيت کړی ؤ نو زکوة د هغه د مال له دريمي برخې څخه ور اخيستل معتبر دي . ځکه چې وصيت د مال په دريمه برخه جاري کېږي . خو که وارثانو يې غوښتل چې د هغه له ټول مال څخه دې زکوة اداء شي نو بيا يې له پاته شوي ټول مال څخه هم د زکوة اداء کول صحيح دي (درمختار ۲ ج ۴۹ مخ عالمګيری ۴ ج ۳۲ مخ

## اياکاغذي نوټ دمال په حکم کي دی ؟

شرعي قانون سرو او سپينو زرو ته خاصيت صرف په دې وجه ورکړی دی چې په ټوله دنياکې هغه په يو ډول د زرو د معيار حيثيت لري .
هغه خوړل کېدای نشي ، اغوستل کېدای نشي ، هواريدای نه شی ،
دهغوا همیت اوارزښت صرف په دي کي دي چي دهغوپه بدله کي نورضرورتونه نه پوره کيږي ،يو ګرام سره زر کولای شي ستاسود

ژوند ټول ضرورتونه پوره کړي – او کاغذي نوټ هم یو داسې شی دی چې تاسو کولای شئ په هغه سره ، سره زر واخلئ – نو د کاغذي نوټ چې کوم قانوني حیثیت دي ، هغه په پوره ډول د مال او ، شتمنۍ حیثیت دي. د ظاهري ډول او هیئت په وجه د هغه په ازربنت کې هیڅ فرق نه واقع کېږي. په قرآن کریم کې په لس ګونو ځایه خدای ﷻ د رزق یادونه کړې ده – والله یرزق من یَشاءُ بغیر حساب ط – ورکوي رزق خدای ﷻ هغه چاته چې خوښه یې شي .(۲) (قُلْ مَن یَرْزُقُکُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ ) روزي درکوي خدای ﷻ تاسو ته له اسمان او ځمکې څخه.
هر لوستی سړی په دې باندې پوهېږي چې د قرآن کریم په ټولو آیتونو کې له رزق څخه مراد محض پاخه شوي خواړه ، سره، سپین زر او جایدادنه دي. بلکه مقصد ورنه هغه شیان دي چې انسان په بیلابیلو ډګرو کې ورته ضرورت لري. که له یو چا سره ، سره او سپین زر نه وي بلکه یو لک روپۍ ورسره وي ، نو هغه غریب نه دي ، هغه ته مالدار ویل کېږي – په دغولوټو باندې د رزق اطلاق کېدای شي ځکه چې دغه کاغذي رسید بې فائدې نه دي بلکه د هغه تر شادوخت د حکومت ضمانت دي نو ځکه هغه یوه سکه ګرځېدلې ده چې هر شی وربانديې د سترګو په رپ کې اخستل کېدای شي او نن سبا خو په عام رواج کې سره او سپین زر هم د هغه مینځي او غلامان دي ځکه چې د ژوند هر ډول سامان په هغو باندې اخیستل کېدای شي. خو دا رنګه د پاک خدای ﷻ ارشاد مبارک دی (الَّذِینَ یُنفِقُونَ أَمْوَالَهُم بِاللَّیْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَعَلَانِیَةً فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَا هُمْ یَحْزَنُونَ ۲۷۴
**ترجمه** : کوم خلک چې د الله ﷻ په لاره کې ورځ او شپه ، پټ او ښکاره

خپل مالونه لګوي ، د هغو لپاره له الله ﷻ سره اجر دي د دغو عملونو د دوی .ایاانسان شپه او ورځ غریبانو ته سره او سپین زر ور وبښلای شي ؟ ایا په دغه ایت کې د مال اطلاق بغیر له دغو سکو ( لوټونو ) په کوم بل شي باندې کېدای شي چې ورباندې هرڅه اخیستل کېدای شي – په قرآن کریم کې بیا ،بیا د اموال لفظ استعمال شوی دي چې د (مال ) جمع ده. مال هر هغه شئ ته ویل کېږي چې په بدله کې یې تاسو دژوند ضرورت پوره کولای شئ –نو تر دغه کاغذي نوټ زیات به بل داسې شی څه شی وي چې ورنه ذغه هدف په ښه ډول لاس ته راشي. لنډه داچې کاغذي نوټ مال بلل کېدای شي او د ژوند هر مشکل ورباندې حل کېدای شي. (قاسمي)

## ولې سره او سپین زر ارزښت لري ؟

سره اوسپین زر دواړه قیمتي ، نادر او پاک شیان دي ، همدا رنګه پاک خدای ﷻ دوی د هر انسان لپاره دومره ګټور ګرزولي دي چې د انسان له اولین پیدایښت څخه دغه دوه شیان په انساني ټولنه کې د مال او نغدو او قیمتي شیان په ډول استعمالېدل نو ځکه شریعت داغه دواړه معدني شیان په فطري ( پیدایشي ) ډول زیادت قبلونکی شیان ګرزولي دي ، او په هغو باندې یې زکوة فرض کړی دي –هغه که د نغدي زرو په صورت کې وي او که ورڅخه لوښي ، مجسمه د زینت شیان اویا کېښې او نور څه جوړشوي وي. (فقه الزکوة ١ج ٣٢١مخ )

هر چېري چې انسان اوسېږي ،نو سره او سپین زر یې د پیدا کولووروستو د مالي کاروبارونو اوراکړي ورکړي لپاره عیار ګرزولي دي ، د دنیا د ټولو شیانو قدر او قیمت په دوی سره اندازه

کېږي – او د اجناسو ( شیانو ) په ادلون بدلون هم دوی بنیادي رول لري – نو څرنګه چې په انساني ودانیو او ابادیو کې سرو او سپینو زرو په همېشني ډول بنیادي ارزښت لرلی دي ،نو ځکه اسلام هم دوی ته دومره لوړ ارزښت ورکړی دي. (عالمګیري ۴ج ۲۰مخ)

**ولي دسرواوسپینوزرو دنصابونو ترمینځ دومره زیات فرق دی ؟**

**پوښتنه** :که یوڅوک هر کال زکوة باسي ، نو بعضې مال خو به ختم شي د مثال په ډول په کومو روپو باندې چې تجارت نه کول کېږي او یا راشې ګېنه وه چې د تجارت لپاره نه وي ، نو په هغو کې خو دکال په تېرېدو سره هېڅ ډول زیادت نه راځي نو که زکوة ورځخه اداء شي خو همدغسې به پسې ختم شي ؟

**ځواب** : په ځواب کې موباید ووایم چې ستاسو دغه روپۍ خوهېڅ چاهم له تجارت څخه نه دي راګرزولې نو داچې تاسو ورباندې تجارت نه کوئ ، نو په دې سره خو شریعت ذموار نه دی – دغه رنګه سپین او سره زر چې په ګېڼو کې ورنه کار اخستل کېږي ، اصلاخو خلقتاً دوی هغه روپۍ دي چې د تجارت لپاره پیدا شوې دی ، نو داچې تاپخپله خوښه ورنه ګېڼه جوړه کړې ده په دې سره خو شریعت نه دی ملامت. کله چې ته وغواړې نو هغه په روپو بدلولای او تجارت ورباندې کولای شې. (امدادمسائل ۴۰مخ)

**مسئله** : اسلامي شریعت دمال په ټاکل شوې اندازې باندې د زکوة په فرض کولو سره د انسان توجه دې ته اړولې ده چې هغه باید خپله سرمایه له ځانه سره کېنږدي ، بلکه په داسې تجارتونو کې یې بندې

کړي چې هغه ورکي پخپله هم ګټه وکړي او دټولني اقتصاد هم وربانديږ پرخ تګ وکړي.

**مسئله** : که له چا سره د نصاب په اندازه روپۍ یا ګېڼه موجوده وي ، نو زکوة ورباندېږ واجبېدل له عقله سره هم په ټکرکي نه دی ، ځکه چې یوڅوک چې د نصاب خاوند شي هغه ته په شریعت او عرف ( رواج ) دواړو کې غني (شتمن ) ويل کېږي. او د عقل او غیرت تقاضا (غوښتنه ) داده چې غني باید د محتاجانوحال وپوښتي اوهغو ته څه ورکړي ـ (فتاوي دارالعلوم۲ج ۵۳مخ)

د اسلام د زکوة له قانون څخه یو معلوم مقصد دا هم دی چې خلک روپۍ بېکاره پرېنږدي ، بلکه په څه کاروبار یا جایداد باندې يې ولګوي تر څو هیواد او خلک ورڅخه ګټه واخلي د نغدو روپو ښودل د ملک لپاره ښکاره تاوان دي ـ ځکه چې په دغو روپو او سرو، سپینو زرو کې خو د ډېرښت صلاحیت (ځواک ) موجود دی ، نو که څوک هغه وساتي او په څه شي يې ونه لګوي او کوم کار چې ورنه اخستل کېږي هغه ورنه وانخلي ، نودا د جمعه کونکي غلطي ده ، زیاتوالی خود زکوة د واجبېدلو سبب نه دي په هغه مال کې پخپله صلاحیت موجود دی. (رفعت قاسمي)

## د زکوة له وېرې څخه مسلمان ، غیر مسلمان لیکل څنګه دي ؟

**پوښتنه** : یو چا یوې مېرمنې ته مشوره ورکړه چې که ته حکومت ته ځان غیر مسلمانه ورولیکې ،نو بیا زکوة درڅخه نه ګرزول کېږي ، ایا په دغه رنګه عمل کولو سره په ایمان څه اثرلوېږي او کنه ؟

**ځواب** : د يو چالپاره داسې عمل کول چې بل چاته ځان غير مسلم ورليکي دا کفر دي ؛ او له زکوة څخه د خلاصون پخاطر داسې کول ډېل کفر دي ، او چاته د کفر مشوره ورکول هم کفر دی. نو هغه چاته (چې د ځان د غير مسلم ليکلو مشوره يې ورکړې ده ) پکار دی چې خپل ايمان او نکاح بېرته له سره څخه نوي کړي - او که کونډې ښځې د هغه په دغه کفري مشوره عمل کړی وي ، نو هغه هم بايد نوی ايمان راوړي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳٤۳مخ)

## له زکوة څخه د بچ کېدو پخاطر د مال هبه کول:

**مسئله** : که يو چا خپل مال بل چاته بغير له بدل اخستلو ورکړ ، اويو کال بعد يې ورنه واپس خپل مال واخست ،نو زکوة يې په مال ورکونکي باندې واجب دي ، اوله هبه کولو څخه مخته چې څومره وخت هغه مال له خپل خاوند سره ؤ هغه وخت به داسې ګڼل کېږي لکه نه چې وي تېر شوی - يعنې هغه به نه ګڼل کېږي ، د مثال په ډول يو چادومره مال چې پوره نصاب کېدوترلسو مياشتو پورې له خپل ځان سره وساتو او بيايې چاته هبه کړ ، او بيا يې له څوورځو وروستو بېرته ورنه واخست - نو داسی به نه کوي چې له دوو مياشتو وروستو زکوة ورکړي . بلکه د بېرته رااخستلو له ورځې څخه به د زکوة لپاره نوی کال پيل کوي - او که يو څوک صرف د دې لپاره چې زکوة يې له زمې څخه ساقط شي دغه حيله جوړوي چې د زکوة د کال تر پوره کېدلو څو ورځې تر مخه خپل مال چاته هبه کړي او بيايې ورنه څه وخت وروستو بېرته راواخلي ، نو که څه هم د زکوة غاړه يې خلاصه شوه خو دغسې کار کول مکروه تحريمي دی ځکه چې په دې کې د

محتاجانو تاوان دي ، او د هغو د حق ضائع کول دي او د زکوة دروازه بندول دي . (علم الفقه ۴ج ۳۴مخ)

**مسئله** : که د چاپه مال باندې پوره کال تېرشو خوزکوة یې لاورڅخه اداء کړې نه ؤ چې لاري وهونکو یانورو ورڅخه غلاکړ، او یایې په کوم بل ډول له لاسه ووتې ،نو زکوة هم ورته وبخښل شو او که یې پخپله خوښه ټول مال چاته ورکړ او یایې په کوم بل ډول پخپل اختیار سره ضائع کړ نو بیا چې وربادې څومر اندزه زکوة واجب شوی دی هغه به اداء کوي ؛ ورته معاف نه دي. (بهشتی زیور ۳ج ۲۷مخ)

**مسئله** : که د یوچا دنصاب کال پوره شو ، له هغه وروستویې خپل ټول مال خیرات کړ ، نو هم یې زکوة وبخښل شو. (بهشتي زیور ۳ج ۲۷مخ بحواله هدایه۱ج ۱۲۸مخ)

**مسئله** : که له یو چاسره دوه سوه روپۍ وې ،له یو کال وروستو ورنه سل روپۍ ورکې شوې یایې خیرات کړي ،نو د پاته سلو روپوزکوة به اداء کوئ ، اودورکو یا خیرات شویو سلو روپوزکوة ورته معاف دي. (بهشتي زیور ۳ج ۲۷مخ بحواله مشکوة۱ج ۱۵۹مخ)

## که د سرو او سپینو زرو څلویښتمه برخه له پیسو څخه ورکړله شي نو د راتلونکي زکوة حکم :

**پوښتنه** :له ماسره (۸) تولې سره زر دي – او ماد (۸) تولو زکوة له پیسو څخه اداء کړ . راتلونکی کال پکې هېڅ ډول زیادت ونشو او د تېرکال د زکوة په ایستلو سره ،سره زر تر نصاب کم شوؤ یعنې موجود خو اته تولې سره زر دي ،نو څرنګه چې ماد اتو تولو دزکوة څلویښتمه اداکړې ده ، نو د هغې څلویښتمې برخې په ورکولو سره حساب بدل شو او که به هر کال په اتو تلو باندې زکوة اداء کوم.؟

**ځواب** : لومړی کال چې لتا سره (۸) تولې سره زر وو او تاد هغوزکوة د جيب له روپو څخه اداء کړ ، او سره زر چې څومره ؤ هغومره پاته شول نو راتلونکی کال هم ورباندې زکوة واجب دي – خو که دي سره زرپه زکوة کې ورکړل او په دې سره د سرو زرو اندازه تر اوه نيموتولو کمه شوه او له تاسره نور سامان نه ؤ چې زکوة ورباندې وشي ، نو په دغه صورت کې بيا درباندې زکوة واجب نه دي –

**مسئله** : اګر دغه اندازه سره زر خو لتا سره دي او د کال تر پوره کېدو پورې به لتا سره وي ، نو څکه راتلونکی کال هم په هغو تولوباندې زکوة لازم دي – خو که دي د زرو څه برخه په زکوة کې ورکړه او له تاسره پاته سره زر په اندازه د نصاب نه ؤ ، نوپه هغه صورت کې به ګورئ چې که لتاسو سره نور داسې څه نه ؤ چې زکوة ورباندې فرض کېدی لکه نغدي روپۍ تجارتي مال او داسې نور ، نو زکوة نشته ؛ او که په سروزرو برسېره بل هم داسې يوشی ؤ چې ورباندې زکوة کېدی او هغه له سرو زرو سره په ګډه د نصاب اندازې ته رسېدی نو بيا زکوة ورباندې فرض دي – (آپ کي مسائل ۳ ج ۳۶۵ مخ)

**مسئله** : که چا يو کال د روپو زکوة اداء کړی ؤ ، او دومره روپۍ چې نصاب ورباندې پوره ؤ تر بل کال پورې له هغه سره وې ، نو په راتلونکي کال کې به د هغو زکوة اداء کوئ ، او که ترزکوة کمې شوې نو بيا ورباندې زکوة نشته. (کفايت المفتي ۴ ج ۱۵۴ مخ)

## ايا په کاغذي نوټونو باندې زکوة شته ؟

د رسول الله (صلی الله عليه وسلم) په زمانه کې درهم (د سپينو زرو سکه ) هغه بنيادي او يواځنی شی ؤ چې تول د راکړې ورکړې

حسابونه به ورباندې کېدل - له هغه نه وروستو د سروزرو دينار هم دغه رنګه د شيانو د اخستلولپاره د سکې حيثيت خپل کړ مګر ډېر کاروبارونه به په دراهمو ( د سپينو زروپه روپو ) سره کېدل په هغه وخت کې بهرنۍ پرمخ تللې دنيا هم له دغوشيانو سره پېژندګلوي لرله ،نو ځکه چې هغه وخت شريعت په مالي اعتبار د راکړې ورکړې ،زکوة ، خيرات او نورو ځومره تفصېلات بيان کړی دي هغه ټول د درهم له مخې بيان شوي دي . په هغه کې دوزن هم خيال ساتل شوی دي او د درهم ددي ارزښت هم په زکوة کې خاص اهميت لري . او دا وخت دنيا د درهم له  چلند نه خلاصه شوې ده مګر ځای يې د وخت نوروسکو( روپيو ) نيولی دي . لکه ، افغانۍ ، پونډيا شلنګ ، ډالر روبل ، لېره يادينار . ددوه سوؤ درهمو د ملکيت (چې ۵۲نيمي تولې سپين زر کېږي ) په اندازه د موجوده سکو د ماليت په پوره کېدلو سره دغه سکې د درهم پر ځای درېږي . دغه رنګه په هر هيواد کې هر وخت د زکوة نصاب چالو او نافذ کېدلای شي. (فتاوي عالمګيري۴ج۲۰مخ )

**مسئله** : که له چاسره د پوره نصاب په اندازه نوټونه ؤ ،نو زکوة ورباندې واجب دي ، او زکوة يې په روپو سره اداء کېږي.(فتاوي دارالعلوم۲ج۸۳مخ )

**مسئله** : د فقهي د جمهورو علماؤ په نزد په کاغذي کرنسۍ (نوټ) باندې زکوة واجب دي. ځکه چې په عام کاروبار کې د سرو او سپينو زرو کارله دوی څخه اخستل کېږي ، او د سپين زرو په ځای د دوی راکړه ورکړه بې له څه سختۍ کېدای شي.(کتاب الفقه۹۸۴او فقه الزکوة۱ج۳۲۵مخ )

د هرقانون څه ګنۍ او سونونه وي ، د زکوة دغه کار نور بيان ته ضرورت نه لري ، چې چاته خدای ﷻ د هغو تر ضرورت زياته روزي ورکړې وي ، هغه بايد د خپل رزق (روزي )څه برخه د خدای ﷻ

هغو بندګانو ته ورکړي چې ورته لږ رزق ورکړ شوی دي او د نور رزق محتاج دي ،د نوټ قانوني ارزښت چې هر څومره وي ،خو دازده کول پکار دي چې په دوی باندې دمال او دولت اطلاق کېدای شي او کنه ؟دا وخت د هر چانه اوروچې فلاني شتمن دي–د دې وینا په اورېدلو سره دیو چاذهن ته هم دا خبره نه ورځي چې له دغه سړی سره ،سره یا سپین زر دي ځکه یې خلک شتمن بولي ،بلکه دا خبره یې په ذهن کې پیدا کېږي چې هغه روپۍ لري –نن سباخو بالکل زمونږ په هیوادونو کې د سپینو او سرو زرو د سکو پوښتنه هم نه راپوره کېږي ،ځکه چې شتمني یا خود جایدادپه شکل وي او یادنوټو په شکل

*(رفعت قاسمي)*

## ولې په جمعه شویو نوټونو باندې زکوة شته ؟

**مسئله** : اصلا روپۍ د جمع کولو لپاره نه ، بلکه د کار او تجارت لپاره دي ، د روپو ساتل او کار ورباندي نه کول د اصل خلاف کار دي ، نو ځکه که لچا سره پیسې وي نو زکوة ورځخه نه ساقطېږي .(کفایه المفتی ۴ ج ۲۵ صفحه)

## ایاپه سرکاري (حکومتي) ټکټونو باندې زکوة شته ؟

د پوستي ټیکټونو برخلیک داسې دي چې هېڅ څوک هم داسې نه کوي چې خپلې روپۍ په هغو باندې ورکړي او بیاهغه له ځان سره وساتي، که دغه ټیکټونه دوخت یورواج وي ،نو خلک یې د ضرورت سره سم اخلي ، کله چې یې واخیست نو بیا ورنه کار اخلي ، نو ځکه ورباندې د کال د تېرېدو پوښتنه نه را ولاړېږي ،او که کال ورباندې تېرهم شي دغه په ضرورت کې داخل ګڼل کېږي ، اوکه دغه ټیکټونه د لېږلو رالېږلو په کاروبار کې کارېدل ، نو زکوة یې هم له هغه زکوة سره ګډبلل کېږي کوم چې په دغه کار وبار باندې لازمېږي ، او که

هغه د ذاتي لېږلو را لېږلو لپاره وي ،نو بيا خو ښکاره خبره ده چې له ضروریاتو څخه ګڼل کېږي. بالآخره په غیر تجارتي کتابو ، او د ذاتي او سپړلو په کورونو باندې هم زکوة نه واجبېږي (رفعت قاسمي)

## هغه روپۍ چې د ضرورت لپاره وي د هغوحکم:

**پوښتنه** : له يو چاسره څوزره روپۍ جمعه دي اوکال هم ورباندې تېرشوی دي ،مګر هغه دغه روپۍ د خپلو ضرورتونو د پوره کولو لپاره ټولې کړې دي، ځکه چې نه کور لري ،نه د کورسامان لري نه يې لاتراوسه واده کړی دي. نو په هغه باندې زکوة فرض دي اوکنه؟

**ځواب** : زکوة ورباندې فرض دي ،خو که د کال تر پوره کېدو له مخه يې د کور جوړولو سامان يا د کور لوښي ورباندې واخيستل نو بيا ورباندې فرض نه دی. (احسن الفتاوي ۴ج ۲۹۱مخ بحواله رد المحتار ۷مخ)

**مسئله** : که يو چاد څه خاص مقصد لپاره دومره روپۍ ايښې وي چې نصاب ئي پوره ؤ او کال هم ورباندې تېرشو ، نو زکوة ورباندې واجب دي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۶۳مخ)

## ايا د کور دټولو شيانو زکوة د کور په مشر باندې فرض دي؟

**پوښتنه** : زه د کور مشريم ، زمادواړه زامن کار کوي ، او زمادزامنو له ښځو سره دولس ، دولس ، تولې ګېڼه ده او زماله مېرمنې سره پنځه تولې ګېڼه ده او د پېغلې نجلۍ دواده لپاره مويوکال له مخه درې تولې ګېڼه اخستې ده. دغه رنګه نن صبا په ګډوکورنيو کې هم ګېڼه د هري مېرمنې په ذاتي ملکيت کې شمېرله کېږي ، د يوې مېرمنې ګېڼه بلې ته نشي ورکول کېدای ، ايا په دغه صورت کې به زه د کور د ټولو ګېڼو زکوة اداء کوم ،اوکه به هر نفر د خپل ،خپل مال زکوة اداء کوي؟

**ځواب**: د زکوة په واجب کېدلو کې د هر چاخپل ملکیت د اعتبار ور دي ، ستاله مرېندو (د زامنو له ښځو) سره چې کومه ګېڼه ده ، نو دا بایدوکتل شي چې د دغو ګېڼواصلي خاوند څوک دي ؟ که دغه ګېڼه د هغوپه خپل ،خپل ملکیت کې وه ،نو زکوة د هغوپه ذمه واجب دي ، اوکه هغه مال څه د مرېندو اوڅه ستاد زامنو ؤ ،نو د هرچامال چې تر حد دنصاب پورې رسېدلی وي په هغوزکوة واجب دي . او دچامال چې حددنصاب ته رسېدلی نه وي په هغو زکوة واجب نه دي ،دغه رنګه هغه سره زرچې ستاله مېرمنې سره دي ، که د هغې په ملکیت کې وي او پکې د بل چاهېڅ حق نه وي ، نو ورباندې زکوة نشته څکه چې صرف په پنځوتولوباندې زکوة نشته . او که د هغې دغه سره زر ستاپه ملکیت کې وي نو د نوروامو الو تر څنګ د دغو مالوزکوة هم په تاباندې لازم دي. او هغه د لور لپاره دې تاسو ګېڼه اخستې ده هغه هم باید معلوم شي چې تادغه سره زر دخپلې لور ملک ګرزولي دي اوکنه ؟ که هغه دي دلورملک نه وي ګرزولی ( یعنې دا دې د دغو سرو زرو پوره خاوندہ نه وي ګرزلې ) که ورسره نورې روپۍ نه وې ،نو زکوة ورباندې نشته.

(۲)اوکه نورې روپۍ هم ورسره وې ،نو بیاورباندې زکوة واجب دي (آپ کي مسائل ۳ج۳۵۰مخ)

## د هر چاپخپل ملکیت باندې زکوة

**پوښتنه** : یو کور دی چې پکې درې ورونه ګډژوند کوي ، په یوځای خوراک سره کوي مګر کټه یې سره جلاده ؛د هریوه له مېرمنې سره دوه نیم یادرې تولې سره زردي ؛که ټول سره یوځای شي نو نږدې اته نیمې تولې کیږي ، نو ایادوی به له دغوسرو زرو څخه زکوة باسي اوکنه ؟

**ځواب** : که له دوی سره نور داسې مال نه وي چې زکوة ورباندې فرض کېږي او حد د نصاب ته رسېدلی وي نو زکوة ورباندې واجب نه دی — ځکه چې د زکوة په نصاب کې د هر چاخپل ملکیت معتبر دي ، او دلته د یوي هم یوائخنی ملکیت د نصاب په اندازه نه دی . (آپ کی مسائل ۳ج ۳۴۹ مخ)

## په ګډکهول (کورنی) کې د زکوة حکم :

**پوښتنه** : زمونږ په کور کې دغه قانون دی چې ټول وروڼه خپله تنخواه اوګټه راوړي او زمونږ مورته یې ورکوي ، او بیاهغه ورباندې کور چلوي ؛ که له مونږ سره څه روپۍ اويا ګېڼه وه ،نو زکوة یې پرمونږ باندې واجب دي او که په والده (مور) مبارکه باندې ؟

**ځواب** : که هغه سره زر اودګټي روپۍ دومره وې چې که په ټولو وروڼوووېشلي شي ،نو هر یوبه د نصاب خاوند شي ، بیا زکوة واجب دي ، اوکه داسې نه وه بیانه دي واجب . (درمختار۲ج ۵۸ مخ)

**مسئله** : که د څو نفرو مال سره ګډوي ،او سره جلایې کړي اوهريوه ته دنصاب په اندازه مال رسېږي نوزکوة هم ورباندې لازم دي ، اوکه دغومره نه پوره کېدو بیازکوة نشته . (علم الفقه ۴ج ۲۸مخ )

## که روپۍ مور اوپلارته ورکړلې شي نوزکوة به یې څوک اداء کوي ؟

زید چې کومې روپۍ د میاشتنی خرچې په ډول خپل پلار (عمر) ته ورکړې ، او عمر دهغو مالک وګرزېدو بیا عمر یوڅه روپۍ سره ټولې کړې که څه هم له ټولولو څخه یې مقصد داؤ چې دغه روپۍ به زید به ته په بېه ورشي ،نو دغه مال دعمر دي ،که حد دنصاب ته رسېدلې وي او پوره کال هم ورباندې تېرشي ،نو زکوة یې هم په عمر باندې لازم دي .مګر که زید د عمر له طرفه دعمر په اجازه د تېري او

راتلونکي زماني زکوة اداء کړي ،نو زکوة يې اداء شوی دي ،زيد ته پکار دي چې عمر په دې خبر کړي چې زه د دغورو پود تېرې زمانې زکوة ادا کوم ،اودراتلونکي به هم اداء کړم ،نوته راته اجازه راکړه
(فتاوي دار العلوم ۲ج ۱۳۸مخ بحواله شامي ۲ج ۱۴مخ)

## هغه مال چې د بل چاپه قبضه کې وي

**پوښتنه** : د زيد مال د هغه د مور يا پلار ،ياد ورونو تر قبضه لاندې دي د بلوغ له پيل نه بيا تر دوه ويشت کلنۍ پورې ،اواوس هغه په خپل ټول مال باندې پوره د قبضې او قدرت خاوند شوی دي ،نو زکوة به څرنګه او ورکول به يې له کومه وخته پيل کوي ،

**ځواب** : د راتلونکي لپاره به له هغه وخته د زکوة د کال پيل کوي څه وخت چې هغه ته خپل مال په قبضه کې ورغلی دي ؛ او د تېرو کلو زکوة ورباندې نشته (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۵۵مخ بحواله ردالمحتار ۲ ج ۴۸مخ)

## د هغه مال چې پلار او زوی دواړو ګټلی وي زکوة په چا واجب دي ؟

**پوښتني** : ۱.زيد خپل هغه مال چې ګټلی يې ؤ له خپل پلار سره ايښی دي اوټول اختيار د دغه مال له پلار سره دي ،نو زکوة يې په چاواجب دي ؟
۲. يومال پلار اوزوی په دواړو سره ګټلی ؤ او بيا د پلار تر پوره واک لاندې ؤاو هغه پکې تصرف کوي ، نو زکوة يې په چاواجب دي ؟

**ځوابونه** : ۱. څوک چې د مال خاوند دي په هغه باندې زکوة هم واجب دي يعنې په زوی باندې.
۲. اوپه دغه صورت کې څرنګه چې پلار ته د هر ډول لګښت اختيار دي ،نو ځکه د زکوة اداء کول هم دهغه په ذمه دي
(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۷۰مخ بحواله هدايه ۱ج ۱۷۵مخ)

## پر مسافر باندې دزکوة حکم :

**مسئله** : په هغه مسافر باندې چې خاوند دنصاب وي زکوة فرض دي ،ځکه چې هغه د خپل نائب په زريعه باندې په خپل مال کې د تصرف قدرت لري – (فتاوی عالمکيري: ۴ ج ۷ مخ )

## ايا پر استعمالېدونکو ګېڼو باندې زکوة شته ؟

**پوښتنه** : ايا پر هغو ګېڼو باندې چې ښځې يې د بر وخت استعمالوي زکوة شته او کنه ؟ ځکه چې په هغو شيانو خوزکوة نشته چې استعمال يې جاري وي ،اوځينې عرب د دغه رنګه ګېڼو زکوة نه ادا کوي ،ځکه چې دوی وايي چې دغه دورځني استعمال شی دي ؟

**ځواب** : د امام ابوحنيفه رح په نزد په هغو ګېڼو هم زکوة شته چې استعمالېدونکې وي۔(آپ کي مسائل ۳ج ۳۶۴مخ )

**مسئله** : په هغو سرو او سپينو زرو چې دنصاب اندازه يې پوره وي زکوة واجب دي ؛ هغه که استعمالېږئ او کنه ،

**مسئله** : نغدي روپۍ ګېڼه ،لنډه دا چې د سرواوسپينو زروپه هر شي اوسکه باندې وروستوهغه زکوةفرض ګرزي چې نصاب ته درسېدويې کال پوره شي .که څه هم هغه روپۍ د ساتنې په نيت خښې (دفن ) کړای شوی دي اويا له استعمال څخه ليري پاته شوې وي.
( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۱۷مخ –ردالمحتار ۲ ج ۴۲خ )

**مسئله** : د امام ابوحنيفه رح په نزد په ګېڼوباندې په هر حالت زکوة فرض دي ، که د ښځووي که دنارينه ګانو وي بس نو زکوة ورباندې فرض دي. (کتاب الفقه۱ج ۵۸ مخ )

## د ورکې شوې ګېڼې زکوة :

**پوښتنه** : که له چا څخه ګېڼه ورکه شي ،نو زکوة یې ورباندې لازم دي اوکنه ؟

**ځواب** : که هغه مال یې پخپله خرڅ کړ،نوبیا ورباندې د تېرو کلونو زکوة هم واجب دي اوکه ورنه ورک شوی ؤ بیا ورباندې د تېرو کلونو زکوة واجب نه دي. اوکه له ورکېدلو څخه وروستو بېرته پیدا شو ،نو بیابايد دا معلومه کړله شي چې که هغه تر کال پوره کېدلووروستو بیاپیدا شوی ؤ ،نو دورکېدلو د زماني زکوة لازم نه دي ،اوپاته شوه د راتلونکې لپاره د زکوة خبره ،نو دهغه حکم دا دی که برسېره پر دغه له دغه سرې سره له مخکې نه دغه قسم نصاب ؤ ،نو له هغه سره به په ګډه زکوة اداء کوئ اوکه تر نصاب کم ؤ نو بیاورته د پیداکېدلوله وخته د یو کال پوره والی شرط دي -اوکه مخته تریو کال پوره کېدلو پیداشول ،نو بیاهم بایددا معلومه شي چې له خاوند سره یې د دغه قسم نور مال هم شته اوکنه ؟ که نه ؤ ،نوبیاچې یې د پیداکېدلو له ورځې څخه وروستو یو کال پوره شي بیا ورباندې زکوة لازمېږي - اوکه له خاوند سره یې نورمال هم ؤاوټول په ګډه د نصاب حدته رسېدو ،نود هغه زکوة دې له نورمال سره اداء کړي.(امدادالفتاوی۲ج ۲۳مخ )

## دګېڼې د زکوة په اړندځوپوښتنې :

**پوښتنه** :۱. یو چاپه مختلفو وختوکې مختلفې ګېڼې واخستلې ،نو زکوة ورباندې څه وخت فرض کېږي ؟

۲.په زکوة ورکولوکې د ګېڼې د اخستلو قیمت معتبر دي اوکه موجوده قیمت ؟

۳- د ګېڼو په قېمت کې به د ملغلرو او غمو دقېمت او جوړولو اجرت هم لګول کېږي ،او که به ورته صرف د سرو زرو قېمت لګوي ؟
۴- که په ګېڼو کې له زرو سره نور څه هم ګډوي ،نو زکوٰة ورباندې شته او کنه ؟

**ځواب** : په کومه ورځ چې ستالاس ته دغه مال درغلی ،چې سره ،سپین زر ،د تجارت مال او نغدې روپۍ وي ،یاله دوی څخه د یوې شي قېمت له ( ۳۵- ۲۱۲ ) ګرامو سپینو زرو سره برابر وي له هغې ورځې نه ته د نصاب خاوند ګرزېدلی یې ،د سپوږمیځې میاشتې دغه نېټه یا ده لره ،یو کال وروستو چې دغه ورځ راغله نو چې پکې له دغو څلورو شیانو څخه چې هر څومره مقدار لتا سره موجود وي په هغه باندې زکوٰة فرض دي که څه هم یوشی تر دغه تاریخ یوه ورځ له مخه ستاسولاس ته رسېدلی وي په دې شرط چې په دغه تاریخ نصاب پوره وي یعنې د ټولو شیان ګډ قېمت د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو سره برابر وي

۲- په کوم سپوږمیځ تاریخ چې د زکوٰة کال پوره کېږي ن د هغې ورځې له قېمت سره سم به اداء کېږي

۳- صرف د سرو زرو په قېمت باندې زکوٰة نشته د ملغلرو او غمو په قېمت او د ګېڼو د جوړولو په اجرت زکوٰة نشته

۴- د ګېڼو په جوړولو کې چې نور شیان ګډ شوي دي دغه قسم ګډوئي ته به د خلوط مقراطي سرو زر قېمت لګول کېږي

## مېرمن د نصاب خاونده ګرزېدل :

**مسئله** : که مېرمن د نصاب خاونده وه نو د هغې د نصاب په وجه د هغې خاوند صاحب نصاب نشي کېدای او د هغې قرباني ،زکوٰة او نور دهغه په ذمه واجب نه دي .( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۵۰مخ بحواله هدایه ۱ج ۱۷۲مخ )

## که د ښځې ګهڼه وه او میړه ئې قرضدار ؤ..

**مسئله** : که ګهڼه د مېرمنې وه او سړی قرضدار ؤ، نو د زکوة په برخه کې دغه قرض د ښځې نه بلل کېږي ،بلکه هغه به د خپلې ټولې ګهڼې زکوة اداء کوي ؛خو که دغه قرض په ښځه باندې ؤ نو بیا د هغې بلل کېږي –
(آپ کي مسائل: ۳ج ۳۴۷مخ )

## ایا د ښځې لپاره په زکوة کې د خاوندا جازه ضروري ده ؟

**مسئله** : که ښځې ته ګهڼه خاوند وراخستې وه یا یې ورته جوړه کړې وه ،او د ښځې ملک یې نه وه ګرزولې لکه څرنګه چې نن سباعادت دی ، نو د هغې ګهڼې زکوة په خاوند باندې واجب دي .په ښځه باندې زکوة نشته .که خاوند یې زکوة اداء نکړي نو هغه ورباندې ګنهګار دي،د ښځې هېڅ ګناه نشته . او که ښځې ته د پلار لخوا دواده په سامان کې ورکړله شوې وه ،نو هغه یې خپل ملک دي او باید پخپله یې دڅه برخې په ورکولو سره ،یا د پلورلو له لارې زکوة اداء کړي . او په دغه صورت کې ورته د خاوند د اجازې هېڅ ډول اړتیا نشته.
(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۲۱ مخ او ۴۸مخ بحواله درالمحتار ۲ج ۵۰۲ مخ )

## مېرمنې د زیوراتوزکوة له څه شي اداء کړي ؟

**پوښتنه** : زېورات (ګهڼې ) خو د ښځو ملکیت وي ،نو د هغود زکوة پېټې ولې په سړو وراچول کېږي ؟ او که مېرمنه یې پخپله اداء کوي ،نو له څه شي یې اداء کړي ځکه چې له دوی سره خو بغیر له ګهڼو نور هېڅ شی (یانغدي روپۍ ) نشته ؟

**ځواب** : کومه ګهڼه چې دښځې په ملکیت او قبضه کې ده د هغې زکوة هم پر هغه ښځه واجب دي خو که خاوند ورسره نیکي کوله او د هغې

پر ځای یې زکوة اداء کړ، اویابنځې له خاوند څخه روپۍ واخستلې او په زکوة کې یې ورکړې نو په دې ډول یې هم اداکول صحیح دي .اوکه له دغوصورتوڅخه یوهم نه کېدی ،نو بیا به له زیوراتو څخه زکوة ورکوي. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۲۸۵مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۴۰مخ)

## ایاد مېرمنې د ګینو زکوة پر خاوند لازم دي ؟

**پوښتنه** : د یوداسې سړی (چې ګته وټه یې ډېرکمه وه ) مېرمنې دواده پر مهال لس تولې سره زر دزیوراتو په ډول له ځان سره راوړل ،ایاپه خاوندیې دالازمه ده چې په هر حال وي د هغوزېوراتو زکوة اداءکړي ؟

**ځواب** : څرنګه چې دغه ګېڼه د سړي نه بلکه دمېرمنې ده ،نو ځکه د دغو ګېڼو زکوة هم په هغې مېرنې واجب دي مېرمنې ته پکار دي چې له خپلو زیوراتو څخه دومره برخه په زکوة کې ورکړي څومره چې وربانديې واجب دی او د زکوة بار د خپل خاوند په اوږو وروانه چوي

**مسئله** : که له یوې مېرمنې سره د نصاب په اندازه ګېڼه وه ،نو زکوة اداء کېږي .(آپ کي مسائل ۳ج ۳۴۵مخ )

## د خاوند او مېرمنې د زکوة حساب :

**پوښتنه** : په واده کې چې انجونو ته کوم زېورات (ګېڼې ) ورکړلی کېږي هغه د دوی ملکیت دي مګر زکوة یې د خاوندانو (مېړونو ) له جېبه څخه اداء کوي ،نو که له خاوند سره هم څه داسې شی وي چې زکوة وربانديې فرض وي مګر تر نصاب کم وي ،ایادوی کولای شي چې هغه د ښځو په زېوراتو کې ورګډ کړی اوبیاله هرڅه نه په ګډه زکوة اداء کړي. اوکه به یې هریو جلااداء کوي ؟

**ځواب**: د دواړولپاره ځانله ،ځانله حساب دي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۴۲مخ )

## انجلۍ (ناوې) ته چې زېورات ورکول کېږي د هغوزکوة پر چالازم دي ؟

**پوښتنه** : د هلک (زوم) پلار چې په ناوې باندې کومې ګېڼې اچوي دهغه زکوة پر چالازم دي ؟

**ځواب** : هغه زېورات چې د هلک د پلار لخواه په ناوې اچول کېږي هغه زمونږ په رواج کې د انجلۍ ملکيت نه دي ،نو ځکه زکوة د هلک په پلار باندې فرض دي. (فتاوى دارالعلوم ۶ج ۷۴مخ ،وکفايت المفتي ۴ج ۲۴۲مخ )

**يادونه** : دغه کتاب په اردوژبه د رفعت قاسمي صاحب لخوا ترتيب شوی دي او په غه مسئله باندې حوالې هم د هغوفتاوي ؤ دي چې جوړونکي يې اردوژبي دي ،نوځکه يې صرف د خپل رواج او عرف اظهار کړی دي او په هغو سيموکې چې رواج داسې وي چې دغه ګېڼه به دنجلۍ په ملکيت او قبضه کې وي ،نو هلته بيا د هغې ګېڼې زکوة په نجلۍ فرض دي.اود پښتنو په ډېرو سيمو کې رواج هم داسې دي )

(مترجم -عبدالملک حصيف )

## يوچادنجلۍ لپاره ګېڼه جوړه کړه او ورته وېې ساتله ، نو زکوة يې پرچافرض دي ؟

**پوښتنه** : يو چادخپلې لور دواده لپاره ګېڼه جوړه کړه او بيايې ورته ساتلې وه ،نوزکوة يې په نجلۍ باندې لازم دي اوکه دهغې په پلار يامورباندې؟

**ځواب** : که دغه ګېڼه يې بالکل د نجلۍ ملک ګرزولې وه ،نو د هغې زکوة د نجلۍ تر بلوغ مخکې نه پر پلار اونه پرمور فرض دي اونه پر نجلۍ باندې ؛ اوتر بلوغ وروستو بياپر نجلۍ فرض دي. اوکه يې د

هغې ملک نه وه ګرزولې ،نو بیا په هغه چاذکوة فرض دي چې د هغې ګېڼې مالک وي – (فتاوی محمودیه۱۱ج ۱۳۲مخ)

## انجلۍ ته چې والدینو (موراوپلار) کومه ګېڼه ورکړې وي دهغې زکوة په چافرض دي ؟

**پوښتنه** :د زید مېرمنې ته چې مور اوپلار کومه ګېڼه ورکړې ده دهغې زکوة به زید اداء کوي اوکه د هغه مېرمن ؟

**ځواب** : د دغې ګېڼې زکوة به د زید مېرمن اداء کوي ،پر زید باندې د دغې ګېڼې د زکوة اداء کول نشته ؛ اوکه زید شتمن ؤ او د خپلې بي بي له طرفه یې زکوة اداء کاؤ،نو کولای شي چې اداء یې کړي – او ددېرو کلونو زکوة په جلا جلا ډول لېږل ،لږ،ورکول هم صحیح دي.
(فتاوي دارالعلوم ۶ج ۲۶مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۲مخ)

## که په مهر کې ګېڼه ورکړله شوه ،نوزکوة به یې څوک اداء کوي ؟

**مسئله** : څرنګه چې دغه ګېڼه د مېرمنې مهر (ولور) کې ورکړله شوې ده نودا یې مالکه ده او زکوة یې هم د هغې په ذمه دي ،خاوند یې له زکوة ورکولو خلاص دي.(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۵۴مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۳مخ)

## د عرف (رواج) مطلب

شریعت نارینه ته دغه ازادي ورکړېده چې مېرمنې ته کومه ګېڼه جوړوي هغه تر خپل ملکیت لاندې وساتي او د کم ،کم وخت لپاره یې مېرمنې ته ورکوي او بېرته یې ورنه اخلي ،اویاداچې په پوره ډول یې خپلې مېرنې ته وسپاري او هغه یې مالکه وګرزوي. په یو صورت کې هم شریعت په تاسو بندیزنه لګوي اوس به رواج ته کتل کیږي چې په کومه کورنۍ کې د ګېڼې په اړه هر ډول رواج وي هغه د همدي

مثالونو په بناء وي. له لسو څخه نېولې تر سلو پورې به داسې پېښې شوې وي چې ورته داخبره واضحه شوې وي چې د کورنۍ سرې خپلو مېرمنو ته ګېڼې دلنډوخت لپاره ورکوي او که يې د تحفې په ډول – که دغه ګېڼه ورته د تحفې په ډول ورکوله کېږي نو مطلب يې داشو چې مېرمن يې مالکه ګرزي. په داسې صورت کې که د کورنۍ هر غړي مېرنې ته ګېڼه ورکړي او دورکړي په وخت يې داخبره ده چې هغه د مېرمنې ملک ګرزي، او که خاوند نه غوښتلای چې هغې ته دغه ګېڼه په تحفه کې ورکړي، نو پرې لازمه وه چې دورکولو پروخت يې داخبره سپينه کړې وای چې زه يې د کم وخت لپاره ورکوم که د عملي مثالونو په بناء د کورنۍ خلک په دې پوهېږي چې لماسره چې کومې ګېڼې دي او ښځوته ورکول کېږي د تحفې په ډول نه بلکه د کم وخت لپاره ورکړل کېږي نو ظاهره خبره ده چې د دغې کورنۍ کوم سړی چې خپلې مېرمنې ته ګېڼه ورکوي او هيڅ ډول وضاحت نه کوي نو د، هغه په اړوند دافکر کېږي چې د کورنۍ د پېژندل شوي رواج سره سم يې د کم وخت لپاره ورکړې ده، نه د تحفې په ډول. نو ځکه مېرمن د هغې مالکه نه ګرزي. (رفعت قاسمي)

## د انجونو لپاره په اخستل شوؤ سرو زرو باندې د زکوة حکم

**پوښتنه** : زمادرې لونې دي ماد هغودواده لپاره شل تولې سره زر اېښي دي او سربېره پر زرو لوښي، جامې او سامانونه هم دي؛ ایاپه دغو شيانو به زکوة وي او کنه؟

**ځواب**: که تادغه سره زر دلونو ملک ګرزولی وي، نو تر بلوغ پورې پر دوی باندې واجب نه دي؛ اوله بلوغه ورسته چې هره يوه دنصاب

خاونده وه پر هغې باندي زکوة واجب دي ، اوکه دې دغه سره زر د
هغوملکیت نه ؤ ګرزولي ،نو بیا د دوی مالک ته یې اوزکوة یې
درباندې فرض دي .او جامې ،لوښي او د استعمال نور شیان چې د
دوی لپاره دي ایښي دي په هغو باندې زکوة نشته .(آپ کي مسائل ۳ج ۳۴۵مخ)

**ګېڼه د چاپه نامه کول له زکوة څخه د خلاصون لاره نه ده :**

**مسئله** : که یو څانجلۍ د ګېڼې مالکه وګرزوله نوتر هغه وخته پوري
چې هغه بالغه شوي نه وي زکوة ورباندې نشته ؛کله چې هغه بالغه
شي او دغه زر اورسره نوري روپۍ په ګډه حد د نصاب ته ورسېږي
،نو بیاورباندې زکوة فرض دي .صرف دغه نیت چې زه به دغه ګېڼه د
نجلۍ په جهیز( هغه مال چې د پلار کور وال یې د لور دواده پر وخت
په هغې پسې ورکوي ) کې ورکوم سړی له زکوة ورکولو څخه نه
خلاصوي ،تر څوچې انجلۍ د دغې ګېڼې مالکه نه وي ګرزوله شوې
،او وروستو له دې چې انجلۍ د ګېڼې مالکه وګرزوله شي نو بیا بل
چاته د هغې استعمال روانه دي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۴۸)

**ایاد مهر تر وصول کېدلو پرومبی زکوة شته ؟**

**پوښتنه** : د ښځې مهر چې لاخاوند اداء کړی نه وي نوپه دغه صورت
کې د ښځې په ذمه د مهر زکوة واجب دي اوکنه ؟

**ځواب** : د مهر د ترلاسه کولو له مخه په مهرباندې زکوة نشته.

(فتاواي دار اللوم ۲ج ۵۷مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۳مخ)

**مسئله** : د امام ابوحنیفه رح د مذهب د پیروړیانو په نزد د پوره مالک
جوړېدلو معني دا ده چې مال به د هغه په قبضه کې وي –که یو څوک
د داسې شي مالک وګرزېدو چې لایې هغه شی په قبضه کې نه ؤ ،لکه

دبنځې مهر ، چې لاد هغې ترلاسه نه وي رسېدلی ،نو په هغه مال باندې زکوة واجب نه دي .همدارنګه په هغه مال باندې هم زکوة نشته چې د يوچاپه قبضه کې وي او ملک يې نوي ،لکه د هغه چامال چې قرضدار وي ځکه چې مال خوظاهرا د هغه په قبضه کې دی ،خو ملک د بل چادي. (کتاب الفقه علي المذاهب الاربعه۱ج ۹۲۱مخ)

په هر ( ولور ) باندې مخته تر رسېدلو زکوة نشته ، له رسېدلو وروستو چې پوره يو کال په هغو روپو باندې تېر شي ( چې ورباندې په دوه نيم پرسلوکې زکوة واجبېږي ) ،نو بيا زکوة فرض دي ، او کومې روپۍ چې دکال په مېنځ کې په مصرف ورسېږي په هغوباندې زکوة نشته. (رفعت قاسمي غفرله)

## مهر (ولور) لرونکې مېرمنې ته د زکوة ورکول

**مسئله** : د يوې مېرمنې مهر درې زره روپۍ دي ،مګر خاوند يې دومره غريب دي چې هغه نشي اداء کولای ،نو دغې مېرنې ته هم زکوة ورکول صحيح دي. او هغې مېرمنې ته چې خاونديې شتمن وي مګر مهر نه اداء کوي اويامېرمنې ورته خپل مهر بخښلی وي ،هم زکوة ورکول صحيح دي مګر د کومې مېرنې سره چې دا اميد وي چې هرکله زه له خاوند څخه مهر وغواړم نو هغه مې مهر اداء کوي نو هغې ته د زکوٰة ورکول روانه دي. (امدادالمسائل زکوة ۷۴مخ)

## ايادمېرمنې مهر د زکوة د وجوب مانع ګرزي ؟

**مسئله** : که يو څوک د نصاب خاوند شي ،نوزکوة به هغه وخت ورباندې فرض کېږي چې په هغه باندې دومره قرض نه وي چې که ټول اداء کوي ،نو د نصاب په اندازه مال به ورسره پاته نشي خو هغه قرض

چې د الله ﷻ وي لکه کفاره ،سرسایه ،حج اوداسې نور هغه ورڅخه وتلي دي، (خلاصة الفتاوی۱ج ۲۴۰ مخ )
اوکه له چاسره د قرضوتر اداء کولو وروستو دومره څه پاته نشي چې نصاب ورنه پوره شي ،نو په هغه باندې زکوة نشته په دغه بنیاد ویلای شو چې که د مېرمنې د مهر له اداء کولو وروستو نصاب موجود پاته نه ؤ نو زکوة واجب نه دي. اوکه په کمو سیموکې داسې ؤچې مهر ډېر رواج نه ؤ یعنې ډېر ځله مېرمنو هغه خپلو خاوندانوته وربخښلونودغه قرض بیاپه زکوة باندې اثرنه اچوي او زکوة واجب دي- په فتاوي عالمګیري کې راغلي دي چې که په سړی باندې مهر مؤجل ( چې سمدستي يې اداء لازمه نه وي ) وي او دهغه دژر اداء کولواراده نه لري نو دغه قرض دزکوة د وجوب مانع نشي ګرزېدلای.
(فتاوي عالمګیري ی:۱ج ۸۹مخ جدید فقهي مسائل ۲۲۴ مخ )
**مسئله** : د خاوند په زمه دمهر پورواجب دي ،هغه که معجل ( ژرغوښتونکی ) وي او که مؤجل ( ځنډېدلی ) وي مګر خاوند کوشش کوي چې څومره ژرکېدای شي باید مهر اداء کړي او د دې لپاره روپۍ جمعه کوي ،نو دغه رنګه قرض مانع د وجوب د زکوة ګرزي. که پر دومره روپو برسېره (چې مهر ورباندې اداء کېدای شي ) له هغه سره نور مال دومره ؤ چې حد دنصاب ته رسېدلی ؤ نو په هغه باندې زکوة شته ،او که نه ؤ بیانشته .اوکه خاوند يې داداء کولو په کوشش کې نه ؤ اودايې پوره باور ؤ چې نه به يې اداء کوم ،نو دغه رنګه پور بیاد زکوة د وجوب مانع نشي ګرزېدلای. (فتاوی محمودیه ۱۳ج ۱۰۴مخ )

## مېرمنې ته د مهر په رسېدلوسره د زکوة حکم :

که یوه نجلۍ چاته په نکاح کړله شوه او بیاورته ټول مهر راغلي اوتر یو کاله پوري د هغې په قبضه کې ؤله دې وروستو د هغې خاوند هغه له ورنژدې کېدلو ( خلوت صحیحه ) له مخه طلاقه کړه اوله ورکړل شوي مهر څخه یې نیمايي بېرته ورکړ ،نو که هغه مهر د سرو او سپینو زرو له قسمه څخه ؤ بیا به هغه مېرمن د ټول مهر زکوة اداء کوي. اوکه په نغدي ډول نه ؤنو بیابه دنیمايي مهر زکوة اداء کوي. (علم الفقه ۴ج ۳۳مخ)

## په مهر کې د ورکړل شوې ځمکې د زکوة حکم :

**پوښتنه** : ماځه ځمکه د تجارت په نیت اخستې ،اوس غواړم چې ټوله اويايوه برخه يې د خپلې مېرمنې د مهر په بدل کې ورکړم. آيا زماپه مېرمن باندې به د دغې ځمکې زکوة واجب وي .که چېرې هغې وربانديې د کور جوړلو اراده لرله ؟

**ځواب** : ستاپه کورودانه باندې د دغې ځمکې زکوة فرض نه دي ، که يې ورته د تجارت نيت وي او که د کور جوړولو .خوکه يې د مهر په بدل کې له تاڅخه د اخستلو پروخت پکې د تجارت نيت کړی ؤ ،نو بيا وربانديې زکوة واجب دي. (احسن الفتاوی ۴ج ۲۲۵مخ)

**مسئله** : د مثال په ډول د مېرمنې ولور لس خرواره غنم ؤ، د رسېدلو پروخت هغې پکې د زکوة نيت وکړ اوويې ويل چې دغه غنم به خورم نه ،بلکه تجارت به پکې کوم ،نو صرف د تجارت د نيت په کولو سره زکوة نه واجب کېږي تر څوچې تجارت يې تر سره نشي. (احسن الفتاوی ۴ج ۲۳۵، ردالمحتار ۲ج

## ایاد استعمال پر ګېڼوزکوة شته ؟

**مسئله** : د سرو او سپینوزرو ګېڼه چې د نصاب تر حده ورسېږي بیاکه استعمالېږي او کنه زکوة ورباندې فرض دي. (هدایه۱ج ۱۷۷مخ )

## پر اشرفۍ ( دسروزرو سکه ) باندې زکوة

**پوښتنه** : ایازکوة په دواړو ډولونو سرو او سپینو زرو کې شته او که د اشرفۍ د شکل په سرو او سپینو زرو کې ؟

**ځواب** : په دواړو باندې زکوة واجب دي یعنې د چېڼو او اشرفیو دواړو په شکلونو باندې (چې تر اندازې دنصاب ته رسېدلي وي ) زکوة فرض دي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۲۵مخ )

## ګېڼې ته د کچه شیانو ورګډول او غمي پکې لګول :

**مسئله** : د زرو په ګېڼه کې چې غمي لګول شوي وي په هغوباندې زکوة نشته ځکه چې هغه ورڅخه لیري کېدای شي خو هغه کچه شیان لکه پتل او نور چې له سرو زر وسره ګډ شوي وي هغه د دوی په وزن کې شمارل کېږي، د دغه رنګه ګېڼې چې څومره بازاري قیمت وي په هغه اندازه دې زکوة اداء کړي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۲۵مخ )

## د هغې ګېڼې زکوة به څنګه اداء کوي چې نور شیان پکې اېښودل شوي وي ؟

**پوښتنه** : څه ګېڼه ده چې په کنډې شیانو ښایسته شوې ده او په ځینو کې غمي بند شوي دي که یې ورڅخه راباسي نو ګېڼه خرابېږي ،او که اندازه یې لګوینو نشي کولای سمه یې اندازه کړي .که سره زرتر نصاب کم ؤنو دهغه زکوة به له سپینو زرو سره ګډورکوي او که به د

دواړوزکوة جلاداء کي ؟ د سرو او سپینو زرو زکوة به له یوه شي څخه اداء کوي اوکه به د دواړوزکوة له خپل خپل جنس څخه اداء کوي ؟اوکه په زکوة کې ګڼه ورکړل شي نو څه منعه پکې شته اوکنه ؟

**ځواب** : د هغو باید لومړی سمه اندزه ولګوله شي او بیایې زکوة ورکړل شي ،مګر اندازه کونکي ته باید دا وویل شي چې تر څو کېدای شي ،احتیاط په نظر کې لره ،او په دغه صورت کې که سره زرقېمت کوي اوبیا یې سپینو زروته ورګډوي او له سپینو زرو څخه زکوة اداء کي داهم سمه ده اوکه یې له سرو زرو څخه اداء کوي هم سمه ده -لنډه دا چې د دوادړوزکوة له یوه څخه ورکول صحیح دي اود دوه نیم فیصدپه حساب دي زکوة ورکړي. په زکوة کې د زرو په ورکولو کې هیڅ منعه نشته. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۱۹ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۴۵مخ)

## په کومه ګڼه کې چې جواهر کارول شوی وي ؟

**مسئله** : که د سرواو سپینو زرو ګڼه وه او جواهر پکې ،ښودل شوي ؤ ،نو د هغې ګڼې زکوة به د سرو اوسپینو زرو په اندازه ورکول کېږي - یعنې په جواهرو باندې زکوة فرض نه دي بلکه په سرو او سپینو زرو باندې زکوة فرض دي( کفایت المفتي ۴ج ۲۲۹مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۴۲مخ )

## د خالصوجواهرو د ګڼوحکم :

**مسئله** : په جواهرو ،لکه زمرود ،لعل ،یاقوت اونوروباندې زکوة فرض نه دي ،په دې شرط چې هغه د تجارت لپاره نه وي.
(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۳۳مخ )

**مسئله** : هغه ګڼې چې صرف له جواهرو څخه جوړي شوې وي ،دهغو حکم دا دي چې که د تجارت لپاره نه وي ،نو زکوة ورباندې نشته.
( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۳۰ مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۸۱ خ . وفتاوي محموديه ۲ج ۷۱مخ )

**مسئله** : د سچه ملغلرو په هار او نورو شیانو باندې زکوة نشته ، خو که د تجارت لپاره ؤ بیا وربانديې شته . (بهشتي زیور ۳ ج ۲۵ مخ و رد المحتار ۲ ج ۱۳۱ مخ )

**مسئله** : له سرو او سپینو زور څخه بغیر ، په نورو شیانو باندې ، لکه جواهر ، مرجان زبرجد او الماسو څخه جوړو شوؤ ګهڼو باندې ( چې سره او سپین زر ور ګډ نه وي ) زکوة نشته . (فقه الزکوة ۲ ج ۲۷۷ مخ )

## په کومو زیوراتو کې چې عیب جن شیان لکه پتل او نور ورګډ کړل شوي وي

**پوښتنه** : له ماسره چې کومې جوړې کړل شوې ګهڼې دي هغو ته درېیمه برخه عیب جن شیان لکه پتل او نور وړګډ شوي دي ، دد غه رنګه ګهڼې زکوة په څه ډول اداء کېږي ؟

**ځواب** : په کومو کې چې تر نیمایي زیات سره زر وي ، نو هغه ګهڼه داسې ده لکه څوله چې د سرو زرو وي ، او د خالصو سروزرو په ډول یې زکوة واجب دي . (فتاوي دار العلوم ۲ ج ۱۱۵ مخ بحواله رد المحتار ۲ ج ۲۴ مخ )

**مسئله** : په فیروزه ، یاقوت او نورو باندې زکوة واجب نه دی . د هغو وزن به له ګهڼې نه جلا کوي او بیا به د سرو او سپینو زرو زکوة اداء کوي . (فتاوی محمودیه ۱۳ ج ۱۱۳ مخ )

**یادونه** : که یوڅاد شوق لپاره الماس او جواهر له ځان سره ساتلي ؤنو زکوة یې وربانديې نشته ، همدا رنګه که یې د زکوة نه د بچ کېدلو له خاطره دغه حیله جوړه کړه ، نو هم د شریعت په اعتبار د امام ابوحنیفه رح په نزد زکوة وربانديې نشته مګر څرنګه چې په دې سره د غریبانو حق له مېنځه ځي ، نو دغه نیت ته په کتو سره دا وېره شته چې خدای ﷻ دي هغه په دغه عمل سره ونیسي . *(مولانا رفعت قاسمي)*

## د ګڼوډو شیانو د زکوة حکم :

**مسئله** : د حنفي مذهب په نزد په ګڼوډو شیانو کې هغه شی ( چې په دغه ګېڼه کې سره ګډوي لکه پیتل ، سرول ، ترامه سره او سپین زر او داسې نور ) معتبر دي چې اندازه یې زیاته وي. هغه که سره زر وي که سپین اوکه بل شی. اوکه له سرو زرو سره سپین اویاله سپینو سره ، سره زر ګډ ؤ ،نو د هغه قسم په اعتبار به یې زکوة اداء کول کېږي کوم چې ډېر وي .په دې شرط چې حد د نصاب ته به رسېدلي وي

( کتاب الفقه۱ج ۹۹۲مخ و رد المحتار۲ج ۵۴مخ )

## د سچه نقش لرونکو،او کچه نقشوکپړو د زکوة حکم

**پوښتنه** : د مېرمنو د لوړقېمته جامو ( چې پکې سپین زر کارول شوي وي ) زکوة باید څنګه اداء کړل شي ځکه چې دا اندازه یې نشي لګول کېدای چې څومره ژربه کاورل شوي وي ؟

**ځواب** : هغه زري ناروته چې په بنارسي اونورو کپړوکې ورنه کار اخستل شوی وي ،پخپله یابل داسې چاباندي چې پرې پوهېږي باید اندازه شي او زکوة یې اداء کړل شي .او د سچه سپینو زرو او نورو د نقلي نقش هم باید اندازه ولګوله شي – د هغو اندازه کول اسان دي د مثال په ډول د نقش دغه رنګه تان دي وتلل شي او بیا دې معلومه کړل شي چې وزن یې څومره دی لنډ داچې په دغه رنګه ځایو کې اندازه کافي ده ،خواندازه تر خپله وسه باید په داسې ډول ولګوله شي چې کموالی خوپکې بالکل ونه شي او زیادت که وشي اوکنه.

( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۳۱مخ بحواله هدایه۱ج ۷۷مخ )

**مسئله** : د استعمال په لوښو او جامو(کپړو ) باندې زکوة نشته خو که پکې د سچه سرو یاسپینو زرو کارشوی وي نو بیا ورباندې زکوة

واجب دي .همدارنګه د تجارت په سامان او کپړوباندې هم زکوة واجب دي. (فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۵۳مخ بحواله درمختار مع شامي ۲ج ۱۰خ )

**مسئله** : کپړې چې هر څومره لوړقیمته وي ،زکوة ورباندې نشته مګر که په هغوکې دسچه سروياسپينو زرو اندازه دومره وي چې که ورڅخه بېل شي نو (۵۲نیمي ) تولې سپین زر ورڅخه جوړشي ، نوپه دغوسپينو زرو باندې زکوة واجب دي ؛ او که تر دې کم ؤ بيا ورباندې زکوة نشته. (بهشتي زيور بحواله جوهر النيره ۱۱۷مخ)

## هغه شتمني چې دوارثانو لپاره ساتله شوې وي :

**پوښتنه** : يو چاخپل جایداد په خپل ژوند کې خرڅ کړاو دهغه روپۍ يې له ځان سره کېښودلې چې دهغه له مړينې وروستو بيې دهغه وارثان ورواخلي ،آيا په هغه باندې د دغو روپو زکوة واجب دي او کنه ؟

**ځواب** : فی الحال دغه سړی د هغومالک دي ، نو ځکه يې ورباندې زکوة واجب دي - ( فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۵۴مخ )

## له مړي څخه په پاته شوي ( مېراث ) کې د زکوة حکم

**پوښتنه** : يوې مېرمنې ته چې اولادونه هم لري له وفات شوي خاوند څخه نزدې څلويشت زره روپۍ پاته شوې ،ايا په هغې باندې زکوة واجب دي ؟

**ځواب** : دغه روپۍ دي دشريعت له قانون سره سمې تقسيم شي .که دهريوه په برخه کې دومره څه ورسېدل چې نصاب پوره ؤ ،نو په بالغانو يې زکوة فرض دي اوپه نابالغوباندې زکوة نشته .(آپ کي مسائل ۳ج ۳۹۲مخ )

## د تيروکلونو د زکوة حکم :

**مسئله** : د هغوکلونو د زکوة د اداء کولو لپاره چې نه دي اداء شوي دا وخت بل صورت بغير له دې نشي جوړېدای چې په خپل خيال اوفکر

سره د هغو کلونو اندازه ولګوله شي (چې زکوة پکې نه دي اداء شوی ) چې په هر کال کې نژدې څومره روپۍ موجودې وي. د څومره روپو خیال چې د هغه په ذهن کې ورغلی ، د هغو زکوة ته دې حساب وکړي او بیا دې هغه اداء کړي. او احتیاط په دې کې دی چې اندازه باید په داسې ډول ولګوله شي چې د هغه په خیال کموالی پکې نه وي بلکه لږ څه زیادت وي. (فتاوی دار العلوم ۲ج ۳۳۷مخ )

## که د تېرې زمانې زکوة معلوم نشو بیا باید څه وکړي ؟

**پوښتنه** : کله چې د زکوة درقم سم شمارلو کار د زکوة د واجبېدلو له مدې سره برابرول سخت شي (ځکه چې د سرو زرو د قیمت تر لاسه کول مشکل دي ) نو بیا به زکوة څه ډول اداء کوي ؟

**ځواب** : په دغه صورت کې دا اندازه لګوله کېدای شي ، چې نژدې دومره روپۍ د زکوة به په ما واجب شوې وي ، خو د احتیاط په وجه دې تر اندازې څه زیاتې اداء کړي. ((آپ کي مسائل ۳ج ۳۳۷مخ )

## که یوې مېرمنې دواده له زرو ځخه ډېرکلونه زکوة اداء نکړ ؟

**پوښتنه** : زماد واده لس کاله شوي دي اوزماله مېرمنې سره دواده له ورځې څخه بیا تر اوسه نژدې (۸۰ تولې سره زر دي او تر اوسه یې ځکه ورځخه زکوة نه دی اداء کړی چې زمونږ آمدني دومره نه ده چې له ضرورت څخه زیاتې شي او زکوة وربانديې اداء کړو. نو زکوة یې ځنګه کړو ؟

**ځواب** : د دغو (۸۰ ) تولو سروزرو زکوة ستاپه ذمه نه ،بلکه ستا د مېرمنې په ذمه دي. که د زکوة اداء کولو لپاره روپۍ نه وي، نو له زرو څخه دې دومره څه په زکوة کې ورکړي چې زکوة وربانديې اداء کېږي. په هرحال د تېروکلونو زکوة ستاپه مېرمن باندې پاته دي. هرکال ته دې حساب وکړي څومره زکوة چې جوړېږي هغومره دې اداء کړي. (اپ کي مسائل ۳ج ۳۴۸مخ )

## زکوة به د اخستلو د وخت له قیمت څخه اداء کوي اوکه له موجوده قیمت څخه ؟

**پوښتنه** : د مال د هغه وخت له قیمت څخه به زکوة اداء کوي چې پکې اخستی یې دي اوکه د موجوده قیمت څخه ؟

**ځواب** : کوم قیمت چې د زکوة اداء کولو پروخت دي هغه د اعتبار وړي دي. او د زکوة حساب دادی چې یابه څلویښتمه برخه په زکوة کې ورکړي او یا دهغې قیمت. (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۲۱مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۳۰مخ)

**مسئله** : د زکوة په اداء کولو کې دهغه ځای قیمت معتبر نه دي چې زکوة ورکونکی پکې اوسي ، بلکه د هغه ځای د قیمت په حساب به زکوة اداء کوي چرته چې مال دي — او د کال ګرزېدل هم د هغه ځای معتبردي چرته چې مال وي — (احسن الفتاوي ۴ج ۲۲۸مخ)

## د سپینو او سرو زرو زکوة به په کوم نرخ ورکوي . ؟

**پوښتنه** : د جوړو شوو او ناجوړو سرو زرو نرخونه خو سره جلاجلادي ، په کوم نرخ باندې باید زکوة ورکړل شي ځکه چې په بازار کې د اخیستلو قیمت یو ډول ، او د خرڅولو قیمت بل ډول دي . که مسکینانو ته په زکوة کې سره زر ورکړل شي نو په دې کې د دوی تاوان دي ، ځکه چې د بازار خلک یې ورنه په کم قیمت اخلي.

**ځواب** : په کوم قیمت چې دوکاندار هغه خرڅوي دهغه قیمت په لګولو سره باید زکوة اداء شي . او که مسکین ته په زکوة کې سره زر ورکول کېدل ،نو د ټولو څخه دي څلویښتمه برخه ورکړله شي او په دې سره هم زکوة اداء کېږي . دا بیا دفقیر کار اوخوښه ده چې په هر څومره قیمت یې خرڅوي . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۱۲۴مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۲۰مخ)

که چاد سرو او سپینو زرو په قیمت سره زکوة ورکاؤ ،نو هغه قیمت باید ورکړي کوم چې د زکوة ورکولو په وخت په بازار کې دي – ځکه چې د اخستلو د ورځې د قیمت هیڅ اعتبار نشته. او په قیمت کې باید د خرڅولو قیمت یعنې هغه قیمت ورکړی چې په دغه ورځ وربانديې سره او سپین زر اخستل کیږي –( محمد رفعت قاسمي )

**مسئله** : د سرو او سپینو زرو په زکوة ، او عشر کې د هغه وخت قیمت معتبر دي په کوم وخت چې واجب شوی دي. خو په څرېدونکو ( لکه وزه مېږه غوا او نورو ) کې د زکوة لپاره هغه قیمت معتبر دي کوم چې د اداء په وخت کې وي. ( احسن الفتاوي ۴ج ۲۲۸مخ )

## که نرخ معلوم نه ؤ بیا باید څه وکړي؟

**پوښتنه** : که د زرو سم نرخ معلوم نه ؤ او زکوة ورکونکی اندازه د نرخ ولګوله او له هغه قیمت سره سم یې زکوة اداء کړچې درې یا څلور میاشتې له مخه وه ،نو زکوة یې اداء کیږي او کنه ؟

**ځواب** : اصلاخو داسې ده چې باید دهغه وخت د قیمت پیدا کولو پوره زیار وایستل شي په کوم چې اداء کیږی. خو داچې د دریو (۳) یا (۴) میاشتو په مده کې زیات فرق نه پیدا کیږي ،نو که په احتیاط سره په پورتنی طریقه زکوة اداء کړي.نو زکوة یې اداء کیږي.
( فتاوي دارالعلوم ۲ج ۱۳۱خ بحواله رد المحتار ۲ج ۳۰ مخ )

## په قرضو باندې زکوة :

**مسئله** : که څوک چاته روپۍ قرض ورکړي نو دهغوروپو وربانديې زکوة شته او کنه ؟

**ځواب** : د دغو روپو زکوة به وروستو له ور رسېدلو اداء کوي خو که مخته تر رسېدلو يې اداء کړي هم صحيح دي. (فتاوي دار العلوم ۲ج ۴۵مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۱۲مخ)

**مسئله** : که ورکړل شوی قرض تنها يا له نورو موجودو روپو سره په ګډه د نصاب تر اندازې پورې رسېدی نو زکوة ورباندې واجب دی مګر اداء کول يې د قرضو تر ور رسيدلو وروستو لازمېږي او که تر دې له مخه چې ورکړل شوی قرض يې لاس ته ورسېږي زکوة ورکړي هم زکوة يې اداء شوی دي. او د زکوة په حکم کې هغه قرض چې د ضمانت په ډول يې په بدل کې څه شي اېښودل شوی وي او له نه اېښودل شوی سره هېڅ فرق نه لري - د دواړو زکوة وروستو له وصول کېدلو څخه لازمېږي - او د دې خبرې ځواب ( چې د زکوة په ورکولو سره به ټول هغه نصاب له منځه لاړشي کوم چې تجارت ورباندې نه کېږي ) دا دی چې کله د زکوة په ورکولو سره روپۍ تر نصاب کمې شي هغه وخت تاسو له راتلونکي زکوة څخه خلاص شوئ او تر څو پورې چې د نصاب په اندازه روپۍ پاته وي ،نو د زکوة واجبېدل د عقل خلاف نه دي ،ځکه چې يو څوک د نصاب مالک وي هغه ته په شريعت او رواج دواړو کي غني ( شتمن ) ويل کېږي ، او د عقل او مېړانې تقاضا دا ده چې غني ( شتمن ) بايد د محتاجانو حال وپوښتي او هغوته څه ورکړي. ( فتاودار العلوم ۶ک ۵۲مخ بحواله هدايه ۱ج ۷۷مخ )

## کوم قرض چې سوکه سوکه وصول کېږي د هغه زکوة :

**مسئله** : کوم وخت چې څومره اندازه قرض وصول کېږي له هغو څخه بايد د تېرو کلونو زکوة هم اداء شي. او که د قرضو په بدل کې ورته

ځمکه ورکړله شوه نو هم خپل قرض يې ورته ورسېدلو اودتېرو کلونو زکوة وربانديې لازم دي. (فتاوي دارالعلوم ٦ج ٨٥مخ بحواله رد المحتار ٢ج ٤٨مخ)

## دکوموقرضوچې د بېرته لاس ته راتلو اميدنه وي:

**مسئله**: يو چاچې بل ته قرض ورکړي وي دهغه زکوة وربانديې تر بېرته لاس ته رواړلو وروستو واجب کېږي. نو ځکه خو د هغوقرضو چې دبيالاس ته راتلو اميد يې نه وي زکوة هم واجب نه دي.

(فتاوى دارالعلوم ٦ج ٧٧مخ بحواله رد المحتار ٢ج ١٢مخ)

## که يو چا د قرضود بياتر لاسه کول اميد نه لرلو خو بياورورسېدل:

**مسئله**: څه وخت چې د قرض ورکونکى خپل قرض واپس لاس ته ورسېدل نو هغه وخت وربانديې د تېروکلونو زکوة ورکول هم واجب شو. او تر څوچې ورته رسېدلي نه وي تر هغه وخته يې زکوة هم واجب نه دى، مګر هوڅوهره وخت وروستو چې ورته ورسېدل نو د تېرو کلونوزکوة يې واجب دي. فتاوى دارالعلوم ٦ج ٧٧مخ ردلامحتار ٢ج ١٢مخ)

## د قرضوزکوة د چاپه ذمه دي؟

**پوښتنه**: لس مياشتي له مخه زيد بکر ته شل زره روپۍ قرض حسنه ورکړې وې، د اداء کول ومده يې معلومه نه وه، بکر لس زره روپۍ په کور اخستلو اولس زره په کار بارکې بندې کړې، د ګټې له روپو سره اوس زياتې شوې دي او (١٣) زره شوې دي آيا په دغه صورت کې زکوة واجب دي؟ اوکه واجب دي، نو په څه ډول؟

**ځواب**: اصل خبره دا ده چې يو څوک چاته قرض ورکوي نو زکوة به يې د قرض ورکونکي په ذمه وي، نه د قرض اخستونکي په ذمه. نو

زيدچې بکرته شل زره روپۍ قرض ورکړې دي د هغوزکوة د زيد په غاړه دي ؛ نه دبکر . له بکر سره چې کومه مجوعي سرمايه ده ،که په کار وبار يې لګولې وي او که يې ورباندې سره اوسپين زر اخستي وي ، له هغې تولې څخه دي شل زره روپۍ جلاکړي .هغه پاته سرمايه که د (۵۲ نيمو ) تولو سپينو زرو د ماليت په اندازه وه ،نو په بکر يې زکوة واجب دي -(آپ کي مسائل ۳ج وکفايت المفتي ۴ج ۲۵۱مخ )

## که يو چابل چاته قرض ورکړل او هغه بيانه پرې کول :

**پوښتنه** : ځوکاله له مخه راڅخه دوستانوڅه قرض اخستي ؤ . د واپس کولو نېټه موسره نه وه ليکلې - ځوځلي مي ورنه مطالبه هم وکړه ،پنځه کاله تېر شول خوبيا هم د اميد نښي نښانې نشته او اوس زه ورڅخه نااميده شوی يم او ورڅخه غوښتل مي پرېښي دي، اياپه دغو روپو باندې چې له ما سره نه دي زکوة شته اوکنه ؟

**ځواب** : په هغو روپو باندې چې چاته قرض ورکړل شوې وي زکوة لازم دي .خو دايې دخاوند خوښه ده چې د هر کال زکوة د کال له پوره کېدوسره سم اداء کوي اوکه د تولو کلوزکوة له وصول کېدو څخه وروستو په يوه وار اداء کوي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۵۲مخ )

## د قرض اخستونکي د انکارپه صورت کې د زکوة حکم :

**مسئله** :که يو څوک په قرض اخستلو باندې انکار شواو له قرض ورکونکي سره د قرضودورکولو شواهد هم نه ؤ ،نو مخته تر دې په قرض ورکونکي باندې لازم نه دي تر څو ورته خپل قرض رسېدلی نه وي، او تر وررسېدلو وروستوهم د تېرو کلونوزکوة نشته.

(درمختار ۲ج ۱۵مخ . احسن الفتاوی ۴ج ۲۲۲مخ )

## که یو څوک د نصاب خاوند هم وي او قرض هم ورباندې وي :

**پوښتنه** : یو څوک دي چې د بل چا قرض ورباندې دي او له هغه سره د نصاب په اندازه سره زر هم شته ، نو ایا زکوة ورباندې شته او کنه ؟

**ځواب** : چې قرض ورنه لیري کړې او بیا له هغه سره د سرو او سپینو زرو ګېڼې پاته شي ، هغه که کارول کېږي او کنه که اوه نیمې تولې سره زر ؤ . او یا تردې کم ؤ مګر سپین زر یاد هغو ګېڼه ، یا نغدي روپۍ وې ، یاد تجارت مال ؤ او سره او سپین زر په ګډه سره دومره شو چې ورنه د سپینو یا سرو زرو نصاب جوړېدو ، نو زکوة ورباندې واجب دي ، او که دغومره نه ؤ بیا زکوة هم واجب نه دي . ( فتاواي رحیمیه ۵ ج ۱۵۵ مخ بحواله هدیه ۱ ج ۱۲۲ مخ )

## که څوک د زکوة تر فرض کېدلو وروستو قرضدار شو :

**مسئله** : که یو څوک د زکوة تر واجبېدلو وروستو قرضدار شو ، نو زکوة ورته بخښلی نه دي . زکوة به اداء کوي . ( احسن الفتاوی ۴ ج ۲۵۱ مخ )

**مسئله** : اصل خبره دا ده چې که له چا سره مال هم وي او قرض هم ورباندې وی نو هغه باید دا خبره ځانته معلومه کړي چې که قرض ورڅخه لیرې کړي نو له هغه سره به نور دومره څه پاته شي چې نصاب ورنه جوړېږي ( د ۵۲ نیمو ) تولو سپینو زرو د قیمت په اندازه ، او کنه ؟ که د قرض له جلاکولو وروستو هم د نصاب برابر شته ورسره پاتي شول ، نو که قرض ورباندي اداء کړي او که یې نکړي زکوة ورباندي واجب دي . او که رو سره پاتي نشول نو بیا ورباندې زکوة نشته .

( آپ کي مسائل : ۳ ج ۳۹۹ مخ )

## ایا قرض اخستونکی د قرضوزکوة اداء کولای شي ؟

**پوښتنه** : زید بکرته دوه زره روپۍ قرض حسنه ورکړې ، بیا د دواړو په خوښه د کال په پای کې بکر د زید له طرفه زکوة اداء کړ ، نو ایاله زید څخه زکوة ساقطیږي ؟

**ځواب** : که بل داسې څوک چې قرض یې نه وي اخستي اجازه واخلي اوبیا له خپلو روپو څخه د مال د خاوند له طرفه زکوة اداء کړي ، نوزکوة یې اداء شوی دي ، مګر بکرله زیدنه روپۍ قرض اخستې دي نو ځکه که هغه د زید له طرفه زکوة ورکوي نو د غه سود ګڼل کیږي او زکوة نه اداء کیږي او د زید په زمه زکوة پاته دی. (فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۴۸مخ)

## د مال د خاوند په اجازه د هغه له طرفه زکوة اداء کول :

**مسئله** : که یو چا د مال دخاوند په اجازه یاحکم سره د هغه له طرفه زکوة اداء کړ ،نو زکوة یې اداء شو . (آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۸مخ)

## د مال د خاوند بې اجازې د هغه له طرفه زکوة اداء کول

**مسئله** : که یوچا بل چاته هیڅ هم ونه ویل ،او د هغه بې اجازې یې له خپله طرفه دهغه زکوة اداء کړ، نوزکوة یې نه دی اداء شوی . که هغه وروستو ورته اجازه ورکړي هم زکوة یې نه دی اداء شوی او څومره روپۍ چې یې د هغه له طرفه ورکړې دي د هغو دوصول کولو هم حق نه لري. ( احسن الفتاوی ۴ج ۳۰۰مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۲ مخ . شامي ۲ج ۱۴خ )

## د زکوة له مال څخه د قرضدار قرض اداء کول :

**مسئله** : که څوک چاته قرض وروبخښي ،نو په دې سره دهغه زکوة نه اداء کیږي، د دې صحیح صورت دا دی چې قرضدارته د زکوة روپۍ ورکړي او بیا یې په خپلو قرضو کې ورنه بیرته واخلي، که قرضدار

يې بېرته نه ورکوي نو د مال خاوند کولای شي چې خپل قرض په زور ورڅخه واخلي. او که له زکوة ورکونکی سره داوېره وه چې هغه به زکوة قبول کړي خو زما قرض به اداء نکړي نو قرض دارته دي ووايي چې ماته د دې ضامن یاوکیل راکړه چې زه تاته زکوة درکړم ته به له هغه څخه زما قرض اداء کوې. (احسن الفتاوي ۴ج ۲۵۰مخ)

## د کونډې قرض په دې نیت اداء کول چې زه به یې له هغې څخه په زکوة کې راوګرزوم:

**پوښتنه**: یوه داسې کونډه ده چې زکوة ورکول ورته صحیح دي، که یو څوک د هغې قرض په دې نیت اداء کړي چې له هغې څخه به یې د راتلونکي کال په زکوة کې وګرزوم. آیا داسې کول روادی او کنه؟

**ځواب**: په دغه رنګه قرض اداء کولو سره زکوة نه اداء کېږي بلکه د هغې د قرضود اداء کولو طریقه داده چې څومره روپۍ ته دهغې کونډې په قرضو کې ورکوې هغه اول پخپله کونډې ته ورکړه او هغه د دغو روپو مالکه وګرزوه او بیا یې بېرته ورنه واخله او د هغې قرض وربانديې اداء کړه. په دغه ډول به ستا زکوة او دهغې به قرض اداء شي (فتاوی دار العلوم ۶ج ۸۹ مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۱۲مخ)

## دداسې روپو زکوة چې مالک ته رسېدل یې یقیني وي:

**پوښتنه**: زه داسې کار کریم چې د کار د پای ته رسېدلو روپۍ د ډېرو خلکو لخوا واجب الوصول کېږي. ایا په هغو به زکوة وي او کنه؟

**ځواب**: کارګرته چې کله تر کارکولو وروستو حق الزحمة (مزدوري) ورسېږي نو هغه وخت یې مالک ګرزي، نو که ته د نصاب خاوند یې نو د نصاب د کال تر پوره کېدلو چې څومره روپۍ ستالاس ته ورسېدلې

د هغوزکوة اداء کړه اوکومې روپۍ چې په راتلونکي کال کې ستا
لاس ته رسېږي د هغوزکوة به په هغه را روان کال کې اداء کوې
(آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۳مخ)

## کوم قرض چې په قسطوسره ترلاسه کېږي د هغوحکم:

اوکه داسې قرض ؤ چې په قسطوسره تر لاسه کېدل (یعنې په کال یا میاشت کې د روپو ټاکلې اندازه مالک ته ورکوله کېدله) نو داسې هم سمه ده چې څومره مال ورته رسېږي اوسمدستي دهغه زکوة اداء کوي. اوداهم سمه ده چې په یوځاي د ټول مال زکوة اداء کړي، یاتر ور رسېدلوله مخه یا وروستو. (فتاوی دارالعلو ۲ج ۹۲مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۱۵مخ)

## اياغريب ته د قرضوپه بخښلو سره زکوة اداء کېږي.؟

**پوښتنه**: زما پر یو غریت باندې سل (۱۰۰) روپۍ قرضه ده، که دا وخت زه دغه روپۍ دزکوة په نیت هغه ته بخښم؛ایازکوة به مې ادا شی کنه
**ځواب**: په دغه صورت کې ستازکوة اداء شوی نه دی ،د دې ښه لاره دا ده چې لومړی ته دغه سل روپۍ هغه ته دزکوة په ینت ورکړه او ددغوروپو مالک ئي وګرزوه او بیادي هغه دغه روپۍ بېرته تاته په اداءد قرضو کې درکړي ، په داسې ډول به ستا زکوة او دهغه قرض اداء کړي. (فتاوی رحیمیه ۲ج ۱۲مخ)

## په قرض بخښلوسره د زکوة حکم:

**مسئله**: که د قرض ورکونکي یو کال وروستو خپل قرض اخستونکي ته وبخښي ،نو قرض ورکونکی به ددغه تېر کال زکوة نه باسي اوکه هغه څوک چې قرض ورته بخښل شوی دي شتمن (مالدار) ؤ،نو هغه ته مال معاف کول به داسي بلل کېږي لکه د مال هلاک کول. او قرض

ورکونکي به تېرکال زکوة اداء کوي ځکه چې زکوة د مال په هلاک کولو سره نه ساقطېږي (امدادمسائل زکوة ۵۹مخ . فتاوی عالمګيري۲ج۲۱مخ)

## په ورکړل شوؤ قرضوکې د زکوة نيت کول :

**پوښتنه** : يو غريب سړي هغه قرض چې له بل چاڅخه يې اخستي وؤ بېرته نشو رسولای ، او نه يې د رسولو اميدؤ ،نو اياکه زه هغه قرض ورکړل شوي روپۍ هغه ته د زکوة په نيت ورپرېږدم ، نوزکوة به يې اداء شي کنه ؟

**ځواب** : کوم صورت چې تاليکلی دي په هغه کې ستازکوة نه اداء کېږي ،ځکه چې د زکوة د اداء پروخت نيت کول شرط دي.

**مسئله** : دغه روپۍ دي له هغه مسکين څخه يو ځلي وصول کړي بيا دې بېرته په نيت د زکوة ورکړي .(آپ کي مسائل ۳ج ۳۸۳مخ . فتاوی دار العلوم۲ج۱۰۱مخ بحواله درمختار۲ج۱۴مخ

## هغه قرضدار چې خپله ذاتي امدني هم ولري :

**مسئله** : يو څوک دی چې دوه زره روپۍ يې له چاڅخه قرض اخستې دي او ورسره څه داسي سرمايه هم ده چې دهغه د خپل کاروبار څخه ترلاسه شوې ده چې هغه تر قرضو کمه ده ،نو داچې سرمايه تر قرضو کمه ده نوځکه پر هغه باندې زکوة نشته. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۵۱مخ بحواله هدايه۱ج ۱۷۷مخ)

## دګروۍ پيسې چې پوره کال ساتلي شوې وي :

**مسئله** : يو چاد بل چاڅخه قرض واخستل اوبيايې د ګروۍ په ډول خپله ځمکه يانور څه هغه ورکړل نو ښکاره خبره ده چې ځمکه ورکونکی قرضداردی . او له قرض دار سره که صرف دومره روپۍ وې چې يواځې قرض ورباندې اداءشي ،نوزکوة ورباندې نشته ،نو که

له قرضدار سره د قرضو څخه علاوه نوري روپۍ یا ګېڼې د نصاب په اندازه نه وې ، نوصرف د قرضو د روپو زکوة ورباندې واجب نه دي.
( فتاوی دارالعلوم ۶ج ۵۳مخ )

**یادونه** : ګروي په پښتو اصطلاح کي هغه شي ته ویل کېږي چې قرض اخستونکی یې مقابل جانب ته په داسې ډول ورکوي چې دغه شی به تر هغه وخته ستا به واک کي وي تر څوزه ستا قرض واپس تا ته رسوم.
( حصیف غفرله الله )

## دګروشوي شي زکوة په چالازم دی ؟

دګروکړل شوي شي زکوة نه پر ورکونکي شته اونه پر اخیستونکي
.(فتاوي رحیمیه ۲جلد ۱۲مخ دشامی په حواله ۲جلد ۹مخ

## دقرضو په نوم زکوة ورکول

**مسئله** : یو چادرنه قرض وغوښتل اوتاته دامعلومه وه چې یاخو هغه دومره تنګ لاسی دی چې بیا به کله هم قرض ادا نکړای شي اویادومره بدسړی دي چې که پوروړکړم ،نو هغه یې بیابالکل نه اداء کوي دغه رنګه چاته که د قرضو په نامه زکوة ورکړل شي او په زړه کې ورته دزکوة نیت ولرل شي ، نوزکوة اداء کېږي ؛که څه هم قرض اخستونکی یې په دې نیت وراخلي چې ماته یې قرض راکړل.
( امدامسائل زکوة ۲۸مخ اوشامي ۱ج ۱۴مخ )

**مسئله** : د زکوة مستحق فقیر دوره غیرتمن دی چې که ورته معلومه شي چې دا دزکوة روپۍ دی نونه یې وراخلي ،اوکه ورته وویل شي چې قرض یې درواخله بیا یې وراخلي ؛ نوزکوة ورکونکی دي دغه فقیر ته ووایي چې دغه روپۍ قرض درواخله هر وخت چې خدای ﷻ درکړې هغه وخت به یې بیا راکړې اوپه زړه کې دی ورته دانیت

ونیسي چې دغه روپۍ زه دغه فقیرته په زکوة کې ورکوم ،نوپه دغه ډول زکوة اداء کېږي ؛ څه مده وروستو دي بیا ورته ووایي چې هغه روپۍ مادرته بخښلې دي ترڅو دهغه اطمنان وشي.(شامي ۲ج ۳۵۲مخ)

## که د قرضو (پور) ختلو امید نه وؤ:

**مسئله** : چاته موقرض ورکړل خوبیا موورنه د بیاترلاسه کولوامید ختم شو .اویا شک پکې پیداشوقرض اخستونکي یوه اوبله بهانه کوله ، نو ددغه رنګه قرضوزکوة تر وصول کېدلوله مخه لازم نه دی بلکه وروستوله وصول کېدلوبه یې اداء کوي اویاداچې څومره ورته وخت په وخت رسېږي دهغو دي زکوة اداء کوي.او دتېروکلونو زکوة ورباندې واجب نه دي. (امدادالفتاوی ۲ج ۳۵مخ فقه الزکوة ۱۸۳مخ)

## د تجارتي قرضوزکوة:

**مسئله** : که څوک د تهوک (عمده فروشي) په حساب مال خرڅ کړي او دقیمت دترلاسه کولو یې امید وي مګر دوخت په تېرېدوسره د دغوقرضو په وصول کېدلوسره په مالک باندې د تېروکلونوزکوة اداء کول هم لازم دي .څرنګه چې نن سبا په عمومي ډول په تجارتونو او کاروبارونو کې رواج دی. (ایضاح المسائل ۱۱۱مخ بحواله درمختار مع شامي ۲ج ۳۰۵مخ)

## قرضدارته دزکوة په ورکولوسره قرض وصولول:

**مسئله** :د زید په بل چاباندې روپۍ پور دي اوهغه قرضدارغریب دی ،نو که زید دارنګه حیله جوړوي چې دخپلو روپوزکوة را اخلي اودغه قرضدار ته یې ورکوي اوبیا یې له هغه څخه پخپلو قرضوکې بېرته اخلي ،نو په دغه طریقه به زکوة هم اداء شي او قرض به هم خالص شي (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۳۳۵مخ)

**مسئله** : زید دي قرض اخستونکی ته نوري روپۍ په زکوة کې ورکړي .کله چې هغه د دغوروپو قابض اومالک شو نو بیادي زید ورڅخه خپل قرض وغواړي .که یې قرضدار د قرضواداکولوته تیارنهٔ ،نوپه زور ورڅخه اخستل یې هم روادي. په دي کې هېڅ ډول منعه نشته.
(امدادمسائل زکوة ۴۳مخ فقه الزکوة ۱ج ۳۹۷مخ آپ کي مسائل ۳ج ۳۹۹مخ)

خوکه په پورتني صورت کې قرض ورکونکی وېرېدی چې که د قرض اخستونکي لاس ته د زکوة روپۍ ورسېږي نو هغه وربانديې زماقرض نه اداکوي. اویابه له ماڅخه دزکوة د روپوله اخستلو سره وتښتېږي ، نو دد ې لپاره دوه صورتونه دي – لومړی داچې د قرض اخستونکي دي له خپلوانو یاشناخته ګانو څخه څوک د زکوة د وصول کولو وکیل کړي هغه وکیل دي د قرض اخستونکي له طرفه هغه مال قبض کړي اوبیا دي د هغه له طرفه د قرضوپه نامه هغه مال واپس قرض ورکونکي ته ورکړي ،نوپه دغه ډول به زکوة اوقرض دواړه اداء شي.
(درمختار مع شاي ۲ج ۲۷۱مخ)

## د هبې د مال د زکوة حکم :

**مسئله** : په هبه ( هغه څه چې بلاعوض یعنې په تحفه کې چاته ورکړل شوي وي ) کې قبلېدل لازم دی – له قبلېدلو وروستو یې هغه څوک مالک ګرزي چې ورته ورکړل شوي دي . اومخته تر قبلولو یې هغه مالک نه دی نو که هبه د داسې شي وي چې زکوة وربانديې لازمېږي نووروستو له قبلولو یې په قبلونکي زکوة لازم دی–

## د حرام مال تفصیل اودزکوة حکم:

د حرام مال تفصیل دادي چې که هغه مال ټول یعني خالص حرام وي نوبیاخووربانديې زکوة نه دي ځکه چې که دهغه اصلي مالک معلوم

وي نو واجب دی چې بېرته وربانديې ووېشل شي . اوکه يې مالک معلوم نه وي نوبيا دټول مال په صدقه کې ورکول واجب دي . اوکه حلال اوحرام سره ګډ ؤ نوبايد دا وکتل شي چې که حرام مال ورڅخه بېل کړ ي نونوربه د نصاب په اندازه پاته شي اوکنه – که د نصاب په اندازه پاتي کېدی نو په هغه باندې زکوة واجب دی اوکه نه پاتي کېدی بيا وربانديې زکوة نشته . (امدادالفتاوی ۲ج ۱۴مخ احسن الفتاوی ۴ج ۲۸۳مخ وفتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۹مخ )

**مسئله** : په حرام مال کې د زکوة د وجوب اونه وجوب تفصيل څه په داسې ډول دی چې که له هغه سره نور حلال مال هم ؤ اوپه هغو کې يې حرام مال ورګډؤنود امام صاحب رح په نزد زکوة په هغه لازم دی اوکه له هغه سره نورحلال مال د نصاب په اندزه نه ؤنوزکوة وربانديې لازم نه دي بلکه په هغه باندې واجب دی چې ټول مال صدقه کړي : يعنې کله چې هغه مال مالکانو اويادهغو وارثانوته ويشل له امکان څخه بهر شي . ( دمال صدقه کول هغه وخت کېږي چې مالک ياوارث ته رسېدل يې ناشونې وي ) اوپه حرام مال سره مسجد جوړول صحيح نه دی او د مال مالک يا دهغه د وارث دنه پيدا کېدلو په صورت کې د مدرسې طالبانو ته صدقه ورکول روا دي .(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۸۲مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۳۳مخ )

## ايا له حرام مال څخه بايد زکوة ونه ايستل شي ؟

**مسئله** : د زکوة نه ورکولو لپاره داعذر ويل چې زماخو مال حلال نه دي او په حرام مال کې خوزکوة نشته غلط اوبې ځايه دی – حرام مال چې کله ستاسو په حلال مال کې ګډ شو نو په ملکيت کې داخل شو او دې ته ملکيت خبيثه ويل کېږي اود زکوة دوجوب لپاره ملکيت شرط دی د پاکی شرط پکې نشته ، پاکې د مال خو د قبوليت لپاره شرط دی

،نو له دي خاطره زکوة واجب دی خو مقبول نه دی. په دې صورت کې دغه پوښتنه راپورته کېږي چې بیا دزکوة ورکولو ګټه څه ده ؟ ځواب یې دادی چې که زکوة اداء کړی نو له هغه عذاب څخه به خلاص شي کوم چې د زکوة په نه ورکولو سره دي. او که قبول نه شي نو په دې سره عذاب نشته بلکه له ثواب څخه محرومي ده نو ایا عذاب ورکېدل ، او ثواب نه ورکېدل یوه کمه خبره ده ؟ خوپخپله د حرامو د ګټلو چې کوم عذاب دی هغه له هرڅه څخه جلادي. اصلاح انقلاب ۱ج ۱۵۲مخ)

د دې لپاره چې نورهم ښه پوه شئ د فقهي نورکتابونه لکه اردوفقه الزکوة ۲ج وګورئ.

## د غصب او رشوت په حال باندې زکوة :

**مسئله** : په هغه مال باندې چې غصب شوی وي او یا په رشوت کې اخستل شوی وي زکوة نشته. د دغومالونو که اصلي خاوندان ورک اوپیداکېدل یې ممکن نه ؤ نو باید ټول خیرات کړي.

( فتاوی دارالعلوم ۶ج ۸۸مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۲۴مخ )

## د دلالي په روپوباندې زکوة :

**پوښتنه** : زید دلالي کوي او اخستونکی ته وایي چې فلاني دومره روپۍ ورباندې راکولې مګر ماهغه ته ورنکړ هرڅوک د هغه په ترغیب سره شیان اخلي اوزید ته د دلالي اجرت ورکوي . د زید ددلالي دومره روپۍ شوي چې حد دنصاب ورنه پوره شو نو ایاپر هغه باندې زکوة شته اوکنه ؟

**ځواب** : په دغه صورت کې زيد د رواغ ويلو په وجه گنهگار دی او په حديث شريف کې راغلي دي چې په دغه رنگه خرڅولو کې برکت نه وي مگر زيد د دغو روپو مالک دی او زکوة ورباندې لازم دي.
(فتاوی دارالعلوم ٦ ج ۹۴ مخ بحواله هدايه ۱ ج ۱۲۷ مخ)

## د نوکرۍ د ضمانت د روپو د زکوة حکم:

**پوښتنه** : يو چا دې لپاره چې په نوکرۍ کې پاته شي له حکومت سره زر روپۍ دضمانت په ډول جمع کړلې تر څوچې دغه نوکر پخپله وظيفه کې وي دغه روپۍ ورته بېرته نه ورکولي کېږي ،خو کله چې دغه څوکۍ پرېږدي نوبيابيرته دغه روپۍ ورکولي کېږي ،نو پر دغو روپو باندې زکوة واجب دی او کنه او که واجب دی نو وروستو له واپس کېدلو زکوة واجب دی او که د ټولو کلونو ؟

**ځواب** : د دغوروپوله واپس کېدلووروستوپه نوکرباندې د ټولو کلنو زکوة ورکول واجب دی که د دې فکر په وجه چې هغه وايي چې که زه له واپسي وروستود ټولو زکوة ورکوم نوتر هغه به زياتي شي له خپلو موجوده روپورسره د هغوزکوة ورکړي نو هم صحيح دي.
(فتاوی دارالعلوم ٦ ج ۱۳۰ مخ)

که يو چا ته د زرو د ضمانت په وجه نوکری پيداکړې وه نو هغه هم داسې دی کله چې د روپو په ذريعه يې مال ترلاسه کړی دي ،نو د عقل په بناء هم په هغوزروچې دنوکري په ضمانت کې ورکړل شوي دي زکوة واجب کېدل پکار دي ،که هغه د نصاب برابرا وي. (محمد رفعت قاسمی)

## په امانتو روپوزکوة:

**پوښتنه** : له ماسره د چاامانت پراته دي ايا دهغوزکوة اداء کول په مافرض دی او که د دغوروپو په مالک باندې ؟

**ځواب**: د چا امانت چې له تا سره دی د هغو زکوة ستا په ذمه نه، بلکه د هغه چا په ذمه دي چې د غه امانت یې تا ته ایښي دي که هغه تا ته اختیار درکړی وي نو بیا ته هم کولای شې له هغو روپو څخه زکوة اداء کړې. (آپ کي مسائل ۳ ج ۳۵۲ مخ کفایت الفتي ۴ ج ۲۴۷ مخ)

## که له امانت روپو څخه حکومت زکوة وگرزوي؟

**پوښتنه**: داسې سیمي او ښهرونه شته چې خلک یې د امانت په ډول له بل چا سره روپۍ جمع کوی او بیا یې هغه په خپل نامه بانک ته ورکوي اوهلته یې ورته ساتي او وخت په وخت له هغو څخه د هغو خلکو په غوښتنه لږ، لږ له بانک څخه راباسي نو ایا حکومت داحق لري چې له هغو روپو څخه زکوة کاټ کړي؟

**ځواب**: د چاچې امانت دي نو زکوة یې هم په هغه باندې واجب دي نو څرنگه چې حکومت په زور سره دغه رقم گرزوي نو ځکه امانت ایښودونکي ته پکار دي چې هغو ته د زکوة اداء کول اختیار ورکړي. له اختیار ورکولو وروستو چې کوم زکوة گرزول کیږي هغه به د امانت ایښودونکي له طرفه وي او له هغو څخه چې یې څومره د زکوة روپۍ گرزولې دي هغه به ورنه جلا کړئ او باقي پاتي به هغه ته واپس ورکړئ (آپ مسائل ۳ ج ۳۵۳ مخ)

دغه مسئله په اسلامي حکومت کې د اسلامي بانکونو ده.

(محمد رفعت قاسمي)

## تروارله مخه ورکړل شوؤ روپو زکوة په چالازم دي؟

**پوښتنه**: د کرایې پر مکان یادکان باندې چې له کرایه دار څخه د ضمانت په ډول روپۍ وارله مخه اخستلي کیږي او هغه داسې دی چې

واپس مالک ته ورکول کېږي او د دغوروپو دمکان یادکان له خاوند سره دوه یادرې کلونه تېرشول نو ددغوروپو زکوة به څوک اداء کوي ؟
**ځواب** : څوک چې د دغوروپومالک دي هغه به زکوة اداء کوي ،د مکان یادکان په خاوند باندې زکوة د هغونشته بلکه زکوة یې د امانت اېښودونکي په ذمه دی او کومې روپۍ چې له کرایه ورکونکي څخه د بېرته ورکېدلو په شرط اخستلي شوې دي د دغو امانتو مالک کرایه دار دی نو د هغه زکوة هم دهغه په ذمه دی.
(آپ کي مسائل ۳ج ۳۵۳مخ )
او کومې روپۍ چې نن سباد پېشکي په ډول اخستلي کېږي او بېرته کرایه ورکونکي ته نه ورکولي کېږي . بلکه دمکان یا دکان خاوند د هغومالک وي روادي اوکنه ؟ دایو ځانګړی بحث دي که د دغه روپو په ورکولو کې دواپس کېدلو شرط نه ؤ ،نو بیایې زکوة دمکان یادکان پر مالک باندې لازم دي *(محمد رفعت قاسمي غفرله )*
له مړي څخه د پاته شوي مال زکوة په امانت ساتونکي باندې دی او که دمړی په وارثانو ؟
**پوښتنه** : هغه مال چې له مړي څخه پاته شوی دی تر اوسه په وارثانو باندې نه دی وېشل شوی اولاد هغه چاپه لاس کې دی چې امانت ورته ورکړل شوې دي او وارثان ټول بالغان دي د بعضو حصه مقرره او د بعضو لامقرره شوې نه ده ی،په همدې کې پوره کال بېرشو ،نو په دغه صورت کې زکوة د امانت ساتونکي په ذمه دی اوکنه
**ځواب** : ددغوروپو زکوة په هغه چالازم نه دی چې امانت ورته اېښودل شوې دی بلکه د روپو په مالکانو باندې لازم دی اوکه دغه مال سره یاسپین زر وي نو بیایې په هغه صورت کې چې هریوه ته

خپله برخه ورسېږي او هغه د نصاب په اندازه وي په اندازه د خپلې حصې زکوة لازم دي. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۳۸مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۱۸مخ)

## ایا له امانتو روپو څخه به زکوة اداء کوي ؟

**پوښتنه** : له زید سره د مر څو روپۍ د امانت په ډول پرتې دي ، عمر کوم بل ځای ته تللی او زید ته یې لیکلي دي چې زماله امانتو څخه د زکوة فریضه اداء کړه ،نو زید په هغو روپوچې د زکوة وې په هغو باندې دینې کتابونه واخلي او په زکوة کې یې ورکړي ؟

**ځواب** : په دغه طریقه د زکوة اداء کول صحیح دي ، او د عمر زکوة اداء کېږي . (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۴۷ مخ)

## د ساتنې په روپو د زکوة حکم :

**پوښتنه** : زید خپل ورور عمر ته پنځه سوه روپۍ د دې لپاره ورکړې چې ورته ویې ساتي او ورته ویې ویل چې ستاخوښه ده که د کار وبار په کولو سره ورنه ګټه اخلې اوکه یې دغسې راته ساتې څلور کاله وروستو هغه روپۍ واپس زید ته ورسېدې .نو ایا د هغو څلورو کالو زکوة ورباندې واجب دي او کنه ؟

**ځواب** : د هغو څلورو کلونو زکوة ورباندې واجب دي.

(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۴۸ مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۱۲مخ)

## په محکمه سره د ترلاسه کړل شوؤ زکوة حکم :

**پوښتنه** : یو چاپر قرضدار باندې په حکومت کې عریضه وکړه او محکمې ورڅخه ورته اوه (۷۰۰) روپۍ وصول کړې او د محکمې په جریان کې څلورسوه روپۍ ولګېدلې ،نو اوس به د ټولو

( اوؤسوؤ۷۰۰ )روپو زکوة اداء کوي اوکه به مصرف شوې څلورسوه ورځخه جلاکوي ؟

**ځواب** : د ټولو روپو زکوة به اداء کوي او لګېدلې روپۍ به ورځخه نه جلاکو ی. ( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۵۷مخ )

## که د ډګری د پورته والي ( ترفیع ) په ذریعه مال میلاوشي د هغه زکوة به له کومه وخته باسي ؟

**مسئله** : هروخت چې ډګري . (ترفیع ) وشوه ،نو له هغه وخت څخه په زید باندې زکوة لازم شو. او د زکوة اداء وروستو له وصول کېدلو لازمېږي .( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۹۹مخ )

## د روپو زکوة :

**پوښتنه** : له زید سره زر روپۍ دي او د رواج په بناهغه باید پنځه سوه روپۍ په نوته ( دبل چاد واده په خاصو مراسمو ) کې ورکړي ،نو هغه به د څومره روپوزکوة اداء کوی ؟

**ځواب** : په دغه صورت کې پر زید باندې دټولو ( یعنې ۱۰۰۰ ) روپو زکوة لازم دي . ( فتاوی دارا لعلوم ۲ج ۵۴مخ )

**په هغو روپو باندې چې د حج لپاره ساتلي شوې وي زکوة فرض دي اوکنه ؟**

**پوښتنه** : شپږکاله کېږي چې یو چادحج د اداء کولو لپاره روپۍ ځانګړې کړې دی خوسږ کال هغه غواړي حج ته لاړشي ،نوایاد تېروشپږوکلونو زکوة ( د دغو روپو ) ورباندې واجب دی اوکنه ؟

**ځواب** : د دغو روپوزکوة ورباندې واجب دي تر څو چې هغه روپۍ مصرف شوې نه وی ترهغه وخته پوري دټولو کلونو زکوة باید اداء کړي . ( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۱۲مخ بحواله هدایه ۱ج ۱۲۸۷مخ وفتاوی محمودیه ۱۳ج ۹۴مخ )

## د حج لپاره په جمع شوؤ روپو باني د زکوة حکم :

**پوښتنه** : یو څوک دی چې د رمضان المبارک په میاشت کې زکوة اداء کوي ، سږ کال اراده لري چې حج ته لاړ شي نو ځکه یې وارله مخه د حج روپۍ د داخلېدلو په ځای کې جمع کړې دي او امید دی چې هغه به د براة ( شعبان ) په میاشت کې حج ته لاړ شي ، نو ایا هغه به د جمع شوؤ روپو زکوة اداء کوي او کنه ؟

**ځواب** : د تلوراتلو کرایه ، د استاد اونورو د تنخواه لپاره چې څومره روپۍ ورکړل شوې دي په هغو باندې زکوة نشته او له هغه څخه زیاتي روپۍ چې د کرنسۍ په ډول حاجي صاحب ته واپس ورکولي کېږي د هغوپه برخه چې تر رمضان المبارک له مخه مصرف شي زکوة نشته او په نورو پاتو باندې زکوة واجب دی (احسن الفتاوی ۴ ج ۲۷۴ مخ بحواله رد المحتار ۱ ج ۷ مخ )

## د حج لپاره زکوة اخستل څنګه د ي؟

**پوښتنه** : یو څوک حج ته روان دي خو پیسې ورسره کمې شوې ، نو دا رواده چې د دغه پنډ د پوره کولو لپاره د زکوة روپۍ ورکړلي شي ؟

**ځواب** : له چاسره چې خرڅه کمه وي هغه ته دحج لپاره دزکوة روپۍ وراخستل روانه دي خوکه د روانېدلو په وخت ورسره پوره خرڅه موجوده وه خوپه لاره کي ورته داسې مشکل پېښ شو چې روپۍ ورکي ولګېدلې اوله کور یاکلي څخه دراغوښتلو هېڅ لاره نه وه نو هلته بیاورته د ضرورت په اندازه دزکوة روپۍ اخستل صحیح دي. ( فتاوی محمودیه ۱۳ ج ۹۴ مخ )

***

## چاته دومره زکوة ورکول چې حج ورباندې فرض شي:

**پوښتنه**: ایادابه څرنګه وي چې که خلک یوه عالم ته دومره زکوة ورکړی چې په هغه باندې حج فرض شي ؟ د شامي له عبارت څخه خو معلومیږي چې روادی ؟

**ځواب**: دومره روپۍ لاپه زکوة کې یو نفر ته ورکول مکروه دی چې فقیر ورباندې مالک د نصاب ګرزي ،نوځکه خودومره زیاتي روپۍ یوه نفر ته ورکول چې په هغه باندې حج فرض کوي په طریقه اولي سره مکروه دي دشامي له عبارت ( منقطع الحاج ) څخه مراد هغه څوک دي چې حج ته په لاره وی اوپه دغه سفر کي ورنه روپۍ ضائع اوهغه مجبورشي نوهغه ته دزکوة ورکول بلاکراهت روادی • هیڅ څوک باید دزکوة دومره لویه اندازه وانخلي. (احسن الفتاوی ۴ج ۲۹۴مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۷۴مخ )

## د زکوة روپۍ د حج کولو لپاره:

**مسئله**: که چا دزکوة روپۍ د داسې یو چاچې د نصاب خاوندنه ؤوملک وګرزولې چې هغه ورباندې حج وکړي او یایې په کوم بل ضرورت چې دهغه خوښه وي ولګوي نو داسې کول صحیح ي اوزکوة اداء کیږي. (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۲۷۳مخ )

**مسئله**: د خپل زکوة په روپو باندې خپل حج کول روانه دي مګر داسمه ده چې که فقیر د دغو روپو مالک وګرزول شي نو بیا که هغه ورباندې خپل حج کوي اوکه یې په کوم بل څه لګوي هغه یې خپله خوښه ده. لنډه داچې د زکوة په روپو کې داشرط دي چې فقیربه یې مالک ګرزول کیږي. بغیر له دې څخه زکوة نه اداء کیږي.
( فتاوی دارالعلوم ۶ج ۲۷۸مخ بحواله ردالمحتار ۱ج ۸۵مخ )

خو دومره زکوة یو نفرته ورکول چې هغه ورباندې د نصاب مالک
ګرزي هغه وخت مکروه دی چې هغه عیال ونه لري. (رفعت قاسمي)

**یو نفرته دومره زکوة ورکول چې درباندې د نصاب خاوند کیږي** :

**پوښتنه** : یو فقیرته دومره د زکوة روپۍ ورکول چې هغه دنصاب
خاوند شي مکروه دی ،مګر پوښتنه داده چې له دغه نصاب څخه کوم
نصاب مراد دي ؟ آیا هغه نصاب چې د زکوة د وجوب سبب ګرزي
او که هغه نصاب چې د زکوة اخستولو مانع ګرزي

**ځواب** : له دې څخه مراد هغه نصاب دی چې د زکوة اخستلو منع
کونکی دي .او دغه کراهیت هم هغه وخت دي چې دغه فقیر عیال ونه
لري . او که یې عیال لرلو ،نو هغه ته له زکوة څخه دومره څه ورکول
کیدای شي چې که هغه مال د هغه په عیال تقسیم شي نو یوهم
ورباندې د نصاب خاوند نشي کیدلای (احسن الفتاوی۴ج ۲۹۳مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۷۴مخ )

**په حیصوباندې دزکوة حکم** :

**مسئله** : حصې که په نیت د تجارت اخستل شوې وی یعنې معصد
ورنه د هغو اخستل او خرخول وي نو دحصو په ټول قیمت باندې زکوة
واجب دي .او که د تجارت لپاره نه وي نو بیایې صرف په هغه اندازه
باندې زکوة واجب دي کوم چې د تجارت په چلند کي وي. د کارخانو
په ماشینونو او ځای باندې چې څومره روپۍ لګیدلې دي په
هغوباندې زکوة نشته. (احسن الفتاوی ۴ج ۲۸۷مخ فقه الزکوة۱ج ۳۶۹مخ )

**په حصوباندې به زکوة په کوم قیمت سره وي ؟**

**پوښتنه** : یو چاد تجارتی کپنۍ څوحصې ( برخې ) واخستلې .کله چې
کمپنۍ په کارپیل کاؤنو د یوې حصې قیمت پنځه سوه روپۍ ؤو او

هغه وخت چې هغه حصې اخستلې هغه وخت ديوې حصې قيمت زر روپۍ ؤو او دا وخت بياد يوې حصې قيمت پنځه سوه روپۍ دی ،نو هغه به د کوم قيمت زکوة ورکوي ؟

**ځواب** : نوموړی به د اوسني قيمت يعنې پنځو سوؤ روپوسره سم زکوة اداء کوي. (فتاوی دارالعلوم )

## ايا په حصوباندې په جلاجلاډول زکوة واجب دي ؟

**پوښتنه** : ټولي کمپنۍ د زکوة او عشر له جمعې څخه زکوة باسي او د زکوة فنډته يې نقل کوي اياوروستو له دې چې په مجموعي ډول د ټول کاروبار څخه زکوة وايستل شي بيا به په انفرادي ډول هم هر حصه لرونکی دوهم ځل زکوة باسي ؟

**ځواب** : که د حصه لرونکو له حصوڅخه يې زکوة وصول کړ،نو بياد دې ضرورت نشته چې دوي په انفرادي ډول هر يو د خپلې حصې زکوة وباسي ،مګر خبره په دې کې ده چې کوم زکوة چې حکومت يې کاټوي هغه صحيح دي اوکنه ؟ ډېر داسې علماء کرام دي چې دغه چاره تائيده وي او دزکوة داداء کيدلو فتوي ورکوي په داسې حال کې چې نور علماء کرام بيا د دې خلاف او هغه زکوة چې حکومت يې ګرزوي اداء شوی نه بولي . د دوي په نزد د دغو هر څه زکوة بايد د هغوخاوندان پخپله اداء کړي کوم چې حکومت کاټ کړي وي.

(آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۴مخ )

## اياد حصو په اخستلو سره زکوة شته ؟

**پوښتنه** : زيد د يوې کمپنۍ پنځه لس حصې په پنځه زره روپيو واخستلې ،دهغوچې کومه کلنۍ ګټه وی هغه هر کال په حصه

لرونکو باندې وېشله کېږي ،نو آیا پرزید باندې د پنځوزرو زکوة لازم دي او که ورباندې د کلنۍ ګټې زکوة لازم دي ؟

**ځواب** : پر زید باندې د هغو پنځوزرو روپوزکوة هم فرض دي.
( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۴۰مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۱۳مخ )

**مسئله** : که کمپنۍ تجارت کوي نوزکوة په هغوروپو واجب دي چې جمع شوې دي او که د کرایې د وصول کولو کمپنۍ وه نو بیا پر جمع شوی مال زکوة نشته بلکه په ترلاسه شوې ګټه باندې زکوة واجب دي
( کفایت المفتي ۴ج ۱۴۳مخ )

**مسئله** : په حصو باندې زکوة شته که کپنۍ تجارت کوی لکه کپړې ،لوښي سامانونه د ماشین ګېري اونورشیان سیمنټ خرڅوي نود حصو په اصل رقم چې د هغو قیمت دي اود هغو په ګټو دواړو باندې زکوة واجب دی. او که کمپنۍ تجارت نه کاؤ بلکه صرف کرایه ترلاسه کوله ،لکه د بس کمپنۍ ،نو بیا دهغه په حصو باندې زکوة نشته یعنې په ګټه یې زکوة شته او په اصل رقم زکوة نشته. ( فتاوی رحیمیه ۲ج ۴مخ و آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۳مخ )

## د حصو مختلف قسمونه او دهغو حکم :

**مسئله** : د شیانو د جوړولو د سامانو په لړکي چې کوم اصل ذکر شوی دی له هغه نه داخبره څرګنده شوه چې په کارحانه کي د حصه دار کېدلو دوه صورتونه دي . یاخو دداسې کارخانې شرکت دی چې کارېې دانه وي چې څه شی واخلی یایې خرڅ کړی لکه د اوربشو تهرېشر کول او غنم وړول یعنې د کار کولو په بدل کې صرف اجرت اخلي نو په دغه صورت کې صرف په آمدني ( ګټه ) باندې زکوة واجب دي ؛ او که داسې کارخانه وه چې پکې تجارت هم کېدلو یعنې خام مواد اخستل کېدل بیا شیان ورنه جوړېدل او بیا پلورل کېدل نو د

لګېدلي مصرف ورنه ایستلو وروستو د ټول کال په آمدني باندې
او په خام او تیارشوي مال باندې زکوة واجب دي لکه د پمبې اخستل
او کپړه ورځخه جوړول او دګني اخستل او ګوړه ، بوره او نور ورځخه
جوړول چې وروستو بیا پلورل کېږي ځکه چې دا وخت د دغه مال
حیثیت د تجار د مال دي ، خو د کارخانې په ماشینونو ، ودانۍ
اوسامانونو باندې زکوة نشته دلته چې د زکوة په اړوند کوم حکمونه
اومسئلې بیان شوې دی داسې هم کېدی شي چې د ټولو برخه
اخستونکو په نیت او اراده سره په یو ځای ورنه د زکوة روپۍ یامال
بېل کړل شي او داهم سمه ده که هربرخه لرونکی پخپله حساب وکړي
او دخپلي حصې په اندازه زکوة وباسي. (جدید فقهي مسائل ۱۲۳مخ)

**مسئله** : د کارخانو اوملو ، په حصو (برخو) باندې هم زکوة واجب دي
چې دهغواندازه د نصاب تراندازې رسېدلې وي او یاله نوروداسې
شیانو سره چې زکوة ورباندې وي په ګډه سره حد د نصاب پوري
رسېږي . خو د کار کولو ماشینونه ، سامانونه او نوربه ورځخه
جلاکوي په هغو باندې زکوة نشته.

**مسئله** : د سرو ، سپینو زرو ، د تجارت د مال او د کارخانو اوکمپنیو
د حصو زکوة به له هغه قیمت سره سم اداء کوي کوم چې د دوی د زکوة
د کال د پوره کېدلو په ورځ وي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۴۱مخ)

**په کمپنۍ کې د نصاب په برابر جمع شوؤ روپو باندې د زکوة حکم** :

**پوښتنه** : ماځه روپۍ کمپنۍ ته ورکړې دي چې د ګټو او نقصان په
بنیاد هره میاشت ګټه راکوي چې ورباندې زما د کهول چلاؤ او
مصرف ډېر په مشکل پوره کېږي ، نو که زه له میاشتنۍ ګټې ځخه

زکوة باسم نو له لوړي سره مخ کېږم او که له اصل مال څخه يې باسم نو بيا دګټي اندازه کمېږي نو زه څرنګه وکړم ؟

**ځواب** : کومي روپۍ چې تاپه کمپنۍ کې جمع کړې دي ،که هغه د پوره نصاب په اندازه ياتردې زياتې وي نو زکوة يې ستاپه ذمه واجب دي – او د اداء کولو لپاره چې ئي هره لاره ته سمه اوښه بولې هغسې وکړه (اپ کي مسائل ۳ج ۳۵۷مخ )

## په سرکاري او غير سرکاري کمپنيو د زکوة حکم :

**مسئله** : د کمپنيو په زکوة کې اختيار دي .په ټوليز، او جلا جلا دواړو صورتونو دزکوة اداء کول روادي . او کومي اداري او کمپنۍ چې په پوره ډول دولتي ( سرکاري ) وي دهغو په هېڅ حصه باندې هم زکوة نشته . او دکوموچې په څو حصې سرکاري وي او نوري شخصي وي. نو په سرکاري حصويې زکوة نشته . او په شخصي حصويې شته . په سرکاري مالونو باندې ځکه زکوة نشته چې هغه د چاپه شخصي ملکيت کې نه دي . ( احسن الفتاوي ۴ج ۲۸۸مخ )

## ايا د پلاټ (د خاصي کړل شوي ځمکي ) زکوة د مارکېټ په څير دي ؟

**مسئله** : ځمکه ياپلاټ ( ټاکل شوې ځمکه ) واخستل شوه او د اخستلوپر وخت يې پکې د اخستونکی درې نيتونه ؤ ،کله به يې دا نيت ؤ چې خرڅوم به يې ( په دغه صورت کې هرکال دهغه په قېمت باندې زکوة فرض دي. اود هر کال د زکوة لپاره هغه قېمت معتبر دي کوم چې د کال پوره کېدلوپر وخت په بازار کې دي د مثال په ډول تاسو يوه اندازه ټاکلې ځمکه ( پلاټ ) په پنځوس زره روپۍ واخست او څوکاله وروستو د هغه قېمت او يازره روپۍ شو ، نوداوخت به

تاسوزکوة هم د اویا زرو له قراره اداءکوئ اوکه څلورپنځه کاله وروستو یې قیمت پنځه لاکه شو نوهغه وخت به بیازکوة د پنځو لاکهو له قراره څخه اداء کوي ) – اوکله به یې بیا دانیت ؤ چې ځای به ورباندي جوړوم اوپخپله به پکښي اوسېږم نوپه دغه صورت کې بیا ورباندې زکوة نشته. دغه رنګه که د اخستلوپه وخت نه د خرڅولو نیت ؤ اونه پکښې د اوسېدلو ،نو په دغه صورت کې هم ورباندې زکوة نشته. (آپ کي سائل ۳ج ۳۷۱مخ )

**مسئله** : د تجارت په نیت اخستل شوي ځکي او ځای او د خرڅېدلو په مکانو کي په موجوده مالیت باندی زکوة فرض دي ، په اصل سرمایه فرض نه دي ، (احسن الفتاوی ۴ج ۲۹۹ مخ )

## د مکان په اخستلو باندې د لګېدل روپې زکوة :

**پوښتنه** : یوه میاشت له مخه مې مکان اخستی دی او دوه میاشتي وخت مې ورنه اخستی ؤ چې اوس زیاتي ختمېدونکي دي بیعا نه ( پېشکي ) مې ورکړې ده نوداوخت به د زکوة اداء څه ډول وي ، ځکه چې اوس خو روپۍ زمانه دي بلکه د مکان د خاوند دي او دا وخت مکان زمادي. ایاله هغو روپو څخه زکوة اداء کړم کومي چې د مکان خاوند ته ورکوم ؟

**ځواب** : که دي تر زکوة اداءکولو له مخه د کان قیمت اداء کړنو بیا ورباندې زکوة نشته. او که د نصاب کال پوره شو اوتا لا د مکان روپۍ نه وې ورکړې بلکه څه وخت وروستودي په تاکلي وخت اداء کولې نوبیا په هغوروپوباندې زکوة شته. (آپ کي سائل ۳ج ۳۷۲مخ )

## په پلاټ باندې د زکوة حکم:

**مسئله**: که يو چا پلاټ (ځمکه) په دې نيت اخستې وه چې خرڅوي به يې، نو بيا هغه د تجارت مال ګڼل کېږي او زکوة ورباندې واجب دي. او که يې د ذاتي ضرورت لپاره اخستې وه، نو بيا ورباندې زکوة نشته. او که يې د اخستلو په وخت د خرڅولو اراده نه لرله، وروستو يې د خرڅولو فيصله وکړه نو تر څو چې خرڅه شوې نه وي تر هغه ورباندې زکوة نشته (آپ کي مسائل ۳ ج ۳۷۰ مخ)

## کوم پلاټ چې د استوګنځای لپاره وي:

**پوښتنه**: له ماسره يوه ټاکلې اندازه ځمکه ده چې ورباندې د کور جوړولو اراده لرم ايا زکوة ورباندې شته او که نه؟

**ځواب**: کوم پلاټ چې د دې لپاره اخستل شوي وي چې ورباندې د اوسېدلو کور جوړ کړي، نو په هغه باندې زکوة نشته. (آپ کی مسائل ۳ ج ۳۷۰ مخ)

## ايا په تجارتي پلاټ زکوة شته؟

**پوښتنه**: که يو څوک د مکانونو پلاټونه (د کورونو لپاره ټاکلې ځمکې) اخلي او خرڅوي، نو ايا دا د تجارت مال دي، او په ټول ماليت يې زکوة فرض دي او که صرف په ګټه باندې؟

**ځواب**: که څوک د پلاټونو (ځمکې مکان او نورو) د اخستلو او خرڅولو کاروبار کوي او د خرڅولو په نيت پلاټ رانيسي، نو د دغو پلاټونو حيثيت د تجارت د مال په څېر دی او هر کال د هغو په ټول ماليت زکوة واجب دي.

**مسئله**: يو چا چې ځمکه، مکان يا پلاټ د خرڅولو لپاره اخستي وي په

هغه باندې د هر کال زکوة واجب دی هر کال به د هغه د قیمت څلو ښنتمه برخه زکوة باسي. (آپ کی مسائل ۳ج ۷۱مخ)

**مسئله** : هرپلاټ یامکان چې د تجارت په نیت واخستل شي (چې اندازه ئې د نصاب ته رسېدلی وي) نو هغه د تجارت مال بلل کېږي او زکوة ایستل یې واجب دي او هر شي چې د بېرته خرڅولو په نیت واخستل شي هغه د تجارت په مال کې داخل دي. (احسن الفتاوی ۴ج ۳۹۵مخ)

## کوم مکان چې د کرایې د چلولو لپاره اخستل شوی وي :

**پوښتنه** : یو چاد استوګنې له کور څخه بغیر یوبل داسې مکان واخست چې په کرایه یې وکړي او روپۍ هم پکې بندې شي، نو آیا په دغه مکان باندې زکوة شته او کنه؟

**ځواب** : په دغه صورت کې د مکان په قیمت باندې زکوة نشته، بلکه د کرایې روپۍ که دنصاب په اندازه یا تردې زیاتې جمع شي او کال هم ورباندې تېرشي، نو د هغوزکوة اداء کول واجب دي.

(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۵۴خ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۰مخ)

## تر ضرورت په زیات مکان باندې زکوة :

**پوښتنه** : کله چې جائیداد یامکان ترذاتي ضرورت زیات وي اود کرایې امدني هم ولري نو زکوة به د جائیداد په قیمت باندې وي او که په آمدني (کرایه) باندې؟

**ځواب** : د جائیداد (ځمکې او مکان) په قیمت باندې زکوة واجب نه دي بلکه د کرایې امدني چې اندازې دنصاب ته ورسېږي یا زیاته شي اوپه هغې اونورو هغوروپواومال چې له هغوسره دي پوره کال تېرشي نو بیا ورباندې زکوة لازم دي. (فتاوي دارالعلوم ۲ج ۲۳۳خ ردمحتار ۲ج ۱۰مخ آپ کي مسائل ۳ج ۳۱۱مخ)

## په هغوروپوچې مکان يې ورباندې اخستې دي زکوة شته ؟

**پوښتنه** : يو چاپه پنځه زره روپۍ مکان واخست ،خوبيا دکور والوخوښ نه شو نوځکه يې د بېرته خرڅولو اراده وکړه په دغه صورت کي د هغوپنځوزرو روپوزکوة واجب دي اوکنه ؟

**ځواب** : د دغوپنځو زرو زکوة واجب نه دي. ترکومه وخته چې هغه روپۍ موجودي وې اومکان لاورباندې نه ؤ اخستل شوی تر هغه وخته پوري چې زکوة لازم ؤ( که کال پوره ؤ او که د کال تر پای ته رسېدو کم وخت پاته ؤ. کله چې يې مکان واخست نوهغه وخت زکوة دهغه له ذمې څخه ساقط شو اوڅه وخت چې يې مکان خرڅ کړاو نغدي روپۍ لاس ته ورغلې نو په هغوباندې د يوکال په تېرېدوسره زکوة لازمېږي. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۲۹ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۰مخ )

**مسئله** : کومه ځمکه چې په ټيکه يعنې اجاره باندې واخستله شي او دهر کال يې تاکلی اجرت وي ، نوکه د څوکالو اجرت تر وخت له مخه ورکړل شي نو دا صحيح دی او په دغوروپوباندې زکوة لازم نه دي.
( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۳۳۳مخ)

## زکوة د ځمکي اومکان په ماليت باندې وي اوکه په امدني ؟

**مسئله** : د ځمکي اوجائيداد په ماليت باندې زکوة نشته بلکه په کرايه اوامدني باندې چې جمع شي اوپوره کال ورباندې تېر شي زکوة واجب دي ،اوپه ګېڼو اونغدوروپوهم زکوة واجب دی. په ډاسې ډول چې دروپو ،ګېڼو اونوروشيانو څلوېښتمه برخه بايد په زکوة کې ورکړله شي. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۵۰مخ بحواله رد المحتار )

## ايا د استوګني په کور اود کورپه سامان باندې زکوة شته ؟

**مسئله** : د استوګني په کور، د اغوستلو په جامو ،د کورپه سامان ، د سورېدلو په څارويو ،په استعمالېدونکی اسلحه اوپه هغولوښو اودښايست په شيانوچې دښکلااوزينت لپاره کارول کېږي اودسرواوسپينو زرو نه وي زکوة واجب نه دي (کتاب افقه۱ج ۹۲۸مخ درمختار۲ج ۱۴مخ )

## په استعمالېدونکوشيانو زکوة

**پوښتنه** : ايا دآرام اواستراحت په شيانو لکه راډيو ، تلويزيون ، فريج ، دکالو وينځلو په ماشين موټرسايکل او نوروباندې زکوة شته او کنه ؟

**ځواب** : دا د استعمال شيان ذي په هغوباندې زکوة نشته ،مګر په هغوکښوباندې چې اندازې دنصاب ته رسېدلې وي زکوة واجب دي هغه که په اغوستلو کې کارول کېږي او کنه . (اپ کی مسائل ۳ج ۳۷۳مخ )

**مسئله** : داسې لوښي لکه لوی د يګچي چې دېر کله کارېږي هم په استعمالي شيانوکې داخل دي اوزکوة ورباندې نشته .(آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۳مخ

## ايا د مرغانو په فارم اودماهيانو په تالاب زکوة شته ؟

**مسئله** : د مرغانوبه فارم او دماهيانو د ساتلو د تالاب په زمکه ،مکان اوله هغوسره په تړليو سامانونو باندې زکوة نشته د چرګانو او چوچنو ( د چرګانو د بچو ) د اخستلو پروخت که اخستونکی د هغو د بېرته خرڅولو نيت لرلو ،نو بيا د هغو په ماليت باندې زکوة واجب دي. اوکه د هغوپه ځای يې د هغودهګيو او بچيانو د خرڅولو نيت ؤ نو بيا ورباندې زکوة نشته. او د تالاب لپاره که يې ماهيان يا دهغود هګيو او بچيانود خرڅولو نيت ؤ نو بيا ورباندې زکوة نشته . او دتالاب لپاره که يې ماهيان يا دهغوبچي واخستل او هلته يې پکې

واچول نو دهغه پرمالیت زکوة فرض دي ، او که داسې نه ؤ بیانشته.
د چرګانو ( مرغانو ) په فارم او د ماهیانو د تالاب په آمدني باندې په
هر حالت زکوة لازم دي (احسن الفتاوی ۴ج ۳۰۰مخ )

## په لاندنیو شیانوباندې زکوة نشته

**مسئله** : هغه شیان چې له دریابو څخه راایستل کېږي لکه عنبر ، غمي
یوډول خاص ماهیان او نور په هغوباندې زکوة نشته ،خو که وباندې
تجارت کېدو بیا زکوة واجب دي. (کتاب الفقه۱ج ۹۹۸مخ )

**مسئله** : په جواهراتو لکه ملغلرو ، یاقوت ، زبرجد او نوروباندې زکوة
نشته ؛ په دې شرط چې د تجارت لپاره نه وي.(کتاب الفقه۱ج ۹۲۸مخ )

**مسئله** : که یو چامشک یازباد( یو خوشبودار شی دی چې له مشک
بلاؤڅخه ایستل کېږي ) پیداکړل اویایې ملغلري ، او نورتر لاسه
کړل نو په هغه باندې زکوة نشته که څه هم تر اندازې دنصاب پوري
رسېدلي وي .(کتاب الفقه۱ج ۱۰۰۱مخ ) اوکه یې تجارت وباندې کاؤ ،نوبیا
دتجارت په وجه وباندې زکوة شته. (رفعت قاسمی)

### ایا له سرواوسپینوزرو څخه په جوړشوؤ اندامو باندې زکوة واجب دي ؟

په بعض خاصو حالاتو کې د بعضي ګټوله خاطره د سرو
اوسپینوزروڅخه جوړشوي اندامونه کارول کېږي ،لکه پوزه غابښ
،تش یاخراب شوي غابښونه له سرو یاسپینوزرو څخه ډکول ،د
سرویاسپینوزروپه تارونو باندې دغابښو تړل او داسې نور . له
دغوشیانو څخه بعض داسې وي چې په اساني سره ایستل کېدای
شي اوله اول نه هغه په داسې ډول ترتیب شوي وي چې لګول کېږي او
ایستل کېږي ، اوبعض دغه شیان بیا داسې وي چې په خپل ځای کې

کلک کړل شوی وي او په اساني سره نشي را ایستل کېدای ،بلکه په مستقل ډول لګول شوي وي کوم اندامونه چې ایستل کېدای شي لکه پوزه په هغوکې زکوة واجب دي چې مثل یې ګېنې او نوردي. اوکوم چې داسې نه وي په هغوکې زکوة نشته ، ځکه چې د زکوة د وجوب لپاره دا ضروري ده چې مال به داسې وي چې د نشونما او زیادت ګنجایش به لري او په دغه صورت خوښکاره خبره ده چې دهغه هیڅ امکان نشته. اوهم دا چې که هغه (سره یا سپین زر) د انسان یو اندام وګرزي چې له ځانه جلاکول یې امکان نه لري ،نو دا د انسان په بنیادي ضروریاتو (حاجاتو اصلیه ) کې داخل دی ،اوپه دارنګه شیانو باندې هم زکوة واجب نه دي. (جدید فقهي مسائل ۱۲۱مخ )

## ایاپه میاشتنۍ تنخواه زکوة واجب دي ؟

**پوښتنه** : د خپلې تنخواه څومره فیصده په زکوة کې باید ورکړله شي ؟

**ځواب** : که بچت د نصاب تر اندازې ورسېږي اوپوره کال هم ورباندې تېرشي نوبیا ورباندې دوه نیم فیصده (۲نیم) په زکوة کې ورکول واجب دی او کنه نو نشته.

**مسئله** : زکوة د تجارت په روپو باندې وي کله چې هغه د(۵۲نیم ) دوه پنځوس نیموتولو سپینوزرو مالیت ته ورسېږي . اوکه هیڅ هم له ضرورت نه پاته شوې ( یعنې بچت شوې )نه وې نو بیا ورباندې زکوة نشته .(آپ کي مسائل: ۳ج ۳،۵۹مخ )

**مسئله** : د تنخواه روپۍ چې تر څو د چالاس ته رسېدلې نه وي ترهغه ورباندې زکوة نشته. کله چې هغه د خاوند لاس ته ورسېدلې بیابه دیوکال په پوره کېدوسره زکوة لازمېږي . اوکه هغه تر دغه له مخه

دنصاب خاوند ؤ ،نو کله چې د مخکني نصاب کال پوره شي له هغه سره به ددغې ترلاسه شوې تنخواه زکوة هم اداء کړي. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۶۰مخ)

## فنډ( یوځای کړل شوو روپو) باندې د زکوة حکم:

**مسئله** : د کارکونکو له تنخواه څخه چې کومې روپۍ ګرزول کېږي بیا دحکومت لخوا ورسره څه نوري روپۍ هم ملګرې کېږي اود کار په پای کي واپس کارګروته ورکولي کېږي او دا یو انعام بلل کېږي چې د حکومت لخوادي ،نو د هغه د تېرو کلونو زکوة واجب نه دی . له وصول کېدلو وروستو چې وربانديې د نصاب پوره کال تېرشي هغه وخت بیازکوة لازم دي .(فتاوی دارالعلوم۲ج۳۳۱مخ بحواله ردالمحتار۲ج ۴۹مخ نظام الفتاوي۱ج۲۱۲مخ)

## د فنډ(دروپو د جمعې ) قسمونه او زکوة:

**مسئله** :د کارګرله تنخواه څخه دیوې برخي د حکومتي ګرزولو ،او دپراویتي ګرزولو تر منځ په نوعیت کې فرق موجود دي چې له امله یې په احکاموکې هم فرق پیداکېږي . د حکومت لخواپه جوړشوی هغه فنډکې چې د کارکونکي د تنخواد روپو په ګرزولو ،ګرزولو سره جوړشوی دی د حکومت په قبضه کي وي او کارګر وربانديې قبضه نه لري ،نو ځکه خو د کارګر په ملک کې هم نه دي او زکوة یې هم وربانديې واجب نه دی. او کارګر ته له رسېدلو وروستو یې هم په هغه باندې د تېرو کلوزکوة نشته خو که له دغه فنډ څخه کارکونکي د بېمې په کمپنۍ کې حصه واخسته ،نو د بېمې د کمپنۍ قبضه کارکونکي ته منسوبه ده اوکمپني داسې ده لکه وکیل او دوکیل قبضه د موکل( هغه چاچې وکالت یې ورکړی دي ) قبضه بلله کېږی ،نو داچې دغه داجرملک دګرزېدنو ځکه وربانديې د هرکال زکوة فرض دی . د

کمپنیو دغه فنډ (پراویډنټ فنډ) دهغویې ځانګړي کمپنۍ ته ورکول کېږي چې هلته دټولو کارګرونمایندګان وي ،نو څرنګه چې هغه کمپنۍ بیادکارکونکو وکیله ده نو ځکه د کمپنۍ قبضه د کاکونکي قبضه بلله کېږي اوپه دې سره دغه روپۍ د کارکونکي ملکیت وګرزېدو او زکوة یې ورباندې فرض شو .(احسن الفتاوي ۴ج ۲۲۰مخ)

**مسئله** که د فنډ دزکوة په سلسله کې که څوک په احتیاط اوتقوی سره عمل وکړی او دتېروکلونو زکوة هم اداء کړي دابه ډېره بهتره وي . اوکه داسې ونکړي نوګناه یې هم نشته .ځکه چې د امام ابو حنیفه رضي الله عنه قول داسې دی چې فنډ که جبري وي که اختیاري وي د زکوة په مسئلو کې د دواړو احکام یوډول دي ( یعنې تر وصول کېدلو وروستو چې یو کال پوره شي بیا زکوة شته او دتېروکلونو زکوة نشته .(امدادمسائل زکوة ۷۲مخ)

**مسئله** : کله چې دغه دفنډ روپۍ کارګر یادهغه وکیل ته ورسېدلې نو دزکوة په مسائلو کې د امام ابوحنیفه رضي الله عنه په مذهب کې د هغوحکم او ضابطه په لاندې ډول ده:

۱۔که د فنډ دروپو تر ور رسېدلو له مخه کارګر د نصاب خاوند نه ؤاو د فنډ روپۍ هم دومره نه وې چې له نوروسره ورباندې د نصاب خاوند شي نو بیا خود زکوة د وجوب هیڅ پوښتنه هم نه پیداکېږي.

۲۔ که بل نصاب ورسره نه ؤ اوپه دغو روپو د فنډباندې د نصاب خاوند شو،نو د ور رسېدلو له ورځې څخه وروستو چې یې پوره یوکال تېر شوی نه وي تر هغه ورباندې زکوة نشته . او د کال پوره کېدلو وروستو هم په دې شرط زکوة شته چې تر هغه وخته پورې هغه دنصاب خاوند وي اوکه ترکال پوره کېدلو له مخه مال د هغه له لاسه

وؤتی اویاورنه غلو واخست اویاپه بل څه سره هلاک شواو له هغه
سره دومره پاته شو چې نصاب ورڅخه نه پوره کېدونو بیا زکوة
واجب نه دي. لنډه داچې هر څومره مال چې ( تر نصاب پورته وي ) د
کال په پای کې له هغه سره پاته وي په هغه باندې زکوة واجب دي. او
په صرف شوي مال باندې زکوة نشته.

-۳- که دغه کار کونکی د فنډ د وروپو تر رسېدلو له مخه د نصاب
خاوند ؤ اودفنډ روپۍ هم ( که ترنصاب کمي وې او که زیاتې )
راورسېدلې نو له پخواني نصاب څخه به جلانه شمېرلي کېږي بلکه
کوم مال چې تر دې له مخه له هغه سره ؤدهغه کال د پوره کېدلو په
ورځ دفنډ د ترلاسه شوورورپوزکوة اداء کول هم واجب دي که څه هم د
دغواوسنو روپو د لاس ته راتلو صرف یوه ورځ تېره شوې وي. د مثال
په ډول له یو چاسره د ۵۲ نیمو ) دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو
دقېمت په اندازه یا تر دې زیاتي یعنې -۴- یا -۵- زره روپۍ وې او د کال
دپوره کېدلو یې یوه ورځ پاته وه چې د پنډهم ورته زر روپۍ
راورسېدلې ،نو هغه به په راتلونکي ورځوکې د -۵- یا -۶- زرو روپو
زکوة اداء کوي

**مسئله** : که یوڅوک له اوله دنصاب خاوند ؤ اودکال ترپوره
کېدلوڅلوریاپنځه میاشتې له مخه ورته د فنډ روپۍ هم راورسېدلې
خوبیا څومیاشتي لانه وې تېرې شوې چې د رپو ډېره برخه مصرف
شوه ،نو دکال د پوره کېدلو په ورځ چې له هغه سره څومره مال پاته
وي ( په دې شرط چې حد دنصاب به پوره وي ) د هغه زکوة دې اداء
کړي. د صرف شوي مال زکوة ورباندې نشته او که پاته مال تر اندازې
د نصاب کم ؤ ،نو بیا ورباندې بالکل زکوة نشته.

**مسئله** : کارګر ته چې کومې روپۍ له دغه فنډ څخه د قرضو په نوم ورکولي کېږي هغه د شريعت له نظره قرض نه بلکه د هغو قرضو چې د کارګر په محکمه پاته دي د يو جز وصول کېدل دي.

( امداد مسائل زکوة ۲۲مخ بحواله جديد مسائل ۲۳تر ۲۲مخونه )

## ايا په بانک کې په جمع شوی مال باندې زکوة شته ؟

**مسئله** : په بانک کې چې کومې روپۍ جمع کېږي د هغو حيثيت د امانتو په څېر دی د مال خاوند هر وخت چې وغواړي روپۍ وراخيستلای شي او پکي تصرف کولای شي د زکوة د وجوب لپاره د عملي قبضې ضرورت نشته بلکه که هغه پرخپل وخت د تصرف کولو په موقف کې وي ،نو حکما داسې بلل کېږي چې په قبضه کې هم دي ،مثال يې دا دی چې په اخستل شوي مال ( سامان ) باندې تر قبضې تېنګولوله مخه زکوة واجبېږي . (( المبيع قبل القبض الصحيح انه يکون نصابا ) ( المبسوط۲ج۱۹۰مخ امام سرخسي

لهذا په بانک کې ساتل شوي روپو باندې پوره اودهرکال زکوة واجب دي . ( جديد فقهي مسائل ۱۱۹خ )

## ايا په ( فکسډ ډپازټ ) باندې زکوة شته ؟

**مسئله** : نن سبا په بانک کې د روپو جمع کولو يوصورت داسې دي چې ورته دبانک په اصطلاح ( فکسډډپازټ ) ويل کېږي چې روپۍ بانک ته د يوې ټاکلې مدې لپاره پوره کېدو وروستو د يوه اندازه سود په اخستلو سره واپس خپل خاوند ته سپارلي کېږي.

دامام ابوحنيفه رضی الله عنه په نزد د زکوة دوجوب لپاره ملک تام ضروري دي اوملک تام دادي چې لچاسره مخوم شي دي هغه به دده په

ملک کې هم او په قبضه کې به يې هم وي .که له ډغو دوارو څخه يو
پکې موجود نه ؤ نو زکوة واجب نه دي مګر د فقهاؤله نظرڅخه
څرګنديږي چې يو څوک خپل سامان پخپله خوښه د بل چاپه قبضه
کې ورکړی مګر ملکيت يې خپل وي ،نو په هغه باندې د قبضې نه
لرلو باوجود زکوة واجب دي څرنګه چې له مخه تېر شوي دي چې په
قرضو کې ورکړل شوؤ روپو باندې زکوة واجب دي ،نوله دې وجې په
( فکسډ ډپازټ ) باندې هم زکوة واجب دي خو مګر د ټولو کلوزکوة
به په يوځای هغه وخت اداء کوي کله چې دغه روپۍ د هغوخاوندته
ورسيږي . ( جديد فقهي مسائل ۱۲۰ مخ بحواله کتاب الفقه ۱ ج ۵۹۱ مخ )

## ايا د بانک او نشورنس په ګټه باندې زکوة شته اوکنه

**مسئله** : په بانک او اشورنس ( بيمه ) باندې چې کومه ګټه ترلاسه
کيږي هغه خو سود يقيني ډې خوډېر وخت قمارهم وي نو ځکه دا
يوحرام مال دي ،څوک نشي کولای حرام مال په صدقه کې ورکړي او
دا د ثواب کارنه ،بلکه د خيرد کارسپکاوی دي . حضور صلی الله
عليه وسلم فرمايي (لاصدقة في غلول ) (ترمذي ) د فقهي په مشهور
کتاب (قنيه ) کې ليکلي دي چې که پوره نصاب د حرام مال ؤ ،نو بيا
ورباندې زکوة نشته ځکه چې هغه ته ضروري ده چې ټول مال خپل
خاوند ته ورکړي اوکه هغه ته رسول يې امکان ونه لري بيا به ټول
خيرات کوي ،اوکه د مال ډېره برخه حلاله او لږحرامه وه نو بيا په ټول مال
زکوة واجب دي او مثال يې دا دی چې په داسې غصب شوي مال باندې
زکوة واجب دي چې له خپل مال سره ګډشوی وي .( ولوخلط السلطان
المال المغصوب بماله ملکه فتجب الزکاة فيه ) درمختار ۲ ج ۳۹ مخ جديد ۱۲۱ مخ )

## په باونډ او نوروباندې زکوة شته اوکنه ؟

**پوښتنه** : له زيد سره د خپلوضروورياتوپه پوره کولو سربېره داسې روپۍ دي چې باونډ ( يوډول حکومتي کاغذ دي لکه فکس ډپازټ اونور ) يې درباندې واخست يا يې هغه روپۍ بل چاته بلاسود قرض ورکړې نو حکم يې څه دي ؟

**ځواب** : په دغوټولو صورتو کي زکوة اداء کول واجب دي مګر د قرضود ورکولوپه صورت کې د قرضود وصول کېدلو څخه وروستو د تېري زمانې زکوة واجب دي .(فتاوى دار العلوم ۶ج ۱۳۷مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۲مخ )

## د وژلوپه بدل کې چې کومې روپۍ ترلاسه شي د هغودزکوة حکم

**پوښتنه** : په ناڅاپي ډول زيد موټر ،جهار، ګاډي اويابل شي وواهه اومړشو، کمپنۍ د هغه مورپلاد ،مېرمني يا ماشومانو ته دېرش زره روپۍ په بدل کي ورکړې ،نو دوي به له دغو روپو څخه زکوة باسي اوکنه ؟

**ځواب** : ماشومان چې ترکومه پوري نابالغ وي ،نو د هغود حصې په روپو زکوة نشته او کومه برخه چې له دغو روپو څخه د هغه مېرمنې او مور اوپلارته ورکوله کېږي په هغوچې پوره کال تېرشي نوبياورباندې زکوة واجب دي اوماشومان چې هروخت بالغان شول له همدغې ورځې څخه ورباندې د خپلې برخې زکوة واجب دي .(فتاوى دار العلوم ۶ج ۱۳۲مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۴مخ )

## د خښې کړل شوي مال زکوة :

**پوښتنه** : کومي روپۍ چې په زمکه چې خښې کړل شوې وي په هغوباندې زکوة واجب دي او کنه ؟

**ځواب** : د دغو روپو څخه بايد هرکال زکوة وايستل شي –
( فتاوي دارالعلوم ۶ج ۳۳۸مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۲مخ )

## د کانونو اودفن کړل شوؤزکوة :

**مسئله** : په ځمکه کې دننه په کانوکې چې کومې قدرتي خزانې دی هغه په درې ډوله دي یعني درې ډوله شیان و رڅخه را ایستل کېږي
۱ـ هغه شیان چې په حرارت (گرمولو ) سره ویلېږي لکه سره زر سپین زر او داسې نور
۲ـ هغه شیان چې نرم او بهېدونکي وي لکه پټل اونور
۳ـ ډبري او هغه شیان چې نه په حرارت (گرمولو ) سره نرمېږي اونه پخپله بالذات نرم وي – په اور باندې د نرمېدونکو شیانو ډولونه دا دي لکه سره زر، سپین زر ، ترامه زېړ، سرول او نور په دغوکې د پنځمي برخې په اندازه زکوة فرض دي له کان څخه د دغو شیانو را ایستونکي که ازادوي که غلام وي ، که ذمي وي سړي وي اوښځه خو چې هر څوک وی دمال د پنځمي برخي په زکوة کې ورکولو سره هغه د پاته مال مالک گرزي.

**مسئله** : که د پټې خزانې د را ایستلو لپاره دوؤنفرو په گډه سره کوشش کاؤاو یوه ته پلاس ورغله نودا به صرف دهغه بلله کېږی .اوکه چاد کان کښلوتیکه واخستله ،نو له کان څخه چې هغه څومره څه ترلاسه کوي د هغوټولو مالک را ایستونکی دی. (بحرالرائق)

## دوهم ډول دا دي چې نرم دي لکه ، مالگه تېل پطرول .

او دریيم ډو ل هغه دي چې نه نرم وي اونه ویلیکیدونکي وي لکه چونه ، گچ ،کوئله ، جواهر او یاقوت او په دغو دواړو ډولو کې د تهذیب سره سم زکوة واجب نه دی اوپه سیماب ( پاره ) کې پنځمه برخه زکوة ایستل واجب دي. –

**مسئله** : که یو چاپه اسلامي هیوادکې داسې یوځای خزانه پیداکړه چې هغه د چاپه ملکیت کې نه ؤ لکه صحرا نوکه په پیدا شوؤسکوباندې د اسلاي بادشاهي نښانې ترسترګو کېدلې نو د هغې حکم داسې دی لکه په لاره د پیداکړل شي ، اوکه ورباندې د جهالت د دورې نښانې وې ،نو له ټولې څخه څلور حصې د پیداکونکي ده اویوه حصه به په زکوة کې ورکوي.

**مسئله** : کومه خزانه چې د چاپه خپله ځمکه کې پیداشوه نو د فقهي د علماؤرح په نزد په اتفاق سره د هغې پنځمه برخه په زکوة کې ورکول واجب دي.

**مسئله** : که یو ځای سامان (دمثال په ډول د کور سامان کپړي او غمي) پیداشول ، نو هغه هم د خزانې په حکم کې دي او د پنځمې برخي زکوة ورکول یې واجب دي (فتاوی عالمګیري اردو ۴ج ۲۴مخ کتاب الفقه۱ج ۹۹۲مخ)

## ایا په کانواودتیلو په ذخیروزکوة شته ؟

**مسئله** : په کان او د مائعاتو لکه پطرولو اونوروهغوشیانو کې چې په قالب کې لوېدلای شي خومګر بهېدونکي نه وي په هغوباندې پنځمه واجب د خو دزبق (سیمآب ) په معدن باندي سره له دې چې بهېدونکي دي پنځمه واجب ده ځکه چې دغه شیان که له بل څه سره ګډ شي نوبیا پکي د انطباع ( نقش ، چاپ جوړېدو ) صلاحیت پیداکیږي . د صاحبینو رح په نزد په دغه رنګه معدن باندې په هرحالت کې پنځمه واجب ده که په سرکاري ځمکه کې وي اوکه پخپله ځمکه ، کور ، دکان یابل څه کې وي د امام صاحب په نزد په کور یادکان کې په پیداشوي معدن باندې پنځمه نشته . او د ذاتي

ځمکې په اړوند د امام صاحب دوه روايتونه دي - خو ترجيح پکي دوجوب روايت ته ورکړله شوې ده. که په سرکاري ځمکه کې معدن پيداکړل شو، نو پيداکونکي يې مالک ګرزي اوکه پخپله ذاتي ځمکه کې پيد اشو ، نو د ځمکې خاوند يې مالک ګرزي
(احسن الفتاوی ۴ج ۲۸۸خ)

**مسئله** : د مائعو ( بهېدونکو ) شيانو لکه د خاورو تېلو ،پطرول ،ګېس ،مالګه اونور وپه ترلاسه شوي شی باندې زکوة نشته دغه رنګه په هغوشيانو باندې هم زکوة نشته چې نه په اور اونه مائع وي لکه چونا ، ډبري ، جواهرات او نوروباندې. خوسيماب ( پاره ) له دغه حکم څخه ايستل شوې ده . يعنې هغه که پيداکړل شوه ، نوپنځمه يې په زکوة کې ورکول واجب دي ښکاره خبره ده چې په دفينه (خښ کړل شوؤ ) کې هر هغه شی شامل دی چې له ځمکې څخه را ايستل کېږي .لکه سلاح ګاني ، دکورني ژوند سامانونه او نور ،يعنې په دغو ټولو باندې پنځمه واجب ده. (کتاب الفقه۱ج ۹۹۷مخ)

## ايا د نذر په روپوزکوة لازم دي ؟

**پوښتنه** :يو چاد خپلي امدني دربېه برخه د پاک خدي ﷻ په لاره کي نذر کړه کله چې داسې يو اړاو محتاج ورته په مخه ورځي نو دهغه سره مرسته کوي نو اياپه دغو روپوبه زکوة وي اوکنه چې هغه د غريبانولپاره او يادالله ﷻ په نامه ايښې دي ؟

**ځواب** : که يې په ژبه سره د نذرلفظ ويلي ؤ ،نو بيادغه نذرپوره کول ورباندې واجب دي او حکم يې دادي چې زکوة ورباندې فرض دي مګر داپکي ضروري نه ده چې له نوروپوبه د هغوزکوة اداء کوي بلکه له هغوڅخه دي څلوېښتمه په زکوة کې ورکړي .نوري دي د نذر په

مقصد خيرات کړي اوکه دغه ټولي روپۍ بغيرله نيت د زکوة څخه
مسکينانو ته ورکړي هم د هغو څلوېښتمه برخه په زکوة کې شوه او
پاته يې په نذر کې واجب دي چې دغه ټولې روپۍ به په نذر کې
ورکوي اودهغوزکوة به له نورو روپو څخه اداء کوي. اوکه يې بغيرله
نيت څخه ټولي روپۍ خيرات کړې نوهم زکوة پکي اداء شو مګر د
زکوة په اندازه د نور نذر صدقه کول واجب دي

## ايا په وقف ( بخښل ) شوي مال کې زکوة شته ؟

په وقف ( بخښل ) شوي مال باندې هم زکوة نشته ځکه چې د هغه
مالک نه وي دغه رنګه په هغه کښت باندې هم زکوة (عشر ) نشته
چې په داسې ځمکه باندې وي چې هغه د چاملکيت نه وي ، ځکه چې
هغه هم مالک نه لري. ( کتاب الفقه ١ج ٦٢١مخ – فقه الزکوة ١ج ١٧٧مخ )

**مسئله** : دغه رنګه له دغه حکم څخه هغه مال هم وتلي دي چې داسې
وقف شوي وي چې د چالپاره ټاکل شوي نه وي لکه کوم باغ د مسجد
ياسراي لپاره ، ياپه عام ډول مسکينانو او فقيرانو ته بېله ټاکلو وقف
( بخښل ) شوي وي ، نو ددغه باغ په ميوؤ او نور پيداوار باندې
زکوة ( عشر ) نشته خوکه دغه وقف شوي ځمکه په ټيکه ورکړ له شوه
او ورباندې کرونده ( کرهڼه ) وشوه نو ټيکه دار به د محصول ( هغه
چې له دغې څخه ترلاسه شوي دي ) زکوة ( عشر ) ورکړي –( يعنې په
وقف خو عشر نشته خوکله چې ټيکه دار په ځمکه باندې کرونده
وکړه نو کوم څه چې دهغه په برخه کي ورغلي دي له هغو څخه به عشر
اداء کوي -) ( رفعت قاسمي )

## ایا د زکوة په روپوزکوة شته ؟

**پوښتنه** : یو چاله خپل مال څخه زکوة چلاکړ مګر مستحقینو ته یې لا نه ؤ سپارلی چې پوره یو کال ورباندې تېرشو ، نو آیا زکوة ورباندې واجب دي او کنه ؟

**ځواب** : پر زکوة باندې زکوة نشته . (آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۰مخ فقه الزکوة ۱ج ۱۷۲مخ کفایت المفتي ۴ج ۱۴۳مخ )

## ایا د چندي په روپوزکوة شته اوکنه ؟

**مسئله** : دمدرسې چنده ( د مرستي روپۍ ) چې جمع شي اوپوره کال ورباندې تېر شي ،نوهم زکوة ورباندې نشته. (فتاوي دارالعلوم ۲ج ۴۹بحواله ردالمحتار ۲ج ۹مخ )

**مسئله** : د محلې ( کلي یا کوڅې ) هغه روپۍ چې د خلکو ګډې روپۍ وی او د خلکو د ضرورت د رفع کولو لپاره راټولې شوې وی یا دمسجد روپۍ وې په هغو باندې زکوة نشته. ( کفایت المفتي ۴ج ۲۵۰مخ )

**مسئله** : د مدرسې له مهتمم سره چې د مدرسې د روپو کومه جمع ده په هغوزکوة نشته. ( فتاوی دارالعلوم ۶ج ۵۱مخ )

**مسئله** : کومې روپۍ چې د خیر د کارونولپاره ورکولي کېږی دهغوحیثیت د وقف د مال دي او هغه مال د صدقه ورکونکي له ملکیت څخه وزي ،نو ځکه یې په هغه باندې زکوة نشته. ( آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۲مخ )

## په کومومدرسوکې چې دزکوة دروپو جمع جوړه وی هغې ته زکوة ورکول څنګه دي ؟

**پوښتنه** : په بعضو مدرسو کې نژدې څلوېښت زره د زکوة روپۍ جمع کېږي نو دغه رنګه مدرسې ته دزکوة په ورکولو سره زکوة اداء کېږي او کنه. ؟

**ځواب** : د مدرسې والو ته پکاردي چې د زکوة له روپو څخه په هم هغه کال کې کار واخلي ؛ او مدرسې د هرڅومره ډېر زکوة ورکول صحیح

دي او څه منعه پکي نشته خو که داسې وې چې د کلونو ، کلونو، روپۍ يې سره ساتلې هغومدرسوته بايد زکوة ورنکړل شي ،بلکه هغو مدرسوته بايد زکوة ورکړل شي چې هلته ورته ضرورت وي او کارونه اخستل کېږي .( فتاوي رحيميه ۵ج ۱۲۳مخ – محموريه ۳ج ۲۵مخ

## بې ضرورته زکوة اخستل :

**پوښتنه** : ۱ـ فی الحال دزکوة روپوته ضرورت نشته مګر د مدرسې د رغوني سموني په خيال وار له مخه زکوة اخستل کېږي ايا داسې کول روادي او کنه؟

۲ـ که د مدرسې مهتمم د زکوة د وصول کولو لپاره حيله د تمليک جوړه کړی او بيايې له ضرورت سره سمي کاروي نو دتحليل په حيله باندې زکوة اداء کېږي او کنه ؟

**ځواب** : د مدرسې د همېشوالي ،پرمخ تګ او ټينګښت پخاطر پورتني صورت غوره کول روادي

۲ـ په تحليل سره سمد ستي زکوة اداء کېږي. (فتاوی محموديه ۳ج ۳۹مخ بحواله هدايه ۱ج ۱۷۹مخ

## په کمېشن سره د زکوة چنده وصول کول :

**پوښتنه** : د ېر ځله په مدارسو کي د چندې له روپو څخه په مقرره حصه باندې چنده غوښتله کېږي د بعضو مقرره تنخواه وي که دغه غوښتونکي روپې له مال د زکوة څخه ورکړل شي نو زکوة اداء کېږي او کنه؟

**ځواب** : د چندې په حصه باندې قاصد ياوکيل مقررول روانه دي. کوم زکوة چې مدرسوته ورکول کېږي هغه که په سم ځای کې ولګول شي نوزکوة اداء شوي دي او که داسې ونه شي نونه دی اداء شوی.نو ځکه

تاسو زکوة صرف هغو مدرسو ته ورکوئ چې ورباندې پوره باور د دې ولرئ چې هغه په سم ځای لګولي کېږي – (آپ کي مسائل ۳ ج ۳۰۷مخ)

**مسئله** : د چندې په ټولو سره د کمېشن اخستلو تفصیل داسې دی چې که داسې کارګروي چې تنخواه ولري نو دهغه دښه کار کولو په وجه پر تنخواسربېره فېصدی کمېشن هغه ته د انعام په ډول ورکول روا دی مګر دغه کمېشن د زکوة له روپو څخه ورکول روانه دي بلکه د زکوة پیسې لازمابايد په مدرسه کې جمع کړل شي اومدرسه بايد له خپل امدادي فنډ څخه دغه کارګرته انعام ورکړي او که کارګر داسې نه وي چې تنخواه لري نو بیاپه کمېشن سره چنده کول د اجارې فاسدېدلو په وجه روانه ددي. (هدايه ۳ج ۲۷۰مخ فتاوی دارالعلوم۱ج ۳۳۴مخ فتاوی محموديه ۱۳ج۱۰۲مخ

## زکوة او نور څه په زور اخستل :

**پوښتنه** : که څوک عشر او چنده په زور اخلي اوبیا يې په مدرسه کې مصرفوي دا څنګه دي ؟

**ځواب** : په نفلي صدقو کې زور کارول روانه دي. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۳۳۸مخ)

## له اجازې بغير د زکوة روپۍ لګول :

**مسئله** : له يو چاسره د مدرسې مهتمم د زکوة روپۍ ايښې وې هغه ته څه ضرورت پېښ شو او د مهتمم بې اجازې يې هغه روپۍ ولګولې او بیایې بېرته اداء کړې ،نو دهغه لپاره حکم دا دي چې داسې کول روانه ؤ خو له اداء کولو څخه وروستو هغه ورنه خلاص شو. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۳۳۸مخ

## دزکوة له روپو څخه کمېشن ورکول :

**پوښتنه** : يو څوک خپلو خپلوانو ته چې په بل هيوادکې اوسي زکوة لېږي. نن سبا د روپو په لېږلو کمېشن ورکول کېږي نوآيا دغه

کمېشن له زکوة څخه روکولای شي ؟ د مثال په ډول که هغه زر روپۍ ولېږي نو خپلوانوته یې اته سوه (۸۰۰) روپۍ رسېږي ، نو دغه دوه سوه روپۍ به د زکوة بللي کیږي او که به د لېږونکی بللي کېږي ؟

**ځواب** :دغه دوه سوه روپۍ په زکوة کې نه ګڼلي کېږي نو ځکه لېږونکی باید دوه سوه روپۍ نوري په زکوة کې ور کړی. (فتاوی رحیمیه۲ج۱۰مخ

## ولي د تجارت به مال زکوة واجب دی ؟

پاک خداي ﷻ د انسان لپاره تجارت کول اوله هغه څخه ګټه ترلاسه کول روا ګرزولې ده ، په دې شرط چې د حرام شي تجارت نه وي ، او په معاملاتو کې سچه والی ، امانت داري او نور اخلاقي اصول پرېښودل شي. اوپه تجارت کي دومره زیاته مشغولتیا هم نه وي چې له امله یې انسان د الله ﷻ له ذکر او د الله ﷻ د حقونو له اداء کولو څخه غافل شي - داخبره هم باید د تعجب وړ ونه ګڼله شي چې اسلام له تجارت څخه په ترلاسه کېدونکي مال باندې د نقدي زرو په څېر کلني زکوة مقرر کړی دي ترڅو د الله ﷻ د نعمتونو شکر اداء کړل شي او دهغه له بندګانو څخه د محتاجوبندګانو حق اداء کړل شي. او په عام المنفعه ګټوکې شرکت کي وشي کوم چې له هر زکوة څخه مقصد دي - په اسلامي فقه کې په تجارت باندې د زکوة حکونه هم بیان شوي دي ترڅوهر مسلمان تاجر ته دا معلومه شي چې د هغه په کوم مال باندې زکوة شته اوپه کوم نشته د فقهي علماؤ تجارتي دولت ته ( عروض تجارت ) ویلي دي او له دې څخه د هغومراد له نقدو زرو څخه بغير هر هغه سامان دي چې د تجارت لپاره تیار شوی وي هغه که هر قسم مال وي د مثال په ډول ماشینونه وي ، د استعمال سامان

وي ، کېږي وي ، دخوراک او څښاک شيان وي – ګېڼې او جواهروي حيوانات که نباتات وي ، کوروي که ځمکه وي منقول وي او که غير منقول جايداد وي لنډه داچې هرهغه شی چې د ګټې حاصلولو په مقصد د اخستلو او خرڅولو لپاره تيارکړل شوي وي هغه مال د تجارت بلل کېږي غرض دا چې له چاسره چې د تجارت مال وي او پوره کال ورباندې تېرشي ، او قيمت يې د نصاب تراندازې رسېدلی وي ، نو په هغه باندې زکوة لازم دي يعنې د سامان د قيمت څلوېښتمه حصه يا دوه نيم فيصده ، کوم چې د نقدی زرو حساب وي –( فقه الزکوة ۱ج ۴۱۴تر ۴۱۲مخ پوري )

اسلام نه يوازې چې انسانانو ته د تجارت او محنت ترغيب وکړي دي بلکه تاجرانو ( تجارت کونکي ) ته يې د دې ترغيب هم ورکړی دی چې د تجارت مسئلې او دهغه علم زده کړي – نن سباخو د نړۍ په هره برخه کې دکومرس ( comerc ) په نامه پوهنتونونه موجود دي خو د دې هرڅه بنياد ترټولو له مخه حضرت عمر رضی الله عنه کړيده . د جامع ترمذي په يو روايت کې راغلي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په دورکي اعلان کړي ؤ چې زمونږ په بازارونو کې دې صرف هغه تجارت ( راکړورکړه ) وکړي څوک چې له دين څخه خبر او د تجارت په مسئلو پوهيږدونکي دي . بيا په وروستو کې هغه (رض) د دې لپاره خاصې ادارې په کار وګمارلې چې د وخت عالمان به ورته راتلل او تاجران به هم هلته راغونډېدل او بيا به تاجرانو له علماؤ څخه د خپل مشکل پوښتنې کولې . همدا رنګه حضرت امام مالک رح هم هغه عالم ؤ چې د ماخوستن د لمانځه څخه وروستو به د شپې تر دولسو بجوله تاجرانو سره په مدينه منوره کې ناست ؤ او

هغوته به يې د تجارتي راکړي ورکړي ، زکوة اونوروشيانو مسئلې ورښوولې . (محمدرفعت قاسي صاحب)

## د تجارت د مال د زکوة شرطونه

د حنفي مذهب د پيروانو په نزد د تجارت په مال کې د زکوة واجبېدلو لپاره څو شرطونه دي:

۱ـ داچې د تجارت مال به د سرو يا سپينو زرو له حسابه نصاب پوره کړی وي –او دا د زکوة ايستونکي خوښه ده چې د سرو زرو له قيمت څخه نصاب پوره کوي او که د سپينو زرو له قيمت څخه ( يعنې د دوړو نصابونو څخه کولای شي . که د دو پنځوس ( ۵۲ ) نيموتولو سپينو زرو د قيمت سره سم د تجارت مال ؤ ، نو زکوة ورباندې واجب دي . او مال د قيمت لپاره به هغه ندازه لګوله کېږي کومه چې به دغه ښهر کې وي . او که دغه مال کوم بل غريب ځای ته لېږل کېږي ،نو بيابه دهغه شهر د قيمت په اندازه قيمت کې کوم چې هغه ته نژدې دي

۲ـ شرط دادی چې په هغه مال باندې پوره يو کال تېرشي –او په دغه ډول به د کال سراو پای په نظر کې نيول کېږي يعني که يو څوک د کال په سرکي د نصاب مالک شو او د کال په مينځ کې له هغه سره مال تر نصاب کم ؤاو د کال په پای کي بيا حد د نصاب ته ورسېدؤنو په هغه باندې زکوة واجب وي ،لهذا که کوم ښاروی د خدمت ( سوارلی ) لپاره واخستل شو بيا وروستو ورته د تجارت کولو اراده پيدا شوه ،نو هغه به مال د تجارت نه بلل کېږي تر څو چې په خرڅولو او يا کرايه ورکولو کې واقع نشي که يو چاد تجارت مال په دغه ډول په بل مال باندې بدل کړ، نو انحصار د نيت په اصل مال باندې دي – په هغه څه

پوري نیت ترلی نه دي چې هغه په بدل کې اخستی دی نو لهذا د تبادلې مال به د تجارت مال بلل کېږي او کوم نیت چې د اصل لپاره شوی دي هغه ورته کافي دي – خو که يې د بدلون پر وخت د هغه د تجارت اراده نه لرله ،نو بیا د تجارت مال نشي بلل کېدای.
۔۳- شرط دادي چې په هغه مال کې به دا صلاحیت وي چې د تجارت نیت پکي وشي ، نو که چاداسې ځمکه .واخستله چې په پیداواربانديږ يې عشر ؤ اوپه هغې يې کرونده وکړه او پیداواريې ورڅخه واخست ،نوپه هغه باندې زکوة عشر واجب دی ، زکوة ورباندې نه دي واجب. داحکم د خراجې ځمکې نه دي په هغې باندې زکوة ( عشر ) واجب نه دي که څه هم کښت يې نه وي کړی که له یو چاسره څرېدونکی څاروی ؤ اولاتراوسه يي کال پوره شوی نهؤ چې هغه يې د تجارت اراده ختمه کړه او هغه يې د شیدو یانسل ډېرولو یاکوم بل څه لپاره پرېښودلواو هغه په په صحرایاځنګل کې څرېدل پیل کړل نو ددغه مال د تجارت کال ختم شو او له دغه وخته څخه هغه سائمه څاروی وګرزیدو اوله دغې ورځې وروستو چې یو کال پوره شي بیابه د سائمه څارویو په ډول ورڅخه زکوة باسې قیمت به ورته نه لګول کېږي – کتاب الفقه ۱ج له ۹۸۷ څخه تر ۹۸۹ پوري )

## ولي د زکوة لپاره د کال تیریدل شرط دي ؟

شریعت نه د زکوة وجوب حکمرانانو ته پرې ایښی دي چې هر وخت وغواړي زکوة له خلکو اخستل پیل کړي او نه يې د بخیلانو خوښې ته پرې ایښی دي چې هر کله يې اداء کېدل غواړي هغه وخت يې اداء کړي بلکه اسلام زکوة د یوه محدود تاکلی قانون لاندې د کلني او

ښتون سره تړلی دی او د دې لپاره يې کال ورته د اندازې په ډول ټاکلي دي چې په ټول کال کې دفصلونو ټول تغيرات بشپړېږي دمال لرونکي امدني پوره کېږي اود محتاجانوضرورتونه اوج ته رسېږي لنډه دا چې د يو کال مده داسې يوه له عقل سره سمه مده ده چې پکې د اصل زيادت يقيني کېږي – د تجارت ګټه او تاوان پته تاجر ته لګېږی او د څرکونکو ځارويو نوي نسل دنياته راځي او واړه غټېږي امام ابن قيم رح فرمايي چې الله ﷻ ځکه زکوة په يو کال کې يو ځلي واجب کړی دي چې په يو کال کې د هر ډول فصلونو ميوي تياريږي او دغه مده ډېره ښه په انصاف ولاړه ده ، ځکه چې که په هره هفته ياهره مياشت کې زکوة واجب وای نودابه مالدارانو ورونوته ډېر تکليف ؤ اوکه په ټول عمر کي يووار زکوة فرض وای نو بيا دفقير په ضرر ياتاوان تمامېدله ، نو ځکه يو کال ده د زکوة د وجوب لپاره يوه ډېره عادلانه مده ده . (فقه الزکوة ۲ج ۳۲۲مخ بحواله هدايه مجتهد ۱ج ۲۲۱مخ زاد المعاد ۱ج ۲۰۷مخ)

## په څومره تجارت زکوة فرض دی ؟

**مسئله** : د زکوة د وجوب لپاره د زکوة په نصاب باندې د پوره کال تېرېدل يو شرط دي – که يو څوک د کال په پيل کي تر نصاب د کم مال خاوند ؤ ، بيا يې په هغه کم مال باندې تجارت وکړ چې هغه ګټه دومره شوه چې اندازه دنصاب ورڅخه پوره شو دکال له **تېرېدلو** وروستو په هغه باندې زکوة واجب شو اوکه د کال په پيل کې نصاب پوره ؤ بيا د کال په جريان کې د تجارت له کولو څخه هغه څه ترلاسه کړل چې دهغه مال له جنس څخه دي نو هغه مال دي ( چې له خاوندد مال سره دي ) په دغه ګټه کي ورکړي او دټول کال زکوة دي د

اصل مال اداء کړي په دي شرط چې له اصل مال څخه نصاب پوره وي
ځکه چې که اصل مال نصاب پوره کړي نو دهغه ګټه به د اصل مال په
څېر بلله کېږي. (کتاب الفقه۱ج ۹۲۵مخ)

## له تجارت څخه د زکوة ایستلو طریقه

**مسئله**: د تجارت د مال اصل ته له قیمت لګولو سره د زکوة اداء کول
واجب دی - اول باید خپل ټول تر قیمت وایستل شي اوبیا دټول
قیمت سره یو ځای کړل شي هغه که د هر ډول مختلفومالونو(لکه
کپړې، د پټل سامان او داسې نور) وي دغه رنګه به هغه ګټه چې په
دغه یو کال کې ترلاسه شوې ده هغه به هم دمال په قیمت ورګډه کړئ
،نوبیا به د ټولو زکوة اداء کړئ. خو په دې شرط چې تر نصاب کم نه
وي -لنډ دا چې د زکوة وجوب په ټول کال کې دنصاب له پوره والي
سره تړلي دي. (کتاب الفقه۱ج ۹۹۴مخ)

**مسئله**: کله چې د زکوة د اداء کولو وخت شو، نو تاسو خپلو نغدو
اوتجارتي سامان ته حساب وکړي اودتجارت ټول سامان قیمت په
نغدي ډول وټاکئ بیا په دغوروپو کې هغه قرض چې داسې چاته
ورکړي دي چې د بېرغړیبان نه دی هم ورګډ کړی - بیاله دغې ټولې
مجموعې څخه هغه قرض چې په تاسې اداء واجبه ده جلاکړئ اوله
پاته ټول قیمت څخه زکوة وباسئ. (فقه الزکوة ۱ج ۲۴۲مخ)

**مسئله**: که له یو چا سره څه اندازه سره زر ؤ څه سپین زرؤ څه روپۍ وی
اوڅه د تجارت مال خو په یوازې ډول له یوه څخه هم نصاب نه پوره
کېدی، نود ټولوګډ قیمت دي معلوم کړی، که د دوه پنځوس
نیموتولو سپینوزرو له قیمت سره برابر شو، نو زکوة یې واجب دي.
(امدادمسائل زکوة ۴۸مخ کتاب الفقه۱ج ۹۲۴مخ)

## په څلوروډوله قرضوباندې د زکوة حکم :

**مسئله** : په شریعت کې هغه شي یا روپوته چې د چاپه ذمه پاته وي قرض ویل کیږي اودزکوة د حکمونو په لحاظ قرض ( پور ) په څلور قسمه دي.

۱ـ هغه قرض چې بل چاته ورکړل شوی وي : تاجر هغه سامان چې دتجارت لپاره ؤ خرڅ کړی وي او د هغه قیمت لاورته رسېدلی نه وي. دغه روپۍ که ټولي په یوځای وصول شوې ،نود ټولو زکوة به اداء کوئ. او که څوکلونه وروستو روته ورسېدلې نو د ټولوکلونو زکوة به په یوځای اداء کوي او که دغه روپۍ لږ ، لږ وصول کېدلی ،نوڅومره اندازه چې وصول کیږی دهغودي زکوة اداء کوي

۲ـ دوهم صورت د قرضوپه داسې ډول دي چې د سامان قیمت ورباندې پاته وي خوهغه یوداسې سامان وي چې اصلا د تجارت لپارنه وی ،په هغه مال باندې هم زکوة هغه وخت واجب دی چې واپس د خپل خاوند لاس ته ورسیږي ،اوله وصول کېدلو وروستو د هغې ټولي مدې زکوة اداء کوي له کله څخه چې هغه دغه سامان خرڅ کړي ؤ ،خوله هغوروپوبه زاکوة هغه وخت اداء کوي چې ټولي په یوځای ورته ورسیږي ؛ دا چې کله سل (۱۰۰)کله دوه سوه ، کله څلور سوه ورته رسیږي په هغوباندې زکوة نشته ، دغه رنګه پاته روپوته ( دین وسط ) ویل کیږي.

۳ـ داسې روپۍ چې د کوم مال د بدلې په وجه په بل چاپورنه وي.لکه د مهر (ولور ) ورپۍ چې هغه دمال په بدل کي په مقابل جانب باندې پورنه وي بلکه د بې ګناه مېرمني بدله وي په هغو باندې زکوة هغه وخت لازمیږي چې قبضه ورباندې وشي او د قبضې له وختنه وروستو

وربانديږ پوره يو كال تېر شي او دفقهي په اصطلاح دغه رنګه قرض ته ( دين ضعيف ) ويل كېږي.

۴- په داسې قرضو چې بېرته ترلاسه كول اوياپه داسې مال چې حاصلول يې ناممكن ياسخت وي هم زكوة نشته – اوكه داسې پور وصول شو چې اميديې نه كېدى نوهغه به ورنه د ټولې مدې زكوة باسي –دفقهي په اصطلاح كې هغه ته ( مال ضمار ) ويل كېږي.

( فتاوى هنديه۱ج ۸۹مخ ) د فقهي دغه احكام دخپل نوعيت په لحاظ نوي نه دي مګر نن سبا چې د بقايه جاتو اوپورونو كوم مختلف صورتونه د نوي ژوند د نظام او انتظام د طريقي په وجه رامينځ ته شوي دى د دغو اصولي احكاو په ذريعه په اسانۍ سره حل كېداى شي .( جديد فقهي مسائل ۱۱۸مخ )

## په نغد او خرڅ شوي مال زكوة :

**مسئله** : د كال په پاى كي چې څومره نغدي روپۍ اود تجارت مال موجود دي په هغو ټولوبانديږ زكوة واجب دى اوكومى روپۍ چې بل چاته د پور په ډول وركړل شوي دي په هغوهم زكوة واجب دى مګر زكوة به يې له وصول كېدلو څخه وروستو اداء كوي ،او كومي روپۍ چې وصول نه شوې دهغه زكوة ورته معاف دي ، او كوم مال چې د ټول كال په بهير كې خرڅ شوپه هغه بانديږ زكوة لازم نه دي ، اوكوم لوښئ ( لكه د دكان سامان د كور سامان اونور ) چې د تجارت په نيت نه وي اخستل شوي په هغوبانديږ هم زكوة نشته خو ،له دوي څخه هغه چې خرڅ كړل شي اودهغه د قيمت روپۍ په موجوده روپو كي ګډوي ،نو دهغه به زكوة وركوي. ( فتاول دارالعلوم ۲ج ۵۸بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۲مخ )

## ایاتاجر به د پور اونغدو دواړو زکوة اداء کوي ؟

**پوښتنه** : یو تاجر دي چې څه روپۍ یې په خلکو پور دي او څه روپۍ ورسره موجودې دي ؛نو آیاهغه به د دواړو ډولو روپو زکوة اداء کوي او که صرف د نغدو ؟

**ځواب** : هغه به دواړه ډولو روپو زکوة اداء کوي خو فرق پکي صرف دادي چې د پور زکو ة وروستو له ور رسېدلو په هغه باندې لازمېږي. او هغه وخت بیا د تېروخت زکوة همورباندې واجب دي.

( فتاوی دارالعلوم ٦ج ۱۵۲مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۲مخ

## ایا د زکوة لپاره دهري ورځي حساب کول ضروري دي ؟

**مسئله**: : هره ورځ د زکوة لپاره د حساب کولو ضرورت نشته په سپوږمیځ تاریخ کې یو ورځ د حساب کولولپاره وټاکئ اودټول د کان هغه سامان ته چې د خرڅېدلو وړوي حساب وکړئ اومالیت یې معلوم کړئ او بیاله هغه حساب سره سم زکوة اداء کړئ ، په کوم تاریخ چې مو دکال پیل کړي دي هر کال په هغه تاریخ ورته حساب کوئ.

## ایا امدني ته هرکال حساب کول ضروري دي ؟

**مسئله** که په امدني کي امکان د کموالي اوزیاتوالي موجود ؤبیاورته هر کال حساب ضروري دي او که صرف یوه اندازه پیسې له چاسره ایښې وي یا زر ورسره ایښي ؤ او داسې امدني ورځخه نه ترلاسه کېده چې زکوة ورباندې لازم شي ،نوبیا ورته صرف یو ځلي حساب کول کافي دي له هغه څخه وروستو دي هرکال دهغه حساب له مخي زکوة اداء کوي ( فتاوي محموديه ۷ج ۲۵۵مخ )

## د لږبچت زکوة بايدله کوم حساب څخه اداء شي ؟

**مسئله** : په دې اصل بايد ځان پوه کړئ چې چاته دومره کم ،کم بچت لاس ته ورځي چې د هغه داتوله شوې جمعه د دوپنځوس نيموتولو سپينو زرو ماليت ته نه وي رسېدلې په هغه باندې زکوة واجب نه دي. اوکله چې دهغه جمعه مذکور ماليت ته ورسېږي اوله قرضو څخه هم خلاص وي ، نو بيا ورباندې يو سپوږميځ ( قمري ) کال وروستو په دغه ورځ په هغه باندې زکوة واجبېږي - (آپ کي مسائل ۳ج )

**پوښتنه** : زکوة به دهغه قېمت له قراراه باسي کوم چې يې مال ورباندې اخستي دي او که دموجوده قېمت له قراراه ؟

**ځواب** : هغه قېمت د اعتبار وړ دي کوم چې د زکوة ورکولو په وخت کې دي. ( فتاوى دارالعلوم ۲ج ۲۱مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۳۰مخ )

**مسئله** : په زکوة کې دشيانوهغه قېمت د اعتبار وړ دي کوم چې په عام ډول رواج دي ، د تجارت قېمت ځکه د اعتبار وړ نه دي چې په هغه کې خاص تخفيف او رعايت موجود وي. هغه قېمت معتبر دي چې د عامو اخستونکو لپاره وي. ( امداد الفتاوي۲ج ۲۴مخ )

**مسئله** : په زکوة کې به دتجارت د مال د خرخېدلو قېمت ورکول کېږي. ( احسن الفتاوى ۴ج ۴۹۹مخ )

## کومې روپۍ چې د کال په بهير کې زياتېږي او کمېږي :

**مسئله** : د کال په پيل اوپای کې د نصاب پوره والی د زکوة لپاره شرط دي که په منځ د کال کې روپۍ يامال کم شي ،نوهغه د اعتبار وړنه دی دمثال په ډول له يو چاسره د کال په پيل کې درې زره روپۍ وې ،درې مياشتې وروستو روسره پنځه لس سوه (۱۵۰۰) پاتې شوې ،بيا

ځلور مياشتي وروستو ځلور زره شوې او د کال دپای ته رسېدو پروخت هغه د ځلورنيمو زرو روپو مالک ؤ ،نوهغه به د ځلورنيمو زرو روپو زکوة اداء کوي. د کال په مينځ کې که روپۍ کمي يازياتي شوې هغوته اعتبار نشته. (آپ ک مسائل ۳ ج ۳۴۰ مخ فتاوی دار العلوم ۲ ج ۷۷مخ )

**مسئله** : که يو څوک د کال په پيل او پای کې د مال خاوند ؤ او بياپه د کال مينځ کي دنصاب تر اندازې کم شو ،بياهم زکوة واجب دي دلږو ورځو د مال په کموالي سره زکوة نه معاف کېږي. خو که ټول مال ختم شو او له هغه وروستو يې نور مال پيدا کړ، نو بيا به له هغه وخت څخه د زکوة کال پيل کوي کوم وخت چې يې نوی مال ترلاسه کړي دي

**مسئله** : له يو چاسره دوه پنځوس نيمي تولې سپين زرؤ د پوره کال تېرېدلو له مخه دوه يا ځلور تولې نورسپين زر يانه لس تولې سره زر ورته ميلاو شول ، نو هغه اوسني لاس ته راغلي زربه جلانه شمېري ، بلکه کله چې د دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو کال پوره شو نو له هغه سره به د دغوزکوة هم اداء کوي (امداد مسائل زکوة ۴۹ مخ بحواله احکام زکوة ۱۹مخ )

## تر بچت د زياتو قرضوحکم :

**پوښتنه** : زيد له کمپنۍ څخه شل زره ورپۍ قرض واخستلې او بيايې ورباندې کپړه واخستله دا وخت په زيدباندې زکوة شته اوکنه ؟ په داسې حال کي چې د قرضو د اداء کولو په وجه د هغه بچت نشته ؟

**ځواب** : په دغه صورت کي چې د موجود مال په اندازه په هغه باندې پورپاته دي او بچت هيڅ نشته ،نو په زيد باندې زکوة واجب نه دي.

( فتاوی دار العلوم ۶ ج ۲۵ مخ بحواله رد المحتار ۲ ج ۹ مخ )

## کومې روپۍ چې د کال په دولسمه میاشت کې مصرف شي

**پوښتنه** : له یو چاسره تر ضرورت زیاتي روپۍ وې کله چې په روپو لاپوره کال نه ؤ تېر شوی نوهغه ورباندې مکان ، سامان یا بل شی واخست ، نو په هغه باندې زکوة شته او کنه ؟

**ځواب** که کال لابدل شوی نه ؤ چې هغه ورباندې څه شي واخست ( چې زکوة ورباندې نه ؤ )نو دهغو روپو زکوة ساقط شو .
( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۷۰مخ بحواله هدایه ۱ج ۱۲۸مخ )

## د کال غله چې تر یو کال زیاته شي :

**مسئله** : هغه غله ( اوړه ) چې د خوړلولپاره وي او دومره اخستله شوې وی چې له یو کال خوړلو وروستو هم زیاته شي ،نو په هغې باندې زکوة نشته .( فتاوی دارالعلوم ۲ج ۷۲مخ بحواله عالمگیري –۱ج ۱۲۱مخ )

## د نغدو روپو ،د تجارت ،موجود مال او قرضود زکوة حکم :

**پوښتنه** : یو تاجر دي چې نژدې لس زره روپۍ ورسره نغدي پرتې دي ،د پنځو زرو روپو ورسره تیار مال پروت دي ،اود درو زرو روپو مال یې په کارخانه کې پروت دي او نژدې پنځه زره روپۍ یې په خلکوباندې پور پاته دي چې کمي کمي وصول کېږي ،نوایا هغه صرف د هغوروپو زکوة ورکوي چې نغدي په صندوق کې وروسره پرتې دي اوکه به دمال او پور زکوة هم ورکوي ؟

**ځواب** : د نغدوروپو ، د تجارت د موجوده مال او دهغوروپو چې د قرض په ډول یې په خلکوپاته دي د ټولو زکوة اداء کول ورباندې واجب دي – خوهغه قرض چې په خلکوپاته دي چې کله وصول شي

نو د تېرو کالو زکوة به یې هم اداء کوي - او که تروصول کېدلو له مخه د هر هر کال زکوة په خپل وخت اداء کړي نو هم صحيح دي. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۳۳مخ)

## د کوم مال قیمت چې بدلیږي، رابدلیږی:

**پوښتنه**: که د مال قیمت بدلیدی آن چې کله خودا خستلو تر قیمت هم ټیټیدی او د خرڅولو یې هیڅ لاره نه وه، نو دهغه زکوة باید څه ډول ورکړل شي؟

**ځواب**: کله چې د تجارت په مال باندې پوره کال تېرشي نو کوم قیمت چې د کال پوره کېدلو پر وخت دهغه دي دهغه په حساب دي څلوېښتمه برخه د زکوة اداء کړي که له نغدو څخه وي اوله موجوده مال څخه. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۴۵مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۳۰ مخ باب زکوة الغنم)

## د تاجر لپاره د مال اخستلو قیمت معتبر دي اوکه موجوده قیمت؟

**پوښتنه**: له تاجر سره مال دي هغه غواړي وروستو له تېرېدلو د یوکال څخه اوس د هغه زکوة اداء کړي، نو دهغه مال به داخستلو قیمت ته اعتبار ورکول کېږي او که د بازار د راکړي ورکړي قیمت ته؟

**ځواب**: د زکوة د اداء کولوپروخت چې په بازار کې ددغه مال کوم قیمت دي دهغه قیمت له مخې به زکوة اداء کوي - هغه قیمت که د اخستلو تر قیمت زیات وي او که کم. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۴۹مخ بحواله ردالمحتار ۴ج ۴۲مخ)

## په قرضو روپو د تجارت کولو زکوة

**پوښتنه**: زید له چاڅخه دولس زره روپۍ قرض واخستلې او تجارت یې ورباندې شروع کړ، ذاتي سرمایه ورسره هیڅ هم نه وه، ایازکوةورباندې لازم دي او کنه؟

**ځواب**: دا وخت په زید باندې زکوة لازم نه دي کله چې تر دولسو زرو دومره زیات (چې اندازې ده نصاب ته رسېدلې وي) حاصل هغه ته ورسېږي، نو بیا دهغو تر پور زیاتو زکوة اداء کول واجب دي.
(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۴۱مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۹مخ)

## په تجارت کې د نفع او خرڅ زکوة څنګه اداء کړي؟

**پوښتنه**: که یو تجار له زرو روپو څخه تجارت پیل کوي، او کله چې یو کال وروستو وزته حساب کوي نو له هغه سره دیونیم زرو روپو مال موجودي او تر څنګ یې ټول کال خپل خرڅ هم له هغو څخه کړي دي، نو ایا هغه به د دغو موجودو او خرڅ شوؤ ټولو زکوة باسي او که به صرف د یونیم زرو روپو؟

**ځواب**: اوس په هغه باندې د یونیم زرو روپو زکوة لازم دي.
(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۴۵مخ بحواله هدایه ۱ج ۱۷۵مخ)

## په خرڅېدونکی مال او دهغه په ګټه باندې زکوة:

**پوښتنه**: زمایو دوکان دي چې درې کاله کېږي چلوم یې خودغه درې کاله مې زکوة نه دي اداء کړي، نو ایا د دوکان په ټول مال باندې زکوة لازم دي او که صرف دهغه په ګټه باندې ګټه باندې؟

**ځواب**: ستاپه دوکان په ټول مال باندې زکوة لازم دي هغه ته حساب وکړه او ګټه یې هم ورسره وګڼه او بیا دهرهر کال زکوة اداء کړه اوپه کور کې چې داسې شیان دي چې زکوةورباندې شته د هغه زکوة هم ورسره اداء کړه، د تېروکلونو د زکوة اداء هم ستا په ذمه ده، هغو نوروته هم حساب وکړه او اداء یې کړه، دکال په جریان کې چې کومې روپۍ د کور په شیانو او اوړو باندې لګېږي په هغو باندې زکوة نشته. (آپ کي مسائل ۳ج ۳٦۱مخ)

## د ګوړې زکوة به څه ډول اداء کوي ؟

**پوښتنه** : که چا د ګوړي تجارت کاؤ هغه به يې زکوة څه ډول اداء کوي ؟

**ځواب** : د ګوړي ټول قيمت دي معلوم کړي او بيا دې څلو ښتمه برخه په زکوة کې ورکړي او يا دې پخپله ګوړه په زکوة کې ورکړي.
(فتاوی دارالعلوم ٦ج ۱۵۴مخ)

**مسئله** : که چا د زمکي لپاره تخم او کود (زراعتي سره ) ساتلې وه ،نو په هغه باندې زکوة نشته. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۴مخ)

## د مختلف النوع (چې ډول يې سره بدل بدل وي) مال زکوة :

**پوښتنه** : يو څوک دي چې د کپړې تجارت کوي ،له هغه سره د پنځو زرو روپو مال موجود دي ،او هغه چې خلکو ته کوم پورونه ورکړي دي له هغو څخه د پنځوزرو روپو وصول کېدل يقيني وي او د درو زرو روپو په وصول کېدلو کې شک وي او دوه زره روپۍ داسې وي چې د وصول کېدلو يې بالکل اميدنه وي .او په دغه تجارباندې څلور زره روپۍ قرض هم وي ،نو په دغه صورت کې د څومره روپو زاکوة بايد ورکړل شي ؟

**ځواب**: کومه اندازه مال او نغدي روپۍ چې دا وخت ورسره موجودي دي دهغوزکوة دي د پوره کال ه تېرېدلو وروستو سمدستي اداء کړي ، او کوم مال چې په پور خرخ کړي شوي دي او روپۍ يې لاتراوسه په خلکو پور دي دهغو زکوة په وصول کېدلوسره واجبېږي څومره چې وخت په وخت ورته رسېږي د هغو دي زکوة اداء کوي او کوم قرض چې دهغه په ذمه دي هغه دي له موجود مال يا نغدو څخه جلا کړي ، او د نور دي زکوة اداء کړي . (فتاوی دارالعلوم ٦ج ۱۴٦مخ بحواله ردالمحتار ۲ج )

## هغه مال چې سوداګرانوته حواله شي :

**پوښتنه** : ډېر تجاران خپل د تجارت مال سوداګرانو ( کاروباريانو ) ته ورکړي او دهغه قيمت اداء کېدل له قوي قرينو څخه تاکلي هم وي په دغه صورت کې هغه قيمت چې د دوي ( اخستونکي او خرڅونکي ) په زړوکي دي د زکوة لپاره نصاب ګڼل کېداى شي او کنه ؟ ځکه ډېر وخت داسې وي چې کله هم تاجرانو ته مال راورسېږي هغه ټول کارباريان د قرضويا پورپه ډول وړي.

**ځواب** : د دغه مال زکوة واجب دي مګر اداء کول يې وروستو له وصول کېدلو څخه واجبېږي اوپه کوم کال کې چې دغه روپۍ ورته ورسېدلې نو د تېرې زمانې زکوة اداء کول هم ورباندې لازم دي.

( فتاوى دارالعلوم ٦ج ۱۴۷مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۴۸مخ )

## د ګټې زکوة به څه ډول اداء کوي :

**پوښتنه** : آيا تجار به هغه ګټه چې د کال تر پوره کېدلو له مخه يې کړې ده له اصل مال سره ګډوي او بيا به زکوة باسي او که به صرف له خپل مال څخه باسي.

**ځواب** : په کال کې چې کومه ګټه ترلاسه شوې ده هغه به هم د کال په پاى کې د اصل مال په زکوة ايستلو کې ورګډېږي.

( فتاوى دارالعلوم ٦ج ۱۵۲مخ بحواله هدايه ۱ج ۱۵۷مخ کتاب الزکوة الخيل )

**مسئله** : د کال په پاى کې چې د اصل مال او دهغه د ګټې په ګډه سره هر څومره وروپۍ شوې د هغوټولو به زکوة اداء کوي.

(آپ کي مسائل ۳ج ۳٦۱مخ و کفايت المفتي ۴ج ۲۴۱مخ )

## د مال په ليږلوراليږلو باندې د زکوة حکم :

**پوښتنه** : زه له ښاره څخه مال راوړم او په کلي کې يې وړو سوداګرانو ته رسوم – د مال اخستلو به ما باندې ( ۳۰۰۰۰ ) روپۍ پاته دي ، اوپه

مال اخستونکو باندې زما (٨٠٠٠) روپۍ پور دي او له ما سره نژدې د (٨٠٠٠٠) روپو مال موجود دی ، نو تاسو راته دا وښايئ چې زه څه ډول زکوة اداء کړم

**ځواب** : څومره ماليت چې له تاسره موجود دی هغه که نغدي روپۍ وي او که د تجارت مال او هغه روپۍ چې ستاپه نورو باندې قرض دي ټولې سره راجمع کړه او بيا له دغه ټوليز رقم څخه هغه پور چې د خلکو په تا باندې دي جلا کړه د هغه تر جلاکولو وروستو چې څومره شته پاتې شول د هغوزکوة اداء کړه په پورتنې صورت کې نژدې.

( ٦٨ ) زره روپۍ د زکوة په تا واجب دي. (آپ کي مسائل ٣ج ٣٦١مخ ·

## د قرضوپه کاروبادباندې زکوة :

**پوښتنه** : زيد د قرضوپه روپو باندې دوکان خلاص کړ. کله چې کال پوره شو دوکان ته حساب وکړنو له (١١٠٠٠) زره څخه د (٩٥٠٠) زرو روپو مال موجود ؤ او په دوکان باندې (٦٠٠٠٠) روپۍ پور نورهم ؤ او نغدي صرف دوه زره ورپۍ وې ، نو د هغوزکوة شته او کنه ؟

**ځواب**: کوم سامان چې د پلورلو وړ دي د هغه له قيمت څخه د قرضو ( هغه چې په دوکان دي ) لرې کړه ، او پاته روپو ته دې دغه دوه زره هم ورګډې کړي او بيا دې له ټولو څخه زکوة اداء کړي. (آپ کي مسائل ٣ج ٣٦٣مخ )

## د شيانو جوړپه جوړولوباندې زکوة

**پوښتنه** : د شيانو جوړلو په کوم سامان باندې زکوة شته ؟

**ځواب** : د شيانو جوړولو له کارګرسره دوه ډوله شيان ي ،يو هغه خا م مال وي چې ورنه د شيانو په جوړولو کې کار اخستل کېږي او يو تيار شوی مال وي؛ په دغه دواړه قسمه مالونو باندې زکوة شته ، خو په

ماشينونو او نوروهغو سامانونو باندې چې د مال په تيارولو کې د ونه کار اخستل کيږي زکوة نشته. (آپ کي مسائل ٣ ج ٣٦٢ مخ و کفايت المفتي ۴ ج ۱۴۲ مخ)

## د شراکت د کاروبار زکوة :

**پوښتنه** : دؤو ورونو په ګډه سره دکان خلاص کړ، روپۍ د يوه ورور دي او د دکان چلول په بل ورور دي او ګټه سره په نيمايي ده. آيا د دې زکوة به څوک اداء کوي څکه دا خو د شراکت کاروبار دي ؟

**ځواب** : لومړی تاسو بايد په دې ځان پوه کړئ چې کله څوک د کاروبار لپاره روپۍ ورکړي اود هغه کاروبار په ګټه کې د روپۍ ورکونکي حصه وي هغه ته د شريعت په اصطلاح کي ( مضاربت ) ويل کيږي. چې نن سبا خلک ورته په عام ډول شراکت وايي، په دغه کاروبار کې يو اصل رقم وي او يو د هغو ګټه وي. د اصل رقم زکوة د هغه په مالک ( ورکونکي ) باندې واجب دي او دهغه چاچې په ګټه باندې کار کوي ک ګټه نصاب اندازې ته رسيدله نو په هغه باندې هم د خپلې حصې زکوة واجب دي ،او کومه څمکه چې د دکان جوړولو لپاره اخستله شوې ده په هغې باندې زکوة نشته. (آپ کي مسائل ٣ ج ٣٥٠ مخ)

**مسئله** : د دغو روپو زکوة په زيد باندې لازم دي. او په هغه چاچې په ګټه کار کوي هم د خپلې ګټې د حصې چې حد دنصاب ته رسيدلې وي او پوره کال ورباندې تېر شي زکوة لازم د ي.

( فتاوی دارالعلوم ٦ ج ١٥٥ مخ بحواله ردالمحتار ٢ ج ٣١ مخ )

## قرضدار تاجر ته زکوة ورکول څنګه دي :؟

**پوښتنه** : يو تاجر سخت قرضدار شو او د خزانې ( ساتل شوې روپۍ ) ورنه ټولې ختمې شوې ، ايا هغه ته په داسې حال کې چې په کورکې ورسره د لسو زرو روپو په قيمت ګېڼه وي زکوة ورکول کېدای شي اوکنه ؟

**ځواب** : په کور کې چې کومه ګټه ده هغه خو دهغه د مېرمنې ده او قرض خو د تاجر په ذمه دي ، نو ځکه هغه د زکوة اخستلو مستحق دي . ( فتاوی محمودیه ۳ج ۲۱مخ )

**مسئله** : هغه قرض دارته چې ورسره موجودي (۱۰زره) روپۍ وي اوقرض ورباندې (۱۲زره) وي ( یعنې موجودي تر قرضوکمې وي ) زکوة ورکول صحیح دي. ( امدادمسائل زکوة ۷۸مخ )

**مسئله** : که یو چادرته وویل چې په ماباندې د خلکو دومره قرض دي ، ماته زکاکوة راکړه چې زه ورباندې هغه اداء کړم ، نو باید له هغه ځخه ددغو قرضو ثبوت طلب کړل شي. ( معارف القرآن ۴ج ۴۱۲مخ بحواله قرطبي )

## د جائیداد او د تجارت د سامان زکوة :

**پوښتنه** : د یو چا جایداد دي چې د یو کال ګټه یې پنځوس زره ده ،اودتجارت سامان ورسره د شلو زرو دي چې ګټه یې په کال کې دوه نیم زره ده او هغه نفر کله د شپږو میاشتو لپاره دېرش زره روپۍ قرض هم اخلي .او دهغه په ذمه باندې مهر ( ولور ) هم دي نو په دغو ټولو صورتو کې دهغه لپاره دزکوة حکم په څه ډول دي ؟

**ځواب** : د جایداد په قیمت زکوة نشته ، او د تجارت سامان چې دمثال په ډول د شلو زرو دي په هغه ټول باندې زکوة واجب دي .څلویښتمه حصه یا دهغې قیمت ، هر کال باید دهغه زکوة وایستل شي. ( ردالمحتار ۲ج ۱۰مخ ، ۲ج ۴۲مخ )

د هغوچې څومره ګټه ووزي او ونه لګېږي او پوره کال ورباندې تېر شي ، نو بیاورباندې زکوة واجب دي ،اوکه د کال په پای کې دزکوة اداء کولوپروخت په هغه باندې قرض اخستل شوې دېرش زره روپۍ پاته وي نو هغه دې له هغه مال څخه جلا کړي د کوم چې زکوة اداء کوي

**ځواب** : په کور کې چې کومه ګڼه ده هغه خو دهغه د مېرمنې ده او قرض خو د تاجر په ذمه دي ، نو ځکه هغه د زکوة اخستلو مستحق دي . ( فتاوی محمودیه ۳ج ۲۱مخ )

**مسئله** : هغه قرض دارته چې ورسره موجودي (۱۰زره) روپۍ وي اوقرض ورباندې (۱۲زره) وي ( یعنې موجودي تر قرضوکمې وي ) زکوة ورکول صحیح دي . ( امدادمسائل زکوة ۷۸مخ )

**مسئله** : که یو چادرته وویل چې په ماباندې د خلکو دومره قرض دي ، ماته زکاکوة راکړه چې زه ورباندې هغه اداء کړم ، نو باید له هغه څخه ددغو قرضو ثبوت طلب کړل شي . ( معارف القرآن ۴ج ۴۱۲مخ بحواله قرطبي )

## د جائیداد او د تجارت د سامان زکوة :

**پوښتنه** : د یو چا جایداد دي چې د یو کال ګټه یې پنځوس زره ده ،اودتجارت سامان ورسره د شلو زرو دي چې ګټه یې په کال کې دوه نیم زره ده او هغه نفر کله د شپږو میاشتو لپاره دېرش زره روپۍ قرض هم اخلي .او دهغه په ذمه باندې مهر ( ولور ) هم دي نو په دغو ټولو صورتو کې دهغه لپاره دزکوة حکم په څه ډول دي ؟

**ځواب** : د جایداد په قیمت زکوة نشته ، او د تجارت سامان چې دمثال په ډول د شلو زرو دي په هغه ټول باندې زکوة واجب دي .څلوېښتمه حصه یا دهغې قیمت ، هر کال باید دهغه زکوة وایستل شي . ( ردالمحتار ۲ج ۱۰مخ ، ۲ج ۴۲مخ )

د هغوچې څومره ګټه ووزي او ونه لګېږي او پوره کال ورباندې تېر شي ، نو بیاورباندې زکوة واجب دي ،اوکه د کال په پای کې دزکوة اداء کولوپروخت په هغه باندې قرض اخستل شوې دېرش زره روپۍ پاته وي نو هغه دې له هغه مال څخه جلا کړي د کوم چې زکوة اداء کوي

او د پاتې مال دې زکوة وباسي - او ورسره دې دنغدو روپو، گېڼو او نورو هم زکوة اداء کړي. (ردالمحتار ۲ج ۹مخ)

## د زکوة په اداء کولوکې د تاجر لپاره يوه اسانتيا:

**پوښتنه**: زيد يو دوکان جوړ کړ چې اته (۸) زره روپۍ يې پکې بندې کړې، له هغوڅخه درې زره روپۍ خلکو ته پور ورکړشواود پنځو زرو روپومال په دوکان کې پاته شو، اوس په هغه باندې د موجوده مال زکوة لازم دي اوکه د پورهم؟ او د پور روپۍ په کلني ډول ورته تولې نه رسېدلې بلکه لږ لږ وصول کېدلې او بيا همدغه جريان روان ؤ.

**ځواب**: د پور زکوة اداء کول خو هغه وخت واجبېږي چې د پور روپۍ وصول شي او تردغه وخت څخه د پخوا زمانې زکوة ورکول هم لازم دي، نو ډېره ښه خبره داده چې موجود مال او هغه مال يا روپو ته چې قرض ورکړل شوي دي په يو ځای حساب وشي او، کله چې کال پوره شو نو د ټولوزکوة اداء کړل شي تر څو په وار وار د وصول کېدلو په وخت د پورپه حسابولو کې تکليف او سختي پېښه نشي.

(فتاوی دارالعلوم ٦ج ۱۵۳مخ بحواله ردالمحتار ۲ج باب زکوة المال)

## ايا په دوکان کې په استعمالېدونکو شيانو زکوة شته؟

**مسئله**: په دوکان کې چې کومې الماری، شوکېسونه او نور د سامان د ساتلو لپاره ښودل شوي وي په هغوباندې زکوة نشته همدارنگه په هغو سامانونو (لکه مېز چوکی او نورو) چې هلته کارول کېږي هم زکوة نشته ځکه چې هغه د تجارت لپاره نه دي. خو که هغه د تجارت لپاره اخستل شوي يا جوړ کړل شوي ؤ بيا وربانديې زکوة شته.

(امدادمسائل زکوة ۵٦ بحواله ردالمحتار)

## د ورځنۍ امدني خاوند باید څه ډول زکوة اداء کړي ؟

**پوښتنه** : یو څوک دی چې آمدني ( ګټه وټه ) یې د روزانې په ډول ده او هغه په بېنک کې جمع کوي د مثال په ډول له اول د جنوري څخه بیا تر آخیر د دسمبر پورې ،ایادهغه حساب به څنګه کوي ځکه چې په څه امدني باندې یوولس میاشتې تېرې شوې دي ، په څه باندې اته اوداسې نور دغه آمدني په مصارفو کې هم لګوله کېدله خوسره له هغه د کال په پای د زکوة ورده ، د زکوة ایستلو طریقه یې څه ده ؟

**ځواب** : کوم وخت چې دغه ذخیره اندازې د نصاب ته رسېدلې ده له هغې نېټې څخه یې کال پیل شوی دی او ددغه کال د ختم پروخت چې څومره شتمني له هغه سره موجوده وه ( په دې شرط چې نصاب پوره وي ) په هغه ټوله باندې زکوة واجب دي . که څه هم په هره برخه یې پوره کال نه وي تېر شوی او د کال په مینځ کې د نصاب تر اندازې کمه شوې وي. ( امدادالفتاوی۲ج۱۲مخ )

## د تجارت په الاتوباندې د زکوة حکم :

**پوښتنه** : د تجار په آلاتو باندې زکوة شته اوکنه د مثال په ډول چې تراکتور په کرایه چلول کېږي ؟

**ځواب** : که پخپله دغه آلات د خرڅولو لپاره وي ،نو زکوةورباندې واجب دی ، او که د هغوپه ذریعه کرونده کرله کېږي یا ورباندې ژرنده کېږي اوخرڅېږي نه ، نو بیاورباندې زکوة نشته.

( فتاوی محمودیه ۳ج ۵۳مخ بحواله درمختار۲ج ۹مخ )

**مسئله** : د تجارت له آلاتو څخه مراد کشتۍ ، جهاز ، دغوایي کاډۍ د اوښ ګاډۍ او داسې نور دي چې له دوکاندار سره د دې لپاره وي چې

د تجارت مال له یوځای څخه پکې بل ځای ته نقل کړي په دغو
ټولو باندې زکوة واجب نه دي. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۲۸مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۱مخ و فتاوی محمودیه ۱۳ج ۹۵مخ)

## ایا د کرایې په لوښو زکوة فرض دی ؟

**مسئله**: که یو چالوښي، مېزونه او څوکۍ یا سائکل او نور شیان د دې لپاره واخستل چې خلکو ته به یې په کرایه ورکوي، نو په دغو شیانو باندې هم زکوة نشته ځکه چې د کرایې لپاره اخستل شوی مال د تجارت مال نه دی او زکوة هم ورباندې نشته. خو له هغو څخه تر لاسه شوي د کرایې روپۍ چې اندازې د نصاب ته ورسېږي او پوره کال ورباندې تېر شي، نو بیا ورباندې زکوة واجب دي.
(امداد مسائل زکوة ۵۷مخ بحواله قاضي خان)

## د چاپ په ماشین او کارخانو باندې زکوة:

او کارخانو کې چې کوم ماشینونه لګول شوی دي؛ هغه هم د تجارت مال نه دی نو ځکه خو ورباندې زکوة هم فرض نه دي د درزیانو د کالو جوړولو ماشین او پر ہمنځلو او وچه ولو او نورو هر ډول ماشینونو حکم همدا دي، خو که دغه ماشینونه د تجارت په نیت اخستل شوي وُچې بیا به یې خرڅوي، نو بیا زکوة واجب دي. (مسائل زکوة ۵۲مخ

**مسئله**: د کارخانو، میلونو او نورو په مشینونو زکوة فرض نه دي مګر په هغو باندې چې کوم شیان جوړېږي په هغو باندې زکوة فرض دي. دغه رنګه په هغه خام مال باندې چې په مل کې د سامان تیارولو لپاره ایښي وي په هغه باندې هم زکوة فرض دي. د خام او تیار دواړه ډوله مال قیمت دې معلوم کړي او بیا دې ورنه دوه نیم فیصده په زکوة کې ورکړي (امداد مسائل زکوة ۴۹مخ آپ کي مسائل ۳۰۰ ۳۴مخ

## د صنعتي شیانو دوه ډولونه اوپه هغو دزکوة حکم :

**مسئله** : صنعتي سامان په دوه ډوله دي . يو هغه دي چې د کوم کار لپاره استعمالیږي اودهغه اثر په هغه شي کې نه پاته کیږي . دوهم ډول هغه دي چې بعینه په هغه کې لګیږي . د مثال په ډول د سائکل په برابرولو کې بعضې سامانونه داسې دي چې مقصد ورڅخه دادي چې په هغه باندې شیان سم کړل شي او کارګر ورڅخه په هغې اندازه کاراخلي ، په لويولويو کارخانو کې چې کوم ماشینونه دي هغه په دغه ډول دي . او بعض سامانونه بیا داسې دي چې د ضرورت پروخت په سائکل کې لګول کیږي .له دغو دواړو قسموڅخه په اول یې زکوة نشته په دې کې د کړی ساز ،ترکانۍ ، پښ ، موترسائیکل جوړونکي ، کښت کونکي اود نورو صنعتي سامانونه داخل دي .اوپه دوهم ډول یې زکوة واجب دي ، په دې کې د رادیو ،ګړی،موترسایکل اوداسې نورو دخرڅېدلو وړ پرزې داخلي دي . اوفقهاؤ ددغوسامانونولومړی ډول ته ( ضرورت اصلیه ) ویلي دي،اوپه دوهم ډول یې زکوةفرض بللی دي . ( جدید فقهي مسائل ۱۲۲مخ بحواله فتاوی هندیه۱ج ۸۸مخ)

## د ټیکسي چلولو د کرایې زکوة :

**پوښتنه** : له یو چاسره یو لاکه روپۍ وې چې هغه وربانديې یوه ټکسي واخستله او یوکال وروستومعلومه شوه چې په کرایه کې یې ځلوېښت زره روپۍ ګټلې دي .نو هغه به اوس د څومره روپوزکوة اداء کوي

**ځواب** : که ټیکسي د بیرته خرڅولو په نیت نه،بلکه په کرایې د چلولو په نیت اخسله شوې وه ، نوبیا به یوکال وروستو صرف د ګټې ( یعنې

کرايې چې څلوېښت زره روپۍ وي ) زکوة باسي ځکه چې ټيکسي د روپو ګټلو ذريعه ده نو ځکه ورباندې زکوة نشته

**مسئله** : له ګاډيو څخه چې کومه ګټه تر لاسه شي اودومره وي چې نصاب ورنه پوره شي اوبيا ورباندې پوره يو کال تېر شي ،نوبيا ورباندې زکوة واجب دي. او په ګاډيوباندې زکوة ځکه نشته چې دا دګټې د لاسته راوړلو آله ده ؛ مګر هر څوک بايد په دې ښه ځان پوه کړي چې داسې خلک شته چې په دې نيت باندې موټر يا ټکسي اخلي چې کله ورته د خرڅولو او ډېرو روپو ګټلو ښه موقع په لاس ورغله بيا يې خرڅوي او دايې باقاعده د ځان لپاره کار وبار ګرزولی وي نودغه ګاډۍ په حقيقت کې د تجارت مال ګڼل کېږي اوپه قيمت يې زکوة واجب دی. (آپ کي مسائل ۳ج ۳۷۲مخ ، احسن الفتاوی ۴ج ۴۸۷مخ بحواله طحطاوي ۱ج ۳۹۲مخ )

## په کرايه چلېدونکي سامان باندې د زکوة حکم :

**مسئله** : د وخت په حساب چې دوپنځس نيمو تولو سپينو زرو د قيمت په اندازه روپۍ له چاسره وي ،نوپه هغه باندې زکوة فرض دی -همدارنګه که تجارت مال لکه سايکل او داسې بل کوم شی وي او قيمت يې پورتنۍ اندازې ته رسېدلی وي نو په هغه باندې هم زکوة واجب دي. اوکه چاسايکل يا د دوکان نور سامان چاته په کرايه ورکړی ؤ ،نو بيايې په آمدني (کرايه ) باندې زکوة شته اوپه ماليت يې زکوة نشته. ( فتاوی رحيميه ۵ج ۱۴۹مخ )

**مسئله** : په هر هغه ماشين چې د تجارت لپاره نه وي زکوة نشته بلکه په هغه څه يې زکوة لازم دي چې له هغه څخه تر لاسه کېږي. او د ژوندانه

د ضرورتونو (ضرورت اصليه) له پوره کولو بغير اندازې د نصاب ته ورسېږي او بيا ورباندې پوره يو کال هم تېر شي. (فتاوی رحيميه ۳ ج ۱۱۲ مخ)

**مسئله**: موټر، جهاز او نور که د شخصي استعمال لپاره وي نو بيا ورباندې زکوة نشته. او که د کرايې اخستلو لپاره ځانګړي کړی شوي وؤ، نو زکوة ورباندې هغه وخت لازم دي چې وروستو له يو کال څخه د هغه لاس ته راوړنه نصاب برابر شي، او يا له بل څه سره په ګډه حد د نصاب ته ورسېږي. (فقه الزکوة ۱ ج ۲۰۰ مخ)

## کوم مال چې څه وخت وروستو واپس پلورونکی ته ورړل کېږي

**پوښتنه**: کوم مال چې سوداګرانو د ګټې په اخستلو سره ورکول کېږي او روپۍ يې کله يو کال وروستو کله دوه کاله يا يونيم کال وروستو وصول کېږي د هغه زکوة به سره له ګټې ايستل کېږي او که بغير له ګټې - او کله خولاداسې هم کېږي چې يو کال وروستو سوداګر مال واپس راوړي او روپۍ اخستل هم ورنه ډېر مشکل کېږي.

**ځواب**: کوم مال چې سوداګرانو ته ورکول کېږي د هغه چې څومره قيمت او ګټه ټاکل شوې دي په هغه باندې وروستو له ترلاسه کولو د زکوة اداء لازمېږي - کومې روپۍ چې خوځونکی ته رسېږي له هغه څخه دې زکوة اداء کوي او کومې چې ورته رسيدلې نه دی د هغو زکوة هېڅ لازم نه دي. (فتاوی دارالعلوم ۲ ج ۱۵۵ مخ رد المحتار ۲ ج ۴۷ مخ)

## د استېشنري د زکوة حکم

**پوښتنه**: زه د کتابو، او قلمانو، پنسيلانو کتابچو او د علم خط د هر ډول سامانونو دکان (استېشنري) لرم. د مال اندازه يې د دولسو

اوڅوارلسو زرو تر مينځ ده او دوکان مې ورته په کرايه نيولی دي نوايازماد دکان سامان د زکوة اداء کولو وړدي او کنه ؟

**ځواب** : په دوکان کې چې هر ډول مال پلورل کېږي چې ماليت يې دنصاب له اندازې ( يعنې دوه پنځوست نيموتولوسپينو زرو له قيمت سره سم وي ) نو په هغه مال باندې زکوة لازم دی .(آپ کي مسائل ۳ج ۳۸۷مخ ) .

## د عطرو اوتېلود زکوة حکم :

**پوښتنه** : که د مثال په ډول ووايم ، د عطرو تېلو او داسې بل شي ديوې تولې خرڅ شپږ روپۍ دي -او خرڅول کېږي په اته روپۍ ،نوزکوة به د شپږ روپو له قراره ورکول کېږي او که د اتو روپو له قراره څخه ؟

**ځواب** : کله چې دعطرو يا تېلو قيمت د نصاب تر اندازې ورسېږي ،نو زکوة ورباندې واجب دي او زکوة به دهغه حساب له قراره څخه ورکوي چې په بازار کې دي ، او مراد له بازار څخه هغه بازار دي په کوم کې چې مال موجود دي -( شامي۲ج ۳۰مخ.

په کوم حساب چې هلته پلورل کېږي په هغه حساب دي دعطراو تېلوقيمت ولګوي. که د قيمت په وکولو کې تاواني کېدو ،نو بيايې ښه لاره دا ده چې پخپله عطر ياتېل په زکوة کې ورکړي . (فتاوی دارالعلوم۲ج۸۱مخ )

## په دواګانو باندې د زکوة حکم :

**پوښتنه** : آيا په دوکان ( دواخانه ) کې پرتې دواباندې هم زکوة لازم دي اوکه صرف په ګټه يې زکوة لازم د ي؟

**ځواب**: د دواګانو په قيمت باندې هم زکوة لازم دي. (آپ کي مسائل ۳ج ۲۷۳مخ )

## د کتابخانې د زکوة ایستلو طریقه

په زکوة ورکولو کې یوه غلطي دا ده چې زکوة دهغه حساب له قراره اداء کوي چې دهغه په نزد مناسب وګڼل شي مګر په واقع کې هغه غلط وي د مثال په ډول د تجارت په مال کې داخستلو له قیمت نه کار اخلي. که فرض کړو چې یو چاد تجارت په قیمت (چې ډېر وخت تر عام قیمت ټیټ وي) کتابونه واخستل یایې په خپله چاپخانه کې چاپه کړل او هغه ته په زرو روپۍ تمام شول مګر په بازار کې یې قیمت دوه زره روپۍ ؤ، نو زکوة به ددوؤ زرو روپو له قراره څخه باسي اوکه هغه ته دا سخت ښکاربږي چې له دوو زرو څخه پنځوس روپۍ په زکوة کې ورکړي ،نو بیا دې دهغو کتابو څلویښتم کتاب په زکوة کي ورکړي دمثال په ډول که څلویښت هدایې وي نویوه دي له هغو څخه په زکوة کې ورکړي یادي د هغه په بدل کې بل داسې کتاب ورکړي چې قیمت یې د هدایې له قیمت سره سم وي .(امدادمسائل زکوة ۳۳ شامي۲ج ۳۰مخ

## د پرچون زکوة :

**پوښتنه** : زید د پنساري دوکان لري چې پکې په سلګونو ډوله سامانونه پلورل کېږي ، نوځکه دکال په پای کې نشي کېدای چې وتلل شي ، نو که هغه ورته اندازه لګوي اوبیا زکوة اداء کوي زکوة یې اداء کېږي اوکنه ؟

**ځواب** : د اندازې لګولو په وخت اندازه لګونکی باید تر څوچې کېدای شي دزیاتې اندازې لګولو کوشش وکړي تر څو په زکوة کې کموالی رانشي. ځکه چې که اندازه تر حقیقت کمه وخېژي نو د پاته زکوة اداء ورباندې واجب ده. (فتاوی دارالعلوم ٦ج ۱۴۰ مخ بحواله عالمګیري۱ج ۱۲۸مخ )

## د دواخانې زکوة:

**پوښتنه**: زید دواخانه لري چې په زرګونو ډوله دوا پکې موجوده ده چې د خرڅولو په جریان کې کله یوه او کله دوه میاشتې اخستل شوي وي د کومې چې پوره اوسم حساب کول ډېر مشکل دي، نو هغه باید په څه ډول د دغو دواګانو زکوة ورکړي؟

**ځواب**: د زکوة لپاره د مال حسابل ضروري دي، نو داچې د ټولو دواګانو سم قیمت معلومول او حساب ورته کول ګران دي، نو داسې دې وکړي چې د کلنی موجود شخه چې څومره اندازه د خرڅولو شوې وي هغه دې ورڅخه جلاکړی لنډه داچې د موجود مال اندازه لګول له ضرویاتو څخه د ي. (فتاوی دارالعلوم ٦ج ١٤٢مخ بحواله ردالمحتار ٢ج ٤٢مخ)

## د کوم دوکان چې حساب نه وی شوی دهغه دزکوة حکم

**پوښتنه**: له کله څخه چې زید دوکان اینبی دي له هغه وخته یې ورته حساب نه دي کړی چې له مخې یې د مال سمه اندازه ولګوله شي، نوایا هغه د زکوة اداء څرنګه وکړي؟

**ځواب**: حساب به ورته کوي او بیابه زکوة اداء کوي او ورسره به د تېرو کلونو زکوة هم اداء کوي. (فتاوی دارالعلوم ٦ج ١٤٨ مخ بحواله ردالمحتار ٢ج ٤١مخ)

## د دوکان پرېښودلو په صورت کې دزکوة حکم:

**پوښتنه**: په تجارت کې که وروستو له اداء د قرضو څخه دمثال په ډول د پنځوسو زرو روپو مال په دوکان کې وو، نو په هغوپنځوسو زرو روپو باندې زکوة واجب دي. مګر د دوکانداري سامان هر وخت داسې وي چې که هغه د ددکان پرېښودلو (ختمولو) په غرض خرڅېږي نو د یوې روپۍ سامان بېرته په یوه روپۍ نه خرڅېږي، دهغه

د زکوة اداء به د هغه قیمت له قراره کېږي کوم چې دا وخت په بازار کې دی ؛ او که له هغه قراره چې دا وخت وړاندې د دکان ختمولو پرغرض سامان خرڅېږي ؟

**ځواب** : د دوامي قرضو تر اداء کولو وروستو که دمثال په ډول پنځوس زره روپۍ بچت شوې نو په تېرېدلو د کال سره دهغو زکوة اداء کول واجب دي. او د موجود مال د قیمت زکوة به د موجوده نرخ په حساب اداء کوي. د دوکان پرېښودلو په وجه چې د مال په قیمت کوم اثر لوېږي هغه د اعتبار وړنه دي بلکه د مال د هغه قیمت له قراره به زکوة اداء کوي کوم چې په بازار کې دي. (فتاوی دارالعلوم۲ج۱۵۱مخ بحواله عالمگیري مصري۱ج۱۲۸مخ)

## ولې په څارویو زکوة فرض دي ؟

پاک خدای ﷻ په خپل کامل قدرت سره په زرګونو او لاکهونو حیوانان ( ځناور ) په دنیاکې پیداکړي دي چې دهغو له جملې څخه ډېر کم ( ځناور ) دي چې انسانانو ته ورنه ګټه رسېږي او په هغوکې هم ګټور ځناور هغه دي چې ورته به عربي ژبه کې انعام ( څړکونکي ) ویل کېږي. اوهغه اوښ ، غویي ، مېښه ،وزه ،مږ دي پاک خدای ﷻ په قرآن کریم کې د دغو څارویو یادونه پخپلو بندګانو د یو احسان په ډول کړې ده او څوځایه یې د هغه ګټې هم بیان کړېدي ، ددې لپاره چې د هغوشکر اداء شي پاک خداي ﷻ په هغوکې زکوة فرض ګرزولی دي ، د زکا ت لپاره یې اندازې اونصاب مقرر کړی دي اوسېدالمرسلین ( صلي الله علیه وسلم ) سره د تړلي ټینګ نظام په صورت کې یې نافذکړي دي. په هر حال څرنګه چې عربانو ته څاروي اوپه خاص ډول اوښ ډېر ګټور او ټول ګټ ؤ ، نو ځکه حضور صلي

الله علیه وسلم هم د هغه نصاب او دهغه اندازې په تفصیل سره فرمایلې دي او ترنن پورې د نړۍ په ډېرو هیوادو کې حیواني شتمني د مالي امدني مهمه ذریعه بلله کېږي او په لکونو حیوانان ساتل کېږي. (فقه الزکوة.۱ج ۲۸۸مخ)

## په شریعت کې د څارویو د زکوة اهمیت:

په اصل کې زکوة په هغه سرمایه باندې دي چې د انسان تر بنیادي ضرورتونو زیاته وي. د اسلام د دین او انبیاؤ (علیهم السلام) د راتګ مقصد د اخیرت تیاري او د ددنیا اصلاح او سمون دي. د اخېرت د تیاري لپاره درې عبادتونه خاص شوي دي کوم چې انسان خدای ﷻ ته نژدې کوي او په هغه کې د آخرت شعور اوبراه راست له اخروي ژوندسره محبت او دهغه د راتلو لپاره ناقراري رامېنځته کوي .چې هغه درې عبادتونه لمونځ ، روژه او خج دي – او د دوؤ عبادتونو جهاد او زکوة د حدودو ، سزاګانو او نوروا خلاقو او معاملاتو اول تړاوله دنیاسره دي – که د سموټاکل شوؤ هدایاتواو اسلامیت په رڼا کې کوم شخص یاډله هغه تر سره کړی ،نو په دنیا کې به ارامي ، امن او انصاف رامنځته شي ، نو ځکه خو خدای ﷻ (چې د انسان پیداکونکی او د هغه له کمزوریو څخه په پوره ډول خبردي ) له سرمایې ( رووپواومال) سره د محبت او تړاو د حدودو دورپېژندلو لپاره پابندیانې فرمایلې دي . د زکوة دغه اهمیت د همېشه لپاره په قرار کي پاته شو - د لمانځه څخه وروستو د زکوة حکمونه بیانېږي تر څوچې له الله ﷻ سره له تړاو ساتلو وروستو له بندګانو سره اړیکې ټینګې شي څرنګه چې عربستان په بنیادي ډول

نه زراعتي هیواد ؤ او نه صنعتي ، بلکه د هغو له نغدو روپو څخه
وروستو همدا څاروي وؤ نو ځکه د زکوة په احکاماتو او بیانو کې د
څارویو په لوري زیات فهم اړول شوي دي

## سائمه څاروي :

**مسئله** : سائمه جانور هغوته ویل کیږي چې په صحرا یاځنګل کې د څړ
لپاره د خاص مقصد له مخې پرېښودل کیږي –او هغه مقصد که ورنه
شیدي تر لاسه کول وي، که د هغو دنسل زیاتول وی او یاپخپله په
روزلو او مزي کولو سره غواړي د هغه قیمت لوړ کړي ، او هغه
څاروي چې د نسل د زیاتوالی او شیدو روکولو په ځای د سوربدلو
یابار وړلو لپاره په صحراګانو یا ځنګلوکې څړکوي په هغوباندې
زکوة نشته – سائمه څاروي که نارینه طبقه وي او که ښځینه ، او که
ګډوډوي په داسې ډول چې که خاص د تجارت په مقصد په
ځنګلوکې پرېښودل شوي وي نوپه هغوباندې زکوة واجب دي مګر
دتجارت په حساب واجب دي د سائموپه حساب به یې نه اداء کوي
خو که یې دغوښو خوړلو لپاره څاروي ساتل او په ځنګل کې یې
پریښودي ؤ نو په هغو باندې بیا زکوة واجب نه دي ( له دې څخه
دافکر مه اخلئ چې هغه څاروي چې هره ورځ حلالیږي او په خوراک
کې ورنه کار اخستل کیږي که په ځنګل ( صحرا ) کې په دغه مقصد
وساتل شي ،نو هغه به له زکوة څخه خلاص وی ) مطلب دا دي چې په
دغه ډول څارویو باندې زکوة د سائمه څارویو په څېرنه ، بلکه په
تجارتي ډول لازم دي –البته که یو چاد خپل ذاتي استعمال لپاره ،او
خاص په دې نیت چې پخپله یې غوښې وخوري غویي ، مېښه مږ

یاداسې بل شي په ځنګل کې د څرلو لپاره پرېښود ،نو په هغه باندې بیاهېڅ ډول زکوة هم نشته(رفعت قاسمي)

**مسئله** : که څاروي د تجارت وي او شپږمیاشتي یاڅه زیات وخت په ځنګل یا صحراکې څروکړي ،نو په دې سره دوی سائمه نشي ګرزېدای ، ترڅوچې مالک د هغو د سائمه کولو نیت ونه کړي. اوکه د سایمې د خاوند دا اراده وه چې هغه به ورنه کار اخلي یابه هغه ته ددې په ځای چې په ځنکل کې خوشي کړي پروړ یارشقه وراچوي. مګر هغه ټول کال د خپلې ادارې سره سم عمل ونه کړاو کال پوره شو ،نو په هغه د سائمې زکوة واجب شو.

**مسئله** : که چا څاروي د تجارت په نیت واخست خو بیایې ورڅخه سائمه جوړ کړ،نود نصاب کال به له هغه وخته څخه پیل کوي چې څه وخت یې هغه سائم ګرزولی دي. (فتاوی عالمګیري۴ج۷۱مخ کتاب الفقه۱ج۹۷۰مخ)

سائمه څاروي هغه دي چې دغه درې شیان پکې موجود وي:

۱۔ د کال ډېره برخه پخپله خوله باندې څرکوي .یعنې په صحرا چراګاه او ځنګل کې بغیر له قېمت ورکولو څر کوي او په کور کې بیاورته هېڅ هم نه ورکول کېږي. که نیم کال پخپله خوله څر کوي او نیم کال ورته په کور کې د خوراک لپاره څه اچول کېږي نو هغه سائم نشي بلل کېداي دغه رنګه که هغه که په قېمت سره وي اوکه بې قېمته وي ،نو بیاهم سائم نه دي۔

۲۔په کوم کې چې هغه څرکوي په هغه کې به یې د څر کولو لپاره د هېڅ یو چاله خوامما نعت نه وي۔ که په داسې ځای کې هغه څر کوي چې هلته یې څرکول منعه دي ،نو بیا هم هغه سائم نه دي۔

۳- سائم څاروی به د شیدو لپاره او یا د نسل زیاتولو په نیت وي ، خو که د غو ښو ورنه جوړولو یا سواري لپاره ؤ بیا هم سائم نه بلل کېږي.
(عالمگیري ۴ج ۷مخ)

## کوم څاروي چې د کال په مینځ کې ترلاسه شوی وی:

کوم څاروي چې په د کال مېنځ کې تر لاسه شوی وی که د اخستلو له لارې وي که د زېږېدلو که د وراثت که د هبې او که له دغه رنګه بلې لارې وي د خپل هم جنس له نصاب سره به ګډېږي او له هغه سره په ګډه به یې زکوة ورکول کېږي. د مثال په ډول د کال په پیل کې (۲۵) اوښان وؤ او په کال کې ورنه (۲۵) بچیان وزېږېدل ،نو د کال په پای کې به د هغو بچو زکوة هم له اوښانو سره په ګډه اداء کوي او د ټولو په زکوة کې به یو شپږ کلني اوښ ورکوي – که څه هم په بچیانو خویې لا پوره کال تېر شوي نه دي – خو که د هغه مال زکوة په همهغه کال کې یو ځل اداء شوي ؤ نو بیا به یې نه ورګډوي د مثال په ډول یو چاد خپل مال زکوة ایسلی دی له هغه وروستو هغه زکوة ورکونکي په روپو هاندې کوم څاروی واخستنو هغه به د خپل همجنسو نصاب ته نه ورګډه وي کنه نو د هغه د زکوة ورکولو به دوهم وار شي. دغه رنګه که یو چاد څارویو زکوة ورکړی ؤ او وروستو له هغه یې څاروی خرڅ کړل ، نو د هغو د قیمت روپۍ به د روپور په نصاب کې نه ګډه وي. (علم الفقه ۴ج ۳۰ مخ)

## په زکوة کې باید څنګه څاروی ورکړل شي ؟

**مسئله** : کله چې زکوة اداء کونکی زکوة باسي او زکوة قبلونکی یې ورڅخه رانیسي ،نو په هغه وخت کې باید د څارویو دغه ځانګړني په نظر کې ونیول شي:

کوم څاوی چې په زکوة کې ورکول کېږي په هغه کې باید هیڅ ډول عیب موجود نه وي. یعنې هغه به ناروغ نه وي نه به یې کوم ځای لکه پښه او داسې نور اندانونه مات او یاغوږونه کاټ شوي وي. نه به داسې زوړ وي چې غاښونه یې وتلي وي. لنډه داچې ذ زکوة په پسه کې به هیڅ داسې عیب نه وي چې په هغه سره په ګټه او قیمت کې کم والی راولي

**مسئله** :مګر په یو صورت کې کېدای شي چې عیب لرونکی څاروی په زکوة کې ورکړل شي هغه دا چې که ټول څاروي زاړه ، یاټول ناروغان او یاټول عیب لرونکي وي نو زکوة اخستونکی دې له هغو څخه کوم څاروی قبول کړی او خاوند باید دېته مجبور نکړي چې روغ او بې عیبه څاروی ورته واخلي ،ځکه چې زکوة له هغه مال څخه اداء کول پکار دي کوم چې ورباندې زکوة واجب شوی دي.

**مسئله** : اصل خبره دا ده چې که په زکوة کې تر ټولو ښه څاروي ورکړل شي ،نو په دې کې د زکوة ورکونکو نقصان دي ، او که خراب ( بې ارزښته ) څاروي ورکړل شي دا بیا دمستحقینو ( فقیران ) د حق ضائع کېدل دي نو ځکه خو د انصاف او عدل غوښتنه دا ده چې میانه او متوسط څاروی باید په زکوة کې ورکړل شي .(فقه الزکوة ۱ج ۹۰مخ – اللهم اغفرلکاتبه ولمن سعی فیه )

د عزیز ، او قیوم خدای ﷻ په خاص احسان سره د عید الفطر

( ورولي اختر ) د اولي شپې د ماخستن په ۱۹ / ۸ بجې عید د خبر وراتلو په وخت پر دغه

ځای ودریدم .

## اختر

دلته دمـــــــرمیو قافلې را غلـــــــې دي... کور کلي زمونږ ته جنازې راغلـــــــې دي .

اختره ګوره رانشـــې په مونږه غـــــــریبانو ... زمونږ په ژړاګانو سترګې سرې راغلـــې دي

زمونږ مغروري پېغلې له نیکریځـو څخه بد وړي... په ځوانو ځوانو زړوکې اند ېښنې راغلې دي

مونږ پرپرده په سلګو کې چې لېږ وژاړو تږدرېرو ... په وینو دي **اختره** بدرګې راغلـــــــې دې

اختره خدا ﷻ ته گوره ،زماله کلـــــي لري تېرشه... حصيف ته د شهيد جانان ګېلې راغلې دي.
بس ته د مجروح او د ملګرومبـــــــارک شه... په مخ د عاجز اوښکې مېلمنې راغــــلې دي
حرره عبدالملک (حصيف عاجز)

## د مشترکه څارويو د زکوة حکم

**مسئله** : د يو چاله (۸۰) نفرو سره په (۸۰) وزوکې په نيمايي نيمايي شراکت ؤ. يعنې د هرې وزې به يوه برخه د هغه اوبله برخه د بل چاوي ،نو داسې ويل کېدای شي چې هغه به په مجوعي ډول (۴۰) وزې ولری ،نو دامام ابو حنيفه رضی الله عنه او امام محمد رضی الله عنه په نزد وربانديې زکوة واجب نه د ي ،او هغه وخت هم داحکم دي چې ( د مثال په ډول ) شپيته (۶۰) غوايان له بل چاسره په شراکت کې وي

**مسئله** : د دووشريکانو له مشترک ( ګډ ) ماله څخه چې زکوة و ايستل شي ،نو په دغه صورت کې دي هر شريک ( ګډون وال ) له يو او بل سره د خپلې برخې سره سم حساب وکړي.

**مسئله** : که د دووسړو سره د اوښانو يوه ګله وه او له (۶۱) اوښانو څخه جوړه وه ، چې د يو په برخه کې (۳۶) او د بل (۲۵) اوښان راتلل ، نوزکوة اخستونکی به له يو څخه (۵) کلني او بل څخه (۳) کلني اوښ په زکوة کې رانيسي – نو د کوم شريک له حصې څخه چې څومره زيات په زکوة کې تللي دي هغه به په دغه اندازه له دغه بل شريک څخه اخلي –( فتاوي عالمګيري ۴ج ۳۲مخ )

**مسئله** : د څرونکو ( څارويو ) د زکوة واجبېدلو ځای هغه دې چرته چې هغوی وي – ·خوپه دې شرط چې هلته زکوة اخستونکي موجودوي. او که محصل هلته نه ؤ ،نو بيابايد هلته ورکړل شي چرته چې مالک وي ( کتاب الفقه ۱ج ۱۰۱۸مخ

## کوم څناورچې کارول کېږي:

**مسئله**: د سورېدلو په آس او د کروندې کولو په غوايانوزکوة نشته.
(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۲۲مخ بحواله هدايه ۱ج ۱۲۹مخ)

**مسئله**: غوايان د کښت ، آسان د سوارلی او غواګانې د شيدو لپاره دي ، نو په هغوباندې زکوة نشته(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۰۲مخ بحواله هدايه ۱ج ۱۲۹مخ

**مسئله**:د کروندې کولولپاره چې کوم ځاروي ساتل شوي وي که څه هم سائم وي ، په هغوکې زکوة واجب نه دي .اوکوم ځاروی چې د شيدو ترلاسه کولو او يانسل زياتولو لپاره وساتل شي او هغه سائم وي ، نو زکوة ورباندې واجب ي ؛ خوپه دې شرط چې اندازې د نصاب ته به رسېدلی وي. (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۱۰۵مخ بحواله ردالمحتار ۱ج ۲۰مخ)

**مسئله** :که له يوچاسره دبيلابيلوحيواناتوڅونصابونه ؤ. اوهغه د بعضوزکوة وارله مخه اداء کړي ، مګر هغه حيوانان چې زکوة يې ورکړل شوي ؤ ختم شول ،نو د هغه ايستل شوي زکوة به دژوند ولپاره کافي نه ګرزوي. (عالمګيري ۴ج ۱۵مخ)

## په کومو څناوروباندې زکوة واجب نه دی ؟

**مسئله** : هغه قول چې فتوی ورباندې شوې ده هغه دا ده چې په آسانو زکوة نشته. خو که د تجارت لپاره وي ،نو بياورباندې د تجارت په ډول زکوة واجب دي - ( يعنې که دوي د تجارت لپاره وي ، نو دهغوحيثيت ) د تجارت د سامان په ډول دي ) هرکله چې د هغوي قيمت د نصاب تر اندازې ورسېږي ، نو هغه وخت به زکوة ورڅخه اخستل کېږي ، هغه که په ځنګلو کې څرکوي اوکه په کور کې وابنه

یادانه خوري په خره . کچر ، ساتل شوي زمري او سپي باندې هغه وخت زکوة واجبېږي کله چې د وي د تجارت لپاره وي. (فقه الزکوة ۱ج ۲۹۹مخ)

**مسئله** : د تجارت له آسانو په ټولیز قیمت باندې څلورویښتمه حصه دامام ابوحنیفه دوروستني وینا سره سم دوزې ،اوښ اوغوایي په بچیانوباندې زکوة نشته . که ورڅخه یوهم دنصاب عمر ته ورسېږي ،نو نور بچي به هم د هغه په تابع ګرزولوسره په نصاب کې شمارل کېږي . مګر په زکوة کې به دغه وړوکي بچیان نه ورکول کېږي . بلکه پوره پسه یاد هغه قیمت به ورکول کېږي دغه واړه دنصاب د پوره والي ذریعه ګرزي ،خو زکوة اداء کول ورباندې صحیح نه دي.

**مسئله** : که له یو چاسره دپسونو ( وزو ) ( ۳۹ ) بچې ؤ او یکې یوه داسې وزه وه چې پوره اوغټه وه ،نو بیا به له هغوڅخه یو میانه پسه په زکوة کې ورکوي . که دغه یوه (د پوره عمر لرونکې وزه ) د منځنۍ د رجې لرونکې یاله هغې څخه څه کمه وه ، نو هغه دې په زکوة کې ورکړي.

**مسئله** : اوکه تر کال پوره کېدلو وروستو دغه وزه پاته نشوه ، نو د صاحبینو په نزد زکوة ساقطېږي – دغه رنګه که د اوښ پنځوس بچیان وي اویکي د منځنۍ درجې یو اوښ وي نو دهغه په زکوة کې ورکول واجب دی – که نیم بچي ضائع شي ، نو د سم اوښ په اندازه زکوة هم د مالک له ذمې څخه ساقطېږي ، او د نیم اوښ زکوة واجب دي . په زکوة کې د بچي ورکول روانه دي. (فتاوی عالمګیري ۴ج ۱۹مخ)

**مسئله** : په باروړونکو ، استعمالېدونکي اوکورني خوراک کونکي څناوروباندې زکوة نشته. ځکه چې دغه هم د انسان لپاره دکار کولو د آلو په څېر دي - چې له یو څخه د کروندې ؛ د بل څخه د باروړلو په مقصد کار اخستل کېږي. په دغه درې ډوله څناورانو باندې زکوة نه

واجبېږي. مګر په کهول کې د خوراک څښاک کونکې که په تجارتي نوعیت سره وي بیا وربانديې تجارتي زکوة واجب دي .(فتاوی عالمګیري۴ج ۱۹مخ )

**مسئله** : د وقف په څارویو بانديې زکوة فرض نه دي. ( امدادمسائل زکوة ۵۱مخ )

## د مخلوط النسل څارویو زکوة :

د سائمه څارویو دزکوة لپاره داشرط دي چې ځنګلي به نوي ؛په ځنګلي څارویو بانديې زکوة فرض نه دي. کوم څاروي چې له کورني او ځنګلي څاروي څخه په ګډه پیداشي نو که دهغه مور د هر طرف وي د هغه حکم هم هغه دي - مثال په ډول که له وزې اوهوسی ( نر ) څخه کوم بل شی پیداشي هغه د پخواپه حکم کې دي.

**مسئله** : کوم څاروی چې سائم وي او د کال په مېنځ کې دهغه د تجارت نیت و شي ،نو هغه کال به یې زکوة نه اداء کوي اوکله چې یې هغه د تجارت نیت کړي دي له هغه وخت څخه یې د تجارت کال پیل شو.
( امدادمسائل زکوة ۵۱مخ )

## د وقف په څارویو د زکوة حکم :

**مسئله** : د وقف په څارویو او هغو آسانو بانديې چې د دیني جهاد کولو لپاره ساتل شوي وي زکوة فرض نه دي په نوروآسانو بانديې که سائمه وي اوکه غیر سائمه او خرواو کچروبانديې په دې شرط زکوة واجب نه دي چې د تجارت لپاره به نه وي. ( امدادمسائل زکوة ۵۱مخ )

## د اوښانو د زکوة دنصاب تفصیل :

**یادونه** :په-۶-شپږم-۷-اووم-۸-اتم او -۹-نهم کې هم یو ، یو کلنۍ وزه یااوزګوري واجبېږي دغه رنګه په لاندې لیکل شوي حساب بانديې ځان پوه کړئ.

**پوښتنه**: په زکوة کې د اوښانو نصاب او په هغو باندې د زکوة حساب ډېر مشکل دي آیا نشي کېدای چې په یوه داسې اسانه طریقه یې ولیکئ چې په اساني سره ورباندې هرڅوک پوه شي ؟

**ځواب**: په لاندني ډول یو څوک کولای شي په اسان ډول ځان پوه کړي چې له یو څخه تر څلورو اوښانو پورې له زکوة څخه معاف دي . او تر هغه وروستو ورباندې په لاندني ډول زکوة فرض دي:

۵ څخه تر ۹ پورې ........................ یو ،یو کلني اوزګوړي یاوزه.

۱۰ – څخه تر ۱۴ پورې ........................ وزه اوزکوړي یادوه وزې.

۱۵ – څخه تر ۱۹ پورې ........................ درې اوزګوړي یادرې وزې.

۲۰ – څخه تر ۲۴ پورې ........................ څلور اوزګوړي یاڅلور وزې.

۲۵ – څخه تر ۳۵ پورې ........................ یو کلني اوښه ( بنت مخاض ) .

۳٦ – څخه تر ۴۵ پورې ........................ دوه کلني اوښې (بنت لبون ) .

۴٦ – څخه تر ٦۰ پورې ........................ درې کلني اوښه ( حقه ) .

٦۱ – څخه تر ۷۵ پورې ........................ څلور کلني اوښې ( جذعه ) .

۷٦ – څخه تر ۹۰ پورې ........................ دوه دوه کلني اوښې.

۹۱ – څخه تر ۱۲۴ پورې ........................ درې کلني دوه اوښې.

۱۲۵ څخه تر ۱۲۹ پورې ........................ درې کلني دوه اوښې یوه وزه.

۱۳۰ – څخه تر ۱۳۴ پورې ........................ درې کلني دوه اوښې دوه وزې.

۱۳۵ – څخه تر ۱۳۹ پورې ........................ درې کلني دوه اوښې او درې وزې.

۱۴۰ – څخه تر ۱۴۴ پورې ........................ درې کلني دوه اوښې اوڅلور وزې.

۱۴۵ – څخه تر ۱۴۹ پورې ........................ درې کلني دوه اوښې ، بل یو کلني اوښه

۱۵۰ – څخه تر ۱۵۴ پورې ........................ درې کلني درې اوښې دوه وزې.

۱۵۵ – څخه تر ۱۵۹ پورې ........................ درې کلني درې اوښې یوه وزه.

۱٦۰ – څخه تر ۱٦۹ پورې ........................ درې کلني درې اوښان ددوه وزې.

۱٦۵ – څخه تر ۱٦۹ پورې ........................ درې کلني درې اوښې درې وزې.

۱۷۰ – څخه تر ۱۷۴ پورې ........................ درې کلنۍ درې اوښې څلور وزې.
۱۷۵ – څخه تر ۱۸۵ پورې ........ درې کلنۍ درې اوښې اوبل یو کلنۍ اوښه.
۱۸۲ - څخه تر ۱۹۵ پورې ................درې کلنۍ درې اوښې او نوردوه یو کلنۍ اوښې
۱۹۲ - څخه تر ۲۰۴ پورې ......... درې کلنۍ څلور اوښې اویا دوه کلنۍ پنځه اوښې.
۲۰۵ - څخه تر ۱۰۹ پورې............... درې کلنۍ څلور اوښې او یوه وزه.
۲۱۰ – څخه تر ۲۱۴ پورې ........................ درې کلنۍ څلور اوښان اودوه وزې.
۲۱۵ - څخه تر ۲۱۹ پورې ........................ درې کنلۍ څلور اوښې او درې وزې.
۲۲۰ – څخه تر ۲۲۴ پورې ........................ درې کلنۍ څلور اوښې او څلور وزې.
۲۲۵ – څخه تر ۲۳۵ پورې ................ درې کلنۍ څلور اوښې اویوبل یوکلنۍ اوښې
۲۳۲ – څخه تر ۲۴۵ پورې ................ درې کلنۍ څلور اوښې اویوبل یوکلنۍ اوښې.
۲۴۲ - څخه تر ۲۵۴ پورې ........................................ درې کلنۍ پنځه اوښې.
۲۵۵ – څخه تر ۲۵۹ پورې ................................ درې کلنۍ پنځه اوښې اویوه وزه.
۲۶۰ – څخه تر ۲۲۴ پورې ........................ درې کلنۍ پنځه اوښې او دوه وزې.
۲۶۵ – څخه تر ۲۲۹ پورې ........................ درې کلنۍ پنځه اوښې اودرې وزې.
۲۷۰ – څخه تر ۲۷۴ پورې ........................ درې کلنۍ پنځه اوښې او څلور وزې.
۲۷۵ – څخه تر ۲۸۵ پورې ................ درې کلنۍ پنځه اوښې او بل یوکلنۍ اوښې.
۲۸۲ – څخه تر ۲۹۵ پورې ................ درې کلنۍ پنځه اوښې اوبل دوه کلنۍ اوښه.
۲۹۲ - څخه تر ۳۰۴ پورې ........................................ درې کلنۍ شپږ اوښې.

**هدایات**:

۱- چیرته چې وزه واجب وه د هغې لپاره د یو کال د عمر پوره والی لازم دي او په تذکر او تانیث ( یعنې په نروالي اوښځو والي کې د زکوة ورکونکي اختیار دي ) مګر اوښه به مونثه وي او د نر اوښ ورکول جوازنه لري – که اوښه په قیمت کړي اوبیا هغه له هغې سره سم یاتر هغې زیات قیمت لرونکی اوښ ورکي ،نو بیاصحیح دي –

۲- چیرته چې درې کلنۍ څلور اوښې واجب دي هلته اختیار دي ،یعنې هغه کولای شي د هغو پر ځای پنځه دوه کلنۍ اوښې ورکړي

۳- د زکوة لپاره پورتني حساب هغه وخت دي چې دغه اوښان د تجارت لپاره نه وي او د هغوډېره ګذاره په بهر څړلووي په کور کې ورته واښه نه ورکول کېږي . او يا دبهر څړ کولو په نسبت په کور کې د خوراک اندازه کمه وي. او که په کور کې يې تر بهر ډېرخوراک کاؤ يايې دواړه ځايه خوراک يي له بل سره برابرؤ ،نو بيا ورباندې زکوة نشته.

۴- که اوښان د تجارت لپاره ؤو ،نو بياورباندې د پوتني حساب سره سمي وزې او اوښي واجب نه دي بلکه د تجارت د نورمال په څېر دهغه په قيمت باندې زکوة فرض دي. هغه که په بهر کي څړ کوي اوکه ورته په کور کې خواړه ورکول کېږي. د تجارت کېدلو څخه مطلب دا دي چې د اخستلو په وخت يې د هغه د خرڅولونيت وي. اوکه يې له اخستلو څخه وروستو دبياخرڅولونيت وکړ يايې اصل پخپل ځای وساتو او د هغه د بچيانو د پلورلو اراده يې ولرله ؛که د اصل د اخستلو په و خت يې هم دغه نيت وي اوکه وروستو دغه نيت وکړي ، نو په ټولو صورتو کې دا دتجارت مال ګڼل کېږي.

۵- هغه اوښان چې د سوارلي يابار وړلو لپاره وي په هغوباندې هېڅ ډول زکوة نشته. والله اعلم (احسن الفتاوي ۴ج له ۲۷۲ څخه تر ۲۷۵ و هدايه ۱ج ۱۸۸)

## د غوايانو او مېښو د زکوة نصاب :

غوايان اومېښې دواړه له يوقسم څخه دي او نصاب يې هم يودي .اوکه د دواړو په ګډولو سره نصاب پوره کېدو ،نو بيا به دواړه سره ګډوي. د مثال په ډول که شل غواګانې وې او لس مېښې وې ، نو دواړه به سره ګډوي او د دېرشونصاب به پوره کوي مګر زکوة به له هغه څخه ورکوي چې شمېريې زيات وي يعني که غوايان زيات وي ، نوغويي به په زکوة کې ورکوي او که مېښې زياتې وي نوبيا به مېښه

په دېرشو غوایانو اویامېښو باندې یو سخوندر یا دمېښې بچی چې پوره د یو کال وي لازم دي او په تر دیرشو کموکې هېڅ هم نشته. اوله دېرشو څخه تر (۳۹) پورې هم بغیر له یو کلن سخوندر یاد مېښې له بچي څخه بل هېڅ شی نشته. په څلوېښتو غوایانو یامېښو کې د پوره دوو کلویو بچی لازم دي تر ( ۵۹ ) پوري همدغه سلسله ده او کله چې شپېته پوره شو نو بیا به د یو ،یو کال دوه بچي ورکوي .بیا چې کله تر (۶۰) هم زیات شي ،نو په هرو دېرشو کې یو ،یو کلن سخوندر یا دمېښې بچی او په هروڅلوېښتو کې دوه کلن سخوندر یاد مېښې بچی د مثال په ډول که اویا (۷۰) پوره شي نویوبه د یو کال بچي ورکوي او یو به د دوؤ کلونو . ځکه چې په اویا(۷۰) کې یو د دېرشو نصاب دی او یو د څلوېښتو او کله چې (۸۰) پوره شي ،نو بیادوه ،د دؤو کلونو بچیان لازم دي ځکه چې په هغه کې د څلوېښتو دوه نصابونه دي. او په نوي(۹۰) کې د یو یو کال درې بچي لازم دي ، ځکه چې په نوي کې د دېرشو درې نصابونه دي. او په سلو (۱۰۰) کې دوه د یو ،یو کال او یو د دووکلو نو بچي لازم دي ، ځکه چې په سلوکي دوه نصابونه د دېرشو دي .خو که چېري د دواړه ډلونصابو نه سره برابرګرزي لکه په (۱۲۰) کې چې دوه نصابونه د دېرشو دي او درې نصابونه د څلوېښتو ، نو به دغه رنګه حالت کې زکوة ورکوونکی اختیار لري د هغه خوښه ده چې هر یو معتبر ګرزوي –

( علم الفقه ۴ج ۲۵مخ احسن الفتاوی ۴ج ۲۷۱مخ عالمګیري ۴ج ۱۸مخ )

**یادونه** : د غوایانو او مېښو په نصاب کې د نراو ښځې لکه غویی ، سخوندر ، د مېښې نارینه یا ښځینه بچي هم همدغه حکم دي .

*(محمد رفعت قاسمي)*

## د وزو او مېږو د زکوة نصاب :

**پوښتنه** : هغه وزې چې په بهر کې څرکوي او د تجارت لپاره نه وي د هغود زکوة حساب څنګه دي ؟ په څومره وزوباندې يوه وزه واجبه ده او د وزو او مېږو حکم يو دي او که تر مېنځ يې فرق شته ؟

**ځواب** : په څلوېښتو وزوباندې يواو زګوړي يايوه وزه واجبه ده او بياتر يو سل لس پورې همدغه يو دي. بياله يو سلويو ويشت څخه تر اووسوو پورې دوه دي بياله ( ٢٠١ ) څخه تر ( ٣٩٩ ) پورې درې وزې يا اوزګوړي او په څلور سوه باندې څلور دي . تردې وروستو په هره لسمه باندې يوه وزه يااوزګوړي واجب دي د مېږو هم دغه حکم دي او مږان هم همداسې دي. که وزې او مېږې سره ګډې وي هم دغه نصاب دي ،مګر د زکوة په اداء کولو کې يې دافرق شته چې د کومو شمېرزيات وي هغه به په زکوة کې ورکوي او که دواړه دولونه سره برابر ؤ نوبياد زکوة ورکونکي اختيار دي (احسن الفتاوى ۴ ج ۲۸۲ مخ بحو الدر المختار ۲۰ مخ وفقه الزكوة ۱ ج ۲۲۷ مخ)

## که څاروی د کال په منځ کې مړشو ؟

**مسئله** : يو چاد دووسوودرهم د قيمت په اندازه يوه دوزو رمه لرله. ناڅاپه هغه ټولې د پوره کال تېرېدوله مخه مړې شوې او هغه ورڅخه وړی راوشوکولې او بيايې ورنګولې او د هغه وړيو قيمت له شرعي نصاب سره برابر شو او وروستو د مړوشوو وزو د نصاب کال پوره شو نوداوخت په دغورنګول شو وړيوباندې زکوة واجب دي.

**مسئله** : د يوچاسره د کاروباري مقصد لپاره دانګورو د شيرې ذخېره وه او تر کال پوره کېدو له مخه په شرابوبدله شوه اوله هغه وروستو دهغه سرکه جوړه شوه چې قيمت يې حد دنصاب ته رسېدلی ؤ او

ورسره د شېرې د نصاب پيل شوی کال هم پوره شو ؛ نو دا وخت په هغه سرکه باندې زکوة واجب نه دي .فقهاؤ يې وجه دا ويلې ده چې په لومړۍ مسئله کې خود وزې يا مېږې وريو خپل قيمت لرلو او هغه ( وزې يا مېږې له مرګه وروستو هم ) پخپل ځای پاته دي -او په دغه مسئله کې خو ټول مال ( چې دانګور د شيرې په شکل وه ) له منځه لاړه او بل شی ورځخه جوړ شو ،نو ځکه وربادې د کال پوره کېدلو حکم پاته نشوه (فتاوی قاضي خان وعالمګيري ۴ ج ۱۴مخ )

**مسئله** : د جانورو په بچيانو باندې هغه وخت زکوة فرض نه دي چې هغوی تنها وي يعنې بل لوی د پوره عمر لرونکی شي پکې نه وي. او که په هغو کې يو لوی څاروی هم ؤ ،نو بيا وربادې زکوة فرض دي.که څه هم لويځاروی يووي او په زکوة کې به هم بيا دغه څاروی ورکوي. او که تر کال پوره کېدلو وروستو هغه څاروی مړ شو نو ورسره زکوة هم ساقط شو . (امداد مسائل زکوة ۵۱مخ و درمختار )

## د وزو په بچيانو ( سيرلو) باندې د زکوة حکم :

**مسئله** : که صرف سېرلي ( د وزو بچيان ) ؤ نو زکوة وربادې فرض نه دي .او که ورسره د يو کال يا تردې زيات عمر لرونکې پسه هم ؤ ، بيا به بچي د نصاب په پوره کولو کې معتبر ګڼل کېږي .او هغه وخت چې ټول سره ترڅلوېښتو ورسېږي ،نو بيا وربادې يو لوي پسه لازم دي. ( احسن الفتاوی ۲۴۲ )

**هغه چارپايان چې په صحراګانو کې هم څرکوي او په کورکې هم**

**پوښتنه** : غوايان ، مېښې او نور په ځنګل کې هم څرکوي او په کور

کې هم د خوراک لپاره حتماً ورته څه اچول کېږي ایا په داسې حال کې چې نصاب ورته پوره دي په هغو باندې زکوة فرض دي او کنه ؟
**ځواب** : د خوراک غالب والی معتبر دي ، که د ځنګل خوراک یې د کور تر خوراک ډېر ؤ ، نو زکوة ورباندې فرض دی او که د کور خوراک ورباندې ډېر ؤ ، او یادواړه سره برابر ؤ ، نو بیا ورباندې زکوة فرض نه دي. او که د تجارت لپاره ؤ بیا ورباندې د تجارت د مال زکوة فرض دي.

## د تجارتي ځارویو د زکوة حکم :

**پوښتنه** : زه د وزو ( پسونو ) تجارت کوم چې شلو ښت ، پنځوس یې همېشه راسره موجود وي پوره کال نه پاته کېږي او دغه مال په ځنګل کې څر کوي – ایاد دوي د زکوة طریقه څنګه ده ؟
**ځواب** : د دغو پسونو ( وزو ) د زکوة په اداء کولو کې د پسه ورکول واجب نه دي بلکه د تجارت د نورمال په څېر به د هغو قیمت معلوموئ او بیا به له قیمت څخه شلو ښتمه برخه په زکوة کې ورکوئ.
( احسن الفتاوي ۴ج ۲۷۷مخ بحواله رد المحتار ۲ج ۷۱مخ )

## د هغو مېښو حکم چې د شیدو خرڅولو په نیت ساتلي شوې وي :

کومې مېښې چې په ځنګل یاصحراکې څرنه کوي بلکه پخپله په کور کې خوراک کوي ، نوزکوة ورباندې فرض نه دي خو که دغه مېښې د تجارت لپاره وي یعنې د اخستلو پروخت یې د اخستونکي سره د شیدو خرڅولو تر څنګ د هغې د پلورلو نیت هم وي، نو په دغه رنګه مېښو باندې زکوة فرض دي. ( احسن الفتاوی ۴ج ۲۷۷

## د کښت په سرمایه باندې زکوة :

په انسان باندې د پاک خداي ﷻ یو لوی احسان او بهترین نعمت د ځمکې تخلیق دي چې د پاک خداي ﷻ په امر ورڅخه هر ډول نباتات او راز راز ګلونه او مېوې راز رغونېږي . او د انسان لپاره په نوي ،نوي رنګ څرګندېږي. تردې چې د لوېدیځ اقتصاد پوهانو دا نظر ورکړیدي چې په کرهنیځه ځمکه دي ځانګړې تیکس ولګول شي ځکه چې ځمکه د انساني معېشت حقیقي سرچینه ده . رښتیا خو داده چې د فکر خاوندان ښه پوهېدلی شي چې دا صرف او صرف د پاک خدای ﷻ مهرباني ده چې ځمکه يې د انسان تابع ګرزولې ده او په هغې کې د دوی لپاره روزي پټه کړې ده ،او هغې ته په برکت ورکولو سره يې د ټولو انسانانو لپاره د ټاکل شوې روزي ذخیره ګرزولې ده همدا رنګه که مونږ په دې لږ څه فکر وکړو چې له یوې دانې څخه دلوبیې مېوه داري ونې جوړېدل تر څومره مرحلو تېرېږي او پاک خداي ﷻ د هغې دودې او زیادت لپاره څومره قوانین فرمایلي دي نو مونږ به پاک خداي ﷻ ته د شکر د سجدې سرتیټ کړو ! د هر شنه کېدونکی د پایښت او لویوالي لپاره او به هم یو له لوازمو څخه دي. او د دې لپاره بیا مهربان خداي ﷻ له اوریځو څخه د اوبو راورېدلو او له غرونو ، څخه د چینو د بهېدلو یو داسې منظم او د لچسپت نظام رامېنځته کړی دي چې انساني او وحشي مخلوقاتو ته ورته هېڅ ډول خطر او نقصان متوجه نه وي.همدا رنګه شنه کېدونکي خامو ګاز و نوته هم ضرورت لري چې پاک خدای ﷻ ورته په کافي تناسب د دوي د ضرورت اندازه په هوا کې پیدا کړي دي. او بیا يې نباتاتو ته امر کړی

دی چې د انسانانو او حیواناتوله خولو څخه راوتونکي ګاز (کاربن اکسیاید) خپل ځانته جذب کړي او وروستو له ښه صفاکولو یې بېرته د دوی د کاروني لپاره هواته خوشي کړي د نباتاتو دودې لپاره د ګرمي او رڼاهم یو مناسبه اندازه پکار ده چې که وربانډې د ګرمایښت اندازه زیاته شي نو وابه سوځي او که کمه شي نو مړاوي کېږي. او که تودوخه نه وي نو په کائیناتو کې به یو ژوندي هم پاته نشي. دا هر څه زمونږ د لوی خدای ﷻ په اراده سره شوي دی چې د دې انساني او دټولو مخلوقاتو د ضرورت د رفع کولو لپاره یې لمر پیدا کړاو بیا یې هغه له ځمکې څخه په دومره فاصله کې پورته کړچې که تر دې نژدې وای ،نو هرذي روح به یې سوځلی او له مېنځه وړی وای. او که تر دې لرې وای نو هر موجود به د یخ او کنګل یرغمل واي په ذړی (بنج) کې د لویشت ، پر مختیا ، زیادت مېوې اوګل کولو وړ تیاچاایښې ده ؟ چا د خورماپشان کلک ذړی د آسمان لورته دوني په شکل کې پورته کړي دی ؟ څوک دي چې د تازه میوؤ اوګلانو لوړی ، لوړي وني ئي درولې دی. څوک دی چې دغنم له یوې دانې څخه اووه وږي راشنه کوي او هر وږی د (۱۰۰) دانو لرونکی وي - ښکاره خبره ده چې دا هرڅه پاک خدای ﷻ کړي دي دې ټولوته په ترتیب ورکولو سره یې د تخلیق عاجزي ثرګنده کړه همدا وجه ده چې پاک خدای ﷻ په خپلو بندګانو د احسان کولو په ترڅ کې فرمایي. ( أَفَرَأَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ٦٣ أَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ ٦٤ سورة واقعه )

**ترجمه** : بېشکه چې د ځمکې نه هرڅه ترلاسه کېږي هغه د لوی خدای ﷻ احسان او فضل دی او په رشتیاسره د هرڅه پیدا کونکی الله ﷻ دی.

مونږ له هغې څخه یوډکی شاني څه هم راز غونولی نشو مونږ ته په دې باندې شکر اداء کول پکار دي چې پاک خدای ﷻ راته له دې خوږو خاورو څخه دارنګه خوندور او طاقتور شیان راشنه کړي دي - د دې شکر د ځرګندويي طریقه دا ده چې د ځمکې له پیداوار څخه زکوة ( عشر اونصف ،عشر او مالیه ) اداء کړو تر څو د محتاجانو ضرورتونه پوره شي - اوله دې لارې څخه د الله ﷻ د دین مرسته او کومک وشي ( فقه الزکوة ۴۵۱مخ څخه تر ۴۵۵ پوري )

## د عشرواجبدلو دلیل :

د کښت او مېوود عشر ( یعني د پیداوار لسمې برخې ) ثبوت په قرآن او سنت سره هم شوی دي د پاک خدای ﷻ ارشاد مبارک دي:

( وَآتُواْ حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ وَلاَ تُسْرِفُواْ إِنَّهُ لاَ يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ ١٤١ )

یعنې د کښت رېبلو پروخت د پاک خدای ﷻ حق اداء کړئ همدارنګه حضور صلي الله علیه وسلم فرمایي : کوم کښت چې په باران او بېږي په هغه باندې لسمه واجب ده اوکوم چې په څرخ ، او بېږي په هغه باندې شلمه واجب دي . په دغه حدیث شریف کې د هغه څه تفصیل دي کوم چې مخته په ایت شریف کې په اجمالي ډول ورڅخه یادونه وشوه . کتاب الفقه١ج ٦٠٣مخ )

## د عشر مفهوم څه دی ؟

د عشر د لفظ اصلي معنې (لسمه ) ده مګر په حدیث شریف کې چې حضور صلي الله علیه وسلم د شرعي واجباتو کوم تفصیل فرمایلی دي په هغه کې یې د عشر ځمکه په دوه ډوله کړېده - په یو ډول کې یې لسمه برخه د پیداوار په زکوة کې ورکول واجب دي او په بل ډول کې

شلمه برخه په زکوة کې ورکول واجب دي - مګر د فقهي د علماؤ په اصطلاح کې د دواړو دولو زکوة ته عشر ویل کیږي. (امدادمسائل زکوة ۸۱مخ - عشر وخراج کي احکام. ۲۴۷مخ)

## د عشر نصاب کوم دي ؟

**مسئله** : د امام ابوحنیفه رح په نزد د عشر لپاره نصاب نشته په هر لږ او ډېر باندې عشر واجب دي. (فقه الزکوة ۱ج ۲۰۲ مخ) پیداوار چې هرڅومره وي ، کم وي که ډېروي عشر ورڅخه ایستل واجب دي. نو څکه پکي د زکوة په څېر تاکل شوی نصاب نشته. او وجه یې د قرآن کریم او احادیثو د الفاظو څرګندوالی دي:

( وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ )سورة بقره (جواهر الفقه ۲۷۴مخ - فتاوی دارالعلوم ۲ج ۷۲مخ)

## ا یا په قرضدار باندې عشر واجب دی ؟

**مسئله** : که له عشر سره سره قرض هم لازم وي نو په کوم ځای کې چې عشر لازم دی هلته د عشر د واجبیدلو د پاره قرض مانع نه واقع کیږي او چیرته چې عشر واجب نه دی هلته ئي هم په ورکولو کي کومه منعه نشته. (فتاوی دارالعلوم ۶ جلد ۱۳۲ مخ)

## دعشر دوجوب شرطونه :

(۱) هغه څوک چې عشر ورباندې لازمیږي هغه به مسلمان وي، څکه چې عشر یو خاص عبادت دی او کافر د عبادت اهل نه دی. (بدائع)

(۲) په عشري ځمکه باندې عشر واجب دی. او پر خرابه ځمکه عشر نشته.

(۳) له ځمکي څخه د پیداوار ترلاسه کول. که د څه بې اختیاري یا غفلت په وجه پیداوار ترلاسه شو، نو په هر حال عشر ورڅخه ساقط دی.

(۴) داسې پیداوار به وي چې له کرل شوې څخه به ترلاسه شوی وي ، په هغو ونو باندې چې پخپل سرشنه شوي وي عشر واجب نه دی.
(امداد مسائل زکوة ۸۵ مخ)

**مسئله** : په عام ډول په شرعي احکامو کي عقل او بلوغ هم شرطونه دي ، مګر دځمکي دعشر په وجوب کي داد وه شرطونه نشته ، ځکه چي دعشر واجبيدلو دپاره دځمکي دخاوند عقل او بلوغ ضروري نه دی. دځمي خاوند که ماشوم (نابالغ ) وي او که ليونی وي خوله ځمکي څخه يي حاصل ترلاسه کيږي ، نو په هغه کي عشر واجب دی او دهغه (نابالغ يا ليوني ) په سرپرستانو باندي يي اداء کول فرض دی. او زکوة چي دی ، هغه په ماشوم او ليوني باندي نشته. (بدائع )

**مسئله** :دعشر واجبيدلو دپاره دا شرط نه دی چي پيداوار اخيستونکی به دځمکي خاوند وي بلکه دوقف دځمکي په پيداوارکي هم عشر واجب دی. دغه رنګه که يو چاله بل چا څخه په اجازه ، يا خواست يا کرايه باندي ځمکه واخيستله او په هغي ئي کښت وکړ ، نو دهغه دپيداوار عشر هم په محصول اخيستونکي باندي لازم دی ، په مالک دځمکي هيڅ هم نشته.

**مسئله** : دعشر دواجبيدلو دپاره پوره کال تيريدل هم شرط نه دی. څوواره چي په کال کي له ځمکي څخه پيداوار ترلاسه کيږي او رالوئيږي هغو مره واري عشر هم واجب دی.

**مسئله** : که دچا په ذمه باندي قرض وي هم عشر لازم او که نه وي هم لازم دی. او دزکوة په اداء کولو کي به قرض ورڅخه نه جلا کوي.

(عشر و خراج کی احکام ۲۷۲ مخ ، جواهر الفقه ۲ جلد ۲۷۱ مخ احسن الفتاوی ۴ جلد ۳۴۵ مخ )

**مسئله** : دزکوة دواجب کيدلو دپاره دا ضروري ده چي في الواقع (عين حال ) کي به په ځمکه باندي کښت شوی وي ، چي داله خراج سره په ټکر کي دی ځکه چي خراج (ماليه ) هغه وخت واجبيږي چي کله په ځمکه کي دکرهني ورتيا پيدا شي. دغه رنګه ضروري ده چي دځمکي

خاوند به د کښت کولو قابل وي. نو که یو څوک په ځمکه د کښت کرلو قدرت لري، خو کښت ئي ورباندي کړی نه وی. نو په هغه باندي عشر واجب نه دی، مګر مالیه ورباندي په هر حال واجبه ده ځکه چي په هغې ځمکه کي د زیادت کولو (حاصل ورکولو) وړتیا شته. (کتاب الفقه ۱ جلد ۱۰۴ مخ)

## دعشر او خراج (مالیې) حکمونه:

دعشر او خراج د اسلامي شریعت دوه اصطلاحي لفظونه دي چي په دواړو کي په ګډه داخبره شته چي د اسلامي حکومت له طرفه په ځمکو د اچول شوي ټیکس حیثیت موجود دی. خو فرق پکښي دادی چي عشر صرف ټیکس نه، بلکه یو عبادت هم دی. نو له دي امله ورته (زکوة الارض) دځمکي زکوة ویل کیږي او خراج مالیه خالص ټیکس دی او له عبادت څخه نه شمیرل کیږي. نو ځکه عشر د مسلمانانو له ځمکو سره خاص دی او عملي فرق پکښي دادی چي عشر خود ځمکي لاس ته راوړنه ده که ځمکه ونه کرله شي (که څه هم د نه کرلو سبب یي دښتن بي غوري وي چي د کروندي وړتیا لرونکي ځمکه یي بي کرهنې پري ایښې ده) نو هم ورباندي عشر لازم نه دی، ځکه چي عشر د ځمکي د پیداوار دیوي برخي نوم دی. او مالیه چي ده هغه په هره هغه ځمکه باندي شته چي د کرهنې وړوي که څه هم د خاوند د بې غوري په وجه ورباندي کښت هم نه وي شوی البته د مالیي د اخیستلو د پاره په ځمکه کي د کښت کیدلو وړتیا شرط ده. په هغه ځمکه باندي (چي د کرهنې وړتیا پکښي نه وي، یا له اوبو څخه دومره لیري وي چي اوبه ورته نشي رسیدای، او باران هم دومره نه وي چي ورباندي له ځمکي څخه کښت راز رغون شي) مالیه نشته. (جواهر الفقه ۲ جلد ۳۴۷)

**مسئله**: په هر پیداوار کي چي مقصد ورڅخه د حاصل لاس ته راوړل

وي عشر واجب دی هغه که غله وي او که میوي همدا رنګه په کښت اوباغ باندي هم عشر واجب دی .(امدادالفتاوی ۲جلد ۷۹)

## د عشر او زکوة ترمينځ فرق :

په عملي ډول په عشراوزکوة کي دافرق شته چي د تجارت مال، سپين زر، سره زراونورکه پوره یو کال ایښی وي چي ورځخه ګټه خونه اخیستله کیږي بلکه تاوان پکښي کیږي ، نوکه د نقصان په کولو سره بیاهم ترحد د نصاب کم نشو ،نوهم د هغو مالوزکوة اداء کول فرض دی، خوعشربیاداسي دی چي که د ځمکي پیداوارؤنو عشرهم واجب دی او که پیداواریي نه ؤبیاهیڅ هم واجب نه دي .(جواهرالفقه ۲جلد ۲۴۷مخ )

**مسئله** : حکومت چي کومه مالیه اخلي هغه عشرنه دی .(فتاوی محمودیه۱۱جلد۱۳۸مخ)

## ایاد هندوستان په ځمکوعشرواجب دی ؟

**مسئله** : په هندوستان کي چي کومي ځمکي د مسلمانانوتر ملکیت لاندي دي هغه عشري ځمکي دي ځکه د عشراداء کول د مسلمانانو اصلي وظیفه ده،نودداسي شک په بنابه چي ډیراحتیاط پکښي وي ورځخه عشراداءکوي.

**مسئله** : د هندوستان د ټولو ځمکو د پاره یو حکم نه دی، هغه ځمکي چي د مسلمانانو په ملکیت کي دي په هغوکي عشرواجب دی او مسلمان باید عشراداء کړي. (جواهرالفقه ۳۲۱ مخ)

**مسئله** : کله چي عشرپه منزله دزکوة کي دی نوځنګه چي زکوة په هرځای اوهرښارکي (اسلامی وي که غیراسلامي ) واجب دی هماغه رنګه عشرهم په هرځای کي لازم دی ، اوکه له عشري ځمکي ځخه مالیه واخیستله شي ،نوهغه عندالله ئي عشرله ذمي ځخه ساقط

شوی نه دی ،نوځکه دځمکي خاوندته پکاردی چي عشرفقیرانوته په ورکولو سره اداء کړي. لنډه داچي ډیراحتیاط داده چي مسلمان دي دخپلو ځمکو دپیداوارعشراداء کړي (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۸۹مخ)

**مسئله** : احتیاط په دي کي دی چي دخیراوبرکت دحصول په خاطر، ترکومه چي کیدای شي هروخت دعشراونصف عشر اداء کولوته دوام ورکړئ. (نظام الفتاوی۱جلد ۳۵۷مخ)

## د ساتل شو و شیا نو حکمو نه :

**مسئله** : دفصلونو په پیداواراومیووباندي دکال په تیریدلو سره بیازکوة نه لازمیږي یعني کله چي یوځلي دفصلونوله پیداوارڅخه عشرایستل شوی وي بیاکه ډیرکلونه له خاوند سره وي هم زکوة ورباندي نشته ،ځکه چي دزکوة هرکلني وجوب صرف په زیادت قبلونکو شیانو باندي دی. (فقه الزکوة۱جلد ۱۹۲مخ)

**مسئله** : عشر(یعني دپیداوارلسمه ) چي چرته واجب ده هغه په ټول پیداوارباندي واجب دی او کله چي غله پیداشوه هغه وخت سمدستي واجبیږي دپوره کال تیریدلوقید پکښي نشته (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۷۵مخ)

## عشر په چا لا ز م دی ؟

(۱) پوښتنه: دعشرتعریف ( پیژندنه ) څه ده ؟

(۲) پوښتنه: آیادزکوة په څیرهغه هم دنصاب لرونکی دی ؟

(۳) پوښتنه: آیاپه ټولو ځمکه لرونکوباندي عشرشته؟

(۴) پوښتنه: عشرکومو خلکوته په ورکولوسره اداء کیږي ؟

(۵) پوښتنه: که یوڅوک له خپل مال څخه زکوة اداء کړي آیاهغه به هم عشراداء کوي ؟

(۶) پوښتنه: آیا عشر په کال کي باید یوځلي اداء شي که له هرنوي فصل څخه؟

(۷) پوښتنه: آیا د څارویو د پاره په کرل شوي کښت باندي هم عشر واجب دی؟

(۱) ځواب: عشر د ځمکي د پیداوار زکوة دی، که ځمکه باراني وي او د باران په اوبو سره اوبیږي (یعني د للمي کښت وي) نو له ترلاسه کولو سره سم ئي لسمه برخه د الله جل جلاله په لاره کي ورکول واجب دی. او که داسي ځمکه وه چي له واټرپمپ، کوهي، یا داسي بل شي څخه اوبه ورته ورکیدلي نو د هغه بیا شلمه برخه صدقه کول واجب دی

(۲) ځواب: زمونږ د امام (امام ابو حنیفه رحمة الله علیه) په نزد د عشر د پاره کوم تاکلی نصاب نشته، بلکه په هرکم او زیات پیداوار باندي عشر واجب دی.

(۳) ځواب: بلي! هرڅوک چي له ځمکي څخه حاصلات اخلي په هغه باندي عشر واجب دی.

(۴) ځواب: مستحقین د عشر هغه څوک دي چي د کوة مستحقین بلل کیږي

(۵) ځواب: عشر د پیداوار زکوة دی، نو ځکه له نورو مالونو څخه د زکوة ایستلو باوجود په پیداوار باندي عشر واجب دی

(۶) ځواب: په کال کي چي هرڅو ځله نوی نوی فصل ثمر (میوي) ته رسیږي هغو ټوله واري ور باندي عشر واجب دی.

(۷) ځواب: بلي! د امام صاحب رحمة الله علیه په نزد په هغه فصل باندي هم عشر واجب دی چي د څارویو د خوراک د پاره کرل شوی وي.

(آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۰۰ مخ وفتاوی محمودیه ۳ جلد ۱۰۰ مخ هدایه ۱ جلد ۱۸۱ مخ)

د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد په میوو، سبزو، ترکاریو او د څارویو د پاره په کرل شویو باندي هم عشر واجب دی د کښت څخه په هرلاس ته راتلونکي کي زکوة نه بلکه عشر واجب دی.

(آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۰۹ مخ وفتاوی محمودیه ۳ جلد ۱۰۱ مخ)

## د ځړ ځای د ځمکې حکم:

**مسئله**: په هغه کښت کې چې د ځارویو په ځړ ځای کې کرل شوی وي او غله پکښې پیدا شوې وي هم عشر واجب دی.

**مسئله**: که کښت مخکې تر ثمري نیولو (میوې پخیدلو) وریبل شو او ځارویو ته واچول شو، نو عشر پکښې نشته. (یعني که چا د غلې د ترلاسه کولو د پاره کښت وکړ مګر وروسته ئې اراده بدله شوه او کښت ئې تر پخیدلو له مخه وشکاوه او ځارویو ته ئې ورځخه د خوراک ذخیره جوړه کړه نو عشر ورباندې واجب نه دی) (رفعت قاسمی غفرله/ (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۸۲ مخ)

## تر پخیدلو له مخه د کښت خرڅولو په صورت کې د عشر حکم:

**مسئله**: که ولاړ کښت تر تیاریدلو (پخیدلو) له مخه وپلورل شو نو عشر یې په اخیستونکې باندې واجب دی او که تر داني (ثمرې) پخیدلو وروسته و پلورل شو نو بیا ئې عشر په پلورونکې واجب دی.

**مسئله**: د میوه لرونکو ونو زکوة هغه وخت واجبیږي کله چې په هغو کې میوه پیدا شوه او د خرابیدلو ویره ئې له مینځه لاړه؛ په دې ډول چې هغه داسې شي چې کاورځخه اخیستل کیدای شي او بیا چې څو مره څه په هغې باندی واجب دي هغه به د شکولو پروخت باسي. خو د غلو د عشر وخت هغه دی کله چې هغه واړه اوصاف کړل شي. که د خاوند د خپل عمل بغیر، ترلاسه شوی مال (پخپله) له مینځه لاړ (ضائع) شي نو عشر ئې هم ساقطیږي او دا حکم په هغه صورت کې دی چې د هغو وړول سخت (یابې امکانه) شي. (کتاب الفقه ۱۰۰۵ مخ)

## د ناکافي پیداوار حکم:

**پوښتنه**: ډیرځله داسي هم کیږي چي له کروندي څخه دومره څه هم نشي ترلاسه چي هغه لګښت ورڅخه پوره کړای شي کوم چي ورباندي لګیدلي دي. په دغه صورت کي په څه ډول باید عشراداء شي؟

**ځواب**: څومره څه چي ورڅخه لاسته شي له هغو څخه باید عشروایستل شي دمثال په ډول که (۱۰۰) منه ورڅخه ترلاسه شي نوبایدلس منه په عشرکي ورکړي اوکه لس منه ورڅخه ترلاسه شي نوباید یومن ورکړي اوڅومره لګښت چي ورباندي شوی دی هغه به ورڅخه نه جلاکوي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۷۲مخ)

## دڅوبرخولرونکي ځمکي عشرڅه ډول دی؟

**پوښتنه**: زه دیوزمیندارځمکه کرم، سږکال دټول کښت حاصل لس زره منه شو، نوآیادټولو(لس زره منه) عشربه زه اداءکوم اوکه به صرف دخپلي برخي؟

**ځواب**: تـه دخپلي برخي دپیداوارعشـراداء کـړه، ځکـه چي اصـل پکښي دادی چي دځمکي پیداوارچي دهرچاوي، نوعشرئي هم ده هغه په ذمـه دی، دکروندګر(کښـي) پـه حصـه کـي چـي څـومره مـال دځمکـي لـه پیداوارڅخـه ورغـي دهغـه عشـردکرونګرپه ذمـه دی؛ اوڅومره چي دځمکي دخاوندپه حصه کي ورغي دهغـه عشـردځمکي دخاوندپه ذمه دی (آپ کي مسائل ۳ جلد ۳۲۱مخ وفتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۵۹ بحواله درمختار ۲جلد ۷۵مخ)

## ایاله پیداوارڅخه به په کرونده باندي شوی مصرف جلاکوي اوکنه؟

**پوښتنه**: نن سبادتراکتورپه ذریعه ځمکه پـه یواوبل مخ اړول کیږي اوکیمیاوي سره (یوریا) ورکوله کیږي اوپه دي ډول دکروندي دپاره

تیاریږي، نو آیا دغه لګښت به د فصل له پیداوار څخه باسي بیا به عشر اداء کوي او که به ئي له ټول پیداوار څخه اداء کوي ؟

**ځواب** : شریعت په اخراجاتو باندي عشر (لسمه حصه) لازمه کړي ده نو ځکه باید پیداوار څخه اخراجات جلا نکړل شي بلکه له ټول پیداوار څخه عشر ورکړل شي . (آپ کي مسائل ۳ جلد ۳۱۲ مخ)

**مسئله** : تخم هم په اخراجاتو کي دی، چي له پیداوار څخه به ئي نه جلا کوي . (آپ کي مسائل ۳ جلد ۱۱۴ مخ)

## د ریبلو لګښت او عشر :

**پوښتنه** : دوه جریبه ځمکه وه چي ور څخه سل منه غنم ترلاسه شول . ددوئ په ریبلو کي پنځه منه غنم ورکړل شول . او نژدي پنځلس منه غنم تهریشرته په وړولو ورکړل شوي چي ماته اتیا منه غنم پاته شول ، نو آیا عشر به د سلو منو ورکول کیږي او که د اتیا منو ؟

**ځواب** : عشر به د سلو منو ورکول کیږي . (آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۱۲ مخ)

**مسئله** : په عشر کي د کارګر (مزدور) مزدوري او نور ګښتونه نه شمارل کیږي ، یعني د مزدور د مزدوري له وجي به په عشر کي کمی نه کیږي ، لهذا باید د پیداوار لسمه په عشر کي ورکړله شي . (ردالمحتار ۲ جلد ۲۹ مخ)

**مسئله** : عشر به له ټول پیداوار څخه اداء کوي ، د کرلو ، ریبلو ، ساتلو ، مزدورانو او نورو لګښت باید د عشر له ایستلو څخه وروسته ورکړي . (امداد مسائل زکوة ۸۹ مخ و کتاب الفقه ۱ جلد ۱۰۰۴ مخ)

## آیا د ګښت په قیمت باندي زکوة شته ؟

**مسئله** : د ګښت په قیمت باندي زکوة نشته هر څومره قیمت چي ولري . که ځمکه عشري وي نو څومره څه چي ور څخه ترلاسه کیږي په

هغو باندي عشر (لسمه واجب ده) او که ځمکه عشري نه وه بیاورباندي هیڅ هم واجب نه دی (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۵۷ عالمګیري مصري۱ جلد ۱۸۵مخ)

**مسئله**: دپوره کال تیریدل دکښت او میوو څخه بغیر دنورو شیانو دپاره شرط دی، خودکښت او میوو دپاره داشرط نه دی (بلکه په کال کي چي هرڅوځله فصل په ثمررسیږي، نو باید عشریې اداء کړل شي ).(کتاب الفقه ۱جلد ۹۲۴ )

## ایا ددولتي ټیکس په اداکولو سره عشر اداء کیږي؟

**مسئله**: دځمکي دحاصلاتو لسمه حصه ورکول دزکوة په څیریومالي عبادت او دلګښت ځایونه ئي هم هغه دي کوم چي دزکوة دپاره ټاکل شوي دي. که کوم مسلمان یاغیرمسلمان حکومت له ځمکي لرونکو څخه سرکاري ټیکس اخلي، نو دهغه ټیکس په اداء کولو سره عشرنه اداء کیږي، بلکه په هغو مسلمانانو چي ځمکي لري واجب دي چي هغوئ پخپله عشروباسي او په مناسبو لګښت ځایونو کي ئي ولګوي.(جواهرالفقه ۲جلد ۲۷۲مخ وامدادالفتاوی ۲ جلد ۱۹مخ)

## دکومي غلي څخه چي عشر نه وي ایستل شوی هغه حلاله ده او که حرامه؟

**مسئله**: که یوچادخپلي غلي (هرهغه څه چي عشرپري لازم وي) څخه عشراداء نکړ، نو هغه حلال دی، مګردعشرنه اداء کونکی دعشرنه ورکولوله امله ګنهکاراوفاسق دی.(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۸۰مخ ومحمودیه ۳ جلد ۵۱مخ)

## په کومو شیانو کي عشرواجب دی؟

**مسئله**: دغنمو، وربشو، وریځو، ترکاریو، میوو، ګلانو او نوروتولودپاره دغه حکم یعني عشردی.

**مسئله**: په عشري ځمکه ، غرونو ، یاځنګل کي که شهد پیدا شول ، نوهم پکښي عشرواجب دی .(درمختار)

**مسئله**: په هرډول ترکاریواونوروکي دحضرت امام صاحب په نزدعشرلازم دی لکه په
ختکو، هندوانو، بادرنګو، پیازو، کدوګانو، سنګتره اوداسي نوروکي .(درمختار)

الغرض: کوم شیان چي له ځمکي څخه دپیداوارپه نتیجه کي ترلاسه کیږي لکه وربشي غنم ، چني، وریځي، جواري اوداسي نوراوهرډول دانواوترکاریو ، سبزیانو ، میوو ، لمدوخورماګانو ، ګنواوداسي نوروشیانوباندي عشرواجب دی ، دافرق نه کوي چي دهغومیوي باقي پاته کیږي اوکنه.

**مسئله**: دالسي په زړنو(تخم)باندي هم عشرواجب دی ، دغه رنګه په چارمغزو ، بادامو ، زیره اودنیاباندي هم عشرواجب دی .

**مسئله**: له عشري ځمکي څخه چي هرڅه ترلاسه کیږي ، غله دانه وي که ګنی وي ، که خشخاش یاتمباکووي اوکه دواګاني یاګلان وي چي دګټي اخیستلو په غرض کرل شوي وي په دي ټولوکي عشرواجب دی . دغه رنګه زکوة ته عشرویل کیږي . (امداد مسائل زکوة ۲جلد ۲۹مخ)

**مسئله**: دغه عشرپه هرډول ځمکني پیداوارباندي واجب دی لکه غنم ، وربشي، جوارياوداسینوروډانولرونکوباندي ، اوسبزیو ، خوشبودار وګلانو ، ګنیو ، ختکو ، زعفرانوخورماؤ ، انګورواونورومیووباندي ، هغه که لږه وي اوکه ډیره . دهغودپاره دپوره کال تیرېدلواونصاب شرطونه نشته .

**مسئله** : کله چي ميوه داطمنان وړو ګرزي نو له هغه وخته ئي عشرواجب دی.
**مسئله** : ترتيارېدلو له مخه چي څومره خرڅه وکړي، نو دهغو
تولو حساب دي په يادکي ساتي ځکه چي دهغو به هم عشراداء کوي.
(کتاب الفقه۱جلد ۱۰۰۴مخ)
**مسئله** : په داسي دانوباندي چي دکرهني دپاره نه پکار کيږي عشرنشته.

## د عشر څوضروري مسئلي :

ترکرلوله مخه دځمکي عشراداء کول صحيح نه دی. همدارنګه ئي له کرلووروسته ترشنه کيدلوله مخه هم عشراداکول صحيح نه دی.
اودميووعشردهغوترظاهريدلو له مخه اداء کول هم روانه دی.
اودميووترښکاره کيدلو ورسته ئي اداء کول روادی.
**مسئله** : که يوچاخپله ځمکه دنغدوروپوپه عوض کي په کرايه ياټيکه ورکړه ،نوعشرئي دټيکه لرونکی په ذمه دی (يعني دهغه چاچي کرونده پري کوي اوحاصل ئي ترلاسه کوي )
**مسئله** : که ځمکه بل چاته په مزارعت (کښت کولو )ورکړله شوه چي دحاصل څخه نيمايي يادوهمه برخه دځمکي دخاونداوپاتي برخه ئي دکروندګروه ،نوپه دغه رنګه صورت کي په دواړوباندي دخپلي خپلي حصي عشرلازم دی.
**مسئله** : که يوچادتجارت په نيت ځمکه واخيستله اوله ځمکي څخه پيداوارترلاسه شو ،نوپه هغه باندي عشرواجب دی ، دتجارت زکوة ورباندي واجب نه دی.
**مسئله** : که دوخت مشريادهغه نائب دعشري ځمکي عشريوچاته معاف کړي ،نونه ئي هغه ته معاف کول دشريعت له نظره جائزدی اونه

دځمکي دخاوند د پاره دعشر دمال خوړل او یا پخپله کته کي مصرف کول جائز دی. بلکه دمال دخاوند په ذمه لازم دی چي پخپله دخپل پیداوار عشر واخلي او مسکینانو ته ئي ورکړي.

**مسئله**: که دکروندي ځمکه (کښت) څه دکوهي په اوبو او څه په باران اوڅه په نور څه سره اوبیدو، نو اعتبار پکښي ډیروالي ته دی. دمثال په ډول که د اوبیدلو ډیرکاریي دباران له لاري څخه کیدو نو له هغه کښت څخه به لسمه حصه، او که ئي دکوهي، ماشین یا بل څه له لاري کیدو بیا به یي شلمه برخه په عشر کي ورکوي. او که دواړه لاري له یو او بل سره برابري وي، نو بیا به دنیمایي پیداوار لسمه، او دنیمایي پیداوار شلمه په عشر کي ورکوي.

**مسئله**: که دچا په ذمه دتیري زماني عشر پاته ؤ او اداء کړی ئي نه ؤ، نو هغه ور څخه ساقطیږي نه، بلکه اداء کول ئي واجب دی. دمرګ پیښیدلو په صورت کي ئي باید وصیت لازماً وکړي.

**مسئله** دعشر تر اداء کولو له مخه چي کوم غله په اجرت یا بي اجرته چاته ورکوي یا ئي پخپله استعمالوي، نو دعشر ضامن به ئي هغه ورکونکی یا استعمالونکی وي.

**مسئله**: دعشر او زکوة چي دخومره حصي اداء کول واجب وي، نو که دهغه قیمت ورکړل شي هم اداء کیږي . (شامي)

**مسئله**: دافیونو (طریاقو) په عشر کي دهغو دقیمت ورکول هم روادی

**مسئله**: دعشري ځمکي دپاره چي کوم څه دټیکس په ځیر ټاکل شوي وي دهغو په اداء کولو سره عشر نه اداء کیږي لکه څنګه چي دانکم ټیکس په ورکولو سره زکوة نه اداء کیږي .

(امداد مسائل زکوة ۸۹مخ وفتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۸۹مخ وبدائع ۲جلد ۵۲مخ)

**مسئله** : افیون (طریاق) له مال متقدم څخه ګڼل کیږي، نو څکه عشرورباندي واجب دی. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۷۸مخ)

**مسئله** : که یو چاپخپله عشري ځمکه کي تمباکو وکرل، نوهم په پیداوارکي ئي عشرواجب دی.

**مسئله** : که داستوګني کورپه مستقل ډول په باغ باندي بدل کړشو، نوهم عشریامالیه ورباندي واجب دی که عشري ځمکه ترهغه زیاته ورته نژدي وي، نوعشرپري لازم دی او خراجي ځمکه نژدي وي نوبیاخراج ورباندي لازم دی عشرواجب دی.

**مسئله** : اوکه کورداستوګني دپاره ؤخوپه دائره (چار دیوالي) کي ئي وني ولګولي شوي نوپه هغوباندي عشراوخراج نشته. (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۵۷مخ)

**مسئله** : په ناچمتوکفا، غنمو، وربشو، سبزیو، ترکاریواو نوروپه ډول پیداوارباندي عشرشته مګرپه پروره یعني هغه څه باندي نشته چي غنم اوو ربشي ورڅخه ترلاسه شوي دي. (احسن الفتاوی ۴جلد ۳۴۴مخ)

**مسئله** : دباغ په میووباندي عشرواجب دی خوداور بلولوپه لرګوباندي نشته. (هدایه۱جلد ۱۸۳مخ)

**که ځمکه و پلورله (خرڅه) شوه نو عشر او ما لیه ئي د چاپه ذمه دي ؟**

**مسئله** : که فصل لرونکی ځمکه په داسي وخت کي وپلورله چي دکال پای ته رسیدلوته دري میاشتي یاتردي زیات وخت پاته ؤاوپلورونکي په دغه کال له دغي ځمکي څخه بل فصل نه ؤ اخیستی، نودهغه خراج په اخیستونکي باندي دی. اوکه پلورونکي مخته تردي هم له دغي ځمکي څخه فصل اخیستی ؤبیامالیه په اخیستونکي باندي ده، په دي شرط چي خرڅونکي ورڅخه په دغه

کال کي بل فصل نه وي اخیستی او که دفصل له تیاریدلو (پخیدلو) ورسته خرڅ کړل شو نو بیائي تفصیل په هغه ډول دی کوم چې دفارغي (خلاصي) ځمکي دخرڅولو په اړوند دی. (احسن الفتاوی ۴ جلد ۴۵۹مخ)

**مسئله**: که یو چا عشري ځمکه دهغي له تیار فصل سره خرڅه کړه، او یائي صرف فصل خرڅ کړ نو عشرئي په خرڅونکي باندي واجب دی. او که لا فصل تردا وخته پوخ شوی نه وو چې ځمکه ئي خرڅه کړه شوه او هغه وخت ورڅخه ځمکي اخیستونکي دفصل پیداوار لیري کړ، نو عشر ئي په خرڅونکي باندي اجب دی، او که اخیستونکي سمدستي ورڅخه فصل لیري نکړ بلکه په هغه حالت ئي پریښود او په ځمکه ئي سره دهغي له پیداواره قبضه وکړه، نو بیائي عشر په اخیستونکي باندي واجب دی. (کتاب الفقه ۱جلد ۱۰۰۴مخ)

## دلاندینیو شیانو پر پیداوار عشر واجب نه دی:

**مسئله**: دځمکي په هغه پیداوار چې مالیت ئي مقصود نه وي لکه بې ارزښته لرګي او پخپله راشنه شوي وابنه، پروړه، دخورما پاڼي، خاشي، دکفا خالي ډنډر، دختکي او هندواني زنړي او ددوا ګانو پاڼي او دغه رنګه نورو کي عشر نشته، ځکه چې دهغو مقصود مالیت نه دی او که مالیت ورڅخه مقصود ؤ لکه نن سبا چې ځمکه لرونکي لاتې او ترسل ډیر په بنه ډول ذخیره کوي او دادوئ په نزد دخپلي ځمکي پیداوار ګڼل کیږي، نو بیا پکښي عشر واجب دی.

**مسئله** : لـه پـروړي څخـه چـي دانـه وايسـتله شـي نوبياورباندي عشرنشته ځکه چي مقصودي پيداوارغنم دی، پروړه له کبنت څخه مقصدنه وه. (شامي)

**مسئله** : کوم وابنه چي په کبنت کي راشنه شي اودفصل (کبنت) تابع وي، له هغو څخه مقصود ده شي ترلاسه کول نه دي، نوځکه وربانـدي عشرهم لازم نه دی.

**مسئله** : کـه دچاپـه کـورکي ميـوه لرونکـي ونـي وي، نوپـه هغوبانـدي عشرواجب نه دی، کـه څـه هـم هغـه بـاغ دکورباغچـه وي. ځکـه چـي دادکورتابع دی. (شامي)

**مسئله** : هرپيداوارچي دځمکي مقصودي لاس ته راوړنه نه وي لکه لرګي، وابنه، لوخي، انځراوداسي نوروربانديِ هم عشرواجب نه دی. اوکـه دچامقصـود ددغوشـيانوله کرلوڅخـه آمـدني ترلاسـه کـول وونوبيادقاعدي له مخي په هغوباندي هم عشرفرض دی. (محمدرفعت قاسمي غفرله الله)

**مسئله** : کـه يوچاپخپـل کـورکي ترکـاري وکرلـه اويـائي پکښـي ميـوه لرونکي ونه وکرله اوهغي ميـوه ونيولـه، نو عشـروربانـدي واجب نه دی. (امدادمسائل زکوة ۸۵ مخ بحواله اسلامي حکومت کاماليـاتي نظام ۵۱ مخ)

**مسئله** : دبـاغ پـه ميـووکي عشـرواجب دی، خوپـه لرګـود سوځولوکي عشـرنشتـه. (فتاوی دارالعلوم ۲ جلد ۱۹۳ مخ)

## ايا د عشر په روپو باندي زکوة شته او کنه ؟

**پوښتنه** : يوچادبـاغ تـرڅولويـوه ميـاشت وروسـته خپـل کلنـی زکوة اداء کړ، نوآيا، باغ په روپو (چي عشرورڅخه ايستل شوی دی) زکوة لازم دی اوکنه؟

**ځواب**: له هغوروپوڅخه به هم زکوة اداء کوي، کله چي د نوروو (کال پوره شو) زکوة اداء کوي نوله هغه سره دي د دوئ زکوة هم اداء کړي (آپ کي مسائل: ۳جلد ۴۰۹مخ)

**یادونه**: حکومت چي په بعض ځایوکي دیوایکړله حسابه عشراخلي داصحیح نه دی، پکاردی چي دپیداوارله ترلاسه کولووروسته دهغولسمه یاشلمه واخلي، دټولي علاقي دپاره په پوره یوایکړقیمت مقررول غلط دی. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۱۰ مخ)

## دعشر له اداء کولو وروسته دغلي خرڅول:

**پوښتنه**: له فصل څخه په خپل وخت غله (حاصل) ترلاسه شول، بیاپوره یوکال غله ایښي وه، نه پخپله ورڅخه کاروا خیستل شواونه خرڅه کړله شوه، نوآیادکال له پوره کیدلووروسته به بیادهغوعشراداء کوي اوکنه؟

**ځواب**: له یوځلي عشراداء کولووروسته بیاترهغه وخته پوري چي خرڅه شوي نه وي نه پکښي دوباره عشرشته اونه پکښي زکوة شته اوکله چي دعشرله اداء کولووروسته غله خرڅه کړله شوه، نو بیاپه ورڅخه ترلاسه شووروپوباندي هغه وخت زکوة واجب دی چي پوره یوکال وربانـدي تیرشي اوکه دغه سړي تردي له مخه دنصاب خاوندوي، نوبیابه ئي هغه وخت اداء کوي کله چي دهغه بل نصاب کال پوره شي که څه هم څوورځي وروسته وي (آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۱۰مخ وفتاوی محمودیه ۳ جلد ۱۰۰مخ)

## که باغ خرڅ شي نوعشر به ئي څوک اداء کوي؟

**پوښتنه**: که یوچاوروسته له هغه څخه خپل باغ خرڅ کړچي میوه ئي تیاره شوه، نوآیاعشربه ئي خرڅونکی اداء کوي اوکه اخیستونکی؟

**ځواب** : په دغه صورت کي په اخيستونکي باندې عشر نشته، بلکه عشر په باغ خرڅونکي باندي لازم دی. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۱۱مخ)

## هغه صورتونه چي عشر پکښي ساقطيږي :

**مسئله** : که پيداوارد ځمکي دخاوند له اختيار څخه بغير هلاک شي، نو عشر هم ساقطيږي او که څه بخره ئي هلاک شي، نو د هلاک شوي برخي عشر ساقط دی او دپاتي برخي عشر اداء کول واجب دی. (بحرالرائق)

**مسئله** : که مالک پخپله پيداوار هلاک کړ، نو پخپله دي د هلاک شوي پيداوار عشر اداء کولو ضامن دی، او هغه ئي په ذمه باندي قرض دی، او که بل چا هغه مال هلاک کړ، نو هر کله چي مالک له هغه څخه ضامن واخيست له هغه څخه دی عشر اداء کړي

**مسئله** : که دچا په ذمه عشر لازم ؤ، نو دهغه په مړينه سره نه بخښل کيږي، بلکه له هغه څخه چي کومه غله پاتي شوي ده له هغي څخه به ايستل کيږي. (شامي)

**مسئله** : که د يو چاد کښت کولو قدرت هم ؤ خو وئي نه کړ، نو عشر ور باندي واجب نه دی. (امداد امسائل زکوة، فتاوی عالمگيري ۴ جلد ۳۴ مخ)

**مسئله** : عشر او خراج کله هم نه سره يو ځای کيږي، که له عشري ځمکي څخه دوخت حاکمانو خراج واخيست، نو (مابينه وبين الله) هغه چاته پکاردی چي عشر اداء کړي. داد احتياط لاره او امر محقق دی.
(فتاوی دارالعلوم ۲ جلد ۱۷۱مخ)

**مسئله** : که دعشري ځمکي فصل تر ريبلو يا ميوي راټولو وروسته ضائع شو يا غله پري برابر شول، نو عشر ئي ساقط شو. (احسن الفتاوی ۴ جلد ۳۵۴مخ)
او څو مره فصل چي پاته شو د هغه به عشر اداء کوي. (محمد رفعت قاسمي غفرله)

دپاره دحدتاکل یوازي اویوازي دشارع علیه السلام حق دی،نو کله
چي داندازوپه تاکلوکي قیاس بي اثره دی،نوبیاڅوک اوڅنګه
کیدای شي چي په نص (دپاک خدای جل جلاله څرګند حکم)
اواجماع سره ثابتي شوي اندازي دي په قیاس سره بدلي کړای شي ؟
(۵) په کوم شي کي چي زیادت کیدای شي په هغه کي کموالی هم
کیدای شي اوبالکل له منځه هم وړل کیدای شي نو که کوم قوم ته
دډیروشتواومالداري دوره ورشي،یا حکومت ته ددولت دترلاسه
کیدلوګټوري لاري پیداشي ،نو آیاپه دغه صورت کي هغه څوک چي
نن دزیاتوالي غوښتنه کوي هغه به سبادزکوة په شرح کي دکموالي
یابالکل له مینځه وړلو غوښتنه ونه کړي ؟
اوپه دي ډول به دزکوة معنویت ،حقیقت اودهغه هغه حیثیت چي
دبدلون نه قبلونکی دی اودهمیشني اسلامي شعار کیدلو کیفیت په
پوره ډول ترپښولاندي شوی وي،اوزکوة به (چي یو سپیڅلی عبادت
دی) دوخت دحکمرانانودلوبو کولویوشی ګرزیدلی وي.
(۶) که یوځلي اسلامي ارګانوته دبدلیدلورابدلیدلو دروازه پرانستله
شي اودشرعي احکاموپه بدلولورابدلولوپیل وشي،نوپه دي سره به
داسلام په ټولوارکانوکي دتغیرلړۍ پیل شي . اوترکومه چي
دعمري،اجتماعي ضرورتونوله پوره والي سره اودنوي دوردحکومت
دارتیاؤله پوره والي سره تړلي ده،نودهغودپاره په زکوة سربیره ټیکس هم
یوه دخل لاره ګڼل کیدای شي. (فقه الزکوة ۱جلد له ۳۲۹ مخ څخه تر ۳۳۱ مخ پوري)

## ایا د نصاب اندازه د تل د پاره ده ؟

دنصاب اندازه دپاک خدای جل جلاله په نزدمعلومه اوټاکلي
ده،داسي نه ده چي څوک پخپله خوښه څنګه او څه وخت څه غواړي

هغسي وکړي او پخپله خوښه په زکوة کي زیادت یا کموالی وکړي، پاک خدای جل جلاله ددغه ټاکلي حق داندازي ښولو کارهم حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته سپارلی دی چي حضور صلی الله علیه وسلم ورباندي دومره ټینګار کړی دی چي اصحابانو ته ئي صرف په ویناسره نه دي ښوولي بلکه دهغه په اړوندئي تفصیلي فرمان ولیکی او حضرت عمرفاروق رضی الله تعلی عنه او عمرو ابن حزام رضی الله تعلی عنه ته ئي وسپاری چي له هغه څخه په ځرګندډول داثابته شوه چي دزکوة نصاب، اوپه له هرنصاب څخه دزکوة اندازه (چي دتل دپاره به همدغه ډول وي) پاک خدای جل جلاله دخپل استاذي په واسطه ټاکلي اوموږته رابنوولي دي. په دي کي په هیڅ یوه زمانه او هیڅ یوهیوادکي دهیڅ ډول کمولو اوزیاتولو حق هیڅ یو چاته حاصل نه دی. (معارف القرآن ۴ جلد ۳۹۴مخ)

## د شریعت اصل مقصد څه دي؟

په شریعت کي چي دشتو خاوندانو ته دخرڅ کولو ترغیب ورکړل شوی دی، په هغه کي هیڅ ډول تهدید نشته بلکه دشریعت اصل مقصددادی چي هغه مال چي دشتمن ترضرورتونو زیات وي او کارئي ورپوري معطل نه وي هغه باید ټول په مسکینانو اوغریبانو باندي تقسیم کړي، خولکه څنګه چي هرڅوک پوهیږي دومره همت هرچانشوای کولای، نوځکه داسي کول شریعت لازم ونه ګرزول بلکه صرف انسانانو ته ئي داور خوښه کړه اودي ته ئي تشویق کړل چي هرڅومره مال ستاسو ترضرورتو وزیات وي هغه ټول دخپل خدای جل جلاله په لاره کي ولګوئ. ﴿وَيَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلِ الْعَفْوَ﴾ (بقری سورة ۲۱۹ آیت)

له دي ځخه معلومه شوه چي دزکوة په اندازه ،تاکلو او نورځه کي هيڅ ډول بدلون امکان نه لري او دامت اجماع هم په ذي سره ده.
او که څوک دزيادت ورکولو ارزولري هغه دی په دغه آيت باندي عمل وکړي (هغه څه چي دهغه ترضرورت اصليه زيات وي هغه دي ټول دپاک خدای جل جلاله په لاره کي ورکړي، چي پاک خدای جل جلاله ئي په بدله کي ورته اجراو ثواب ورکړي. (محمد رفعت قاسمي غفرله)

**آيا خدمت کونکي (يا فلاحي) داري ته زکوة ورکول څنګه دی؟**

**پوښتنه**: کومي خدمتي اداري ،(مرستندويه ټولني) يابي عوضه مرستي کونکي اداري ته دزکوة دروپو په ورکولو سره زکوة اداء کيږي او کنه؟

**ځواب**: مرستندوي ټولني (اداري) چي دزکوة مال يا روپۍ جمع کوي، نو دوئ دزکوة دمالونو يا روپو مالکاني نه بلکه دزکوة ورکونکو وکيلاني يا نمائندګاني دي ترڅو چي دزکوة مال يا روپۍ له هغو سره وي، نو داسي دي لکه له خپلو مالکانو سره چي وي؛ که دغه اداري دزکوة روپۍ په مناسبو ځايو ولګوي نو دزکوة ورکونکو زکوة اداء شوي دي او که ئي په سمو ځايو کي ونه لګوي نو بيا زکوة نه دی اداء شوی. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۰۲ مخ) -

**مسئله**: دکومو ادارو او ټولنو په اړه چي ددي پوره اطمنان موجود وي چي دزکوة روپۍ يا مال په سم ډول او مناسب ځای کي مصرفوي، هغو ته زکوة بايد وسپارل شي. ،ودکومو په اړوند چي دغه اطمنان موجود نه وي نو هغه دزکوة په ورکولو سره زکوة نه اداء کيږي او زکوة ورکونکي ته پکار ده چي دوېم ځل خپل زکوة اداء کړي. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۰۲ مخ)

**مسئله**: دغو ادارو ته دورسپارل شوي زکوة په مال يا روپو کي دمالک په خير دتصرف کولو حق نشته بلکه صرف تر

محتاجانو او مسکینانو دو رسولو او و یشلو حق له دوئ سره دي خو که دخاوندانو له خوا اورته د تصرف اجازه شوي وي بيائي تصرف کول حق دی. (آپ کي مسائل ۴ جلد ۴۰۲مخ)

## د يني مد رسو ته دزکوة ورکول څنگه د ی؟

**مسئله** : ديني یا عربي مدرسو ته زکوة ورکول نه يوداچي جائزدی بلکه ډیربهتردی؛ ځکه چي پکښي دغریبانو سره دمرستي کولو ترڅنګ له ديني علمونو سره هم يوه مرسته او دهغو سرپرستي ده.

(آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۰۴مخ وفتاوی محمود یه ۳جلد ۴۰مخ)

## ا نجمنو یاتنظیموته زکوة ورکول څنگه دی؟

**مسئله** : دزکوة په مال یاروپو کي داضروري دی چي مسکین یامحتاج به دهغه مالک گرزول کیږي بغیرله دي زکوة نه اداء کیږي؛ نوکه په انجمن کي طالبان محتاجان وي نودزکوة ورکول روادی. اودانجمن ملازمینو اوواعظینوته په تنخواه کي دزکوة روپۍ ورکول روانه دی په دي کي باید ډیر احتیاط وشي. دزکوة مال باید محتاجانو ته بلاعوض په ملک کي ورکړل شي. دانجمن په بیلابیلو اخراجاتو کي دزکوة دمال په لګولو سره زکوة نه اداء کیږي او اسلامي مدرسوته چي کومي دزکاتونوروپۍ یا مالونه راځي هغه هم خاص دطالبانو اومسکینانو دخوراک اوڅښاک دلګښت دپاره وي، استاد، ملازمانوته په تنخواه کي ورکول، اويائي په ودانیو اونورڅه کي لګول روانه دی. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد بحواله ردالمختار۲جلد ۷۵مخ)

**مسئله** : داسي اداره (انه من ) جوړول چي دزکاتونو مالونه اوروپۍ په مسکینانو ویشي روادی.

## دغیر مسلم په لاس د زکوة ویشل:

**مسئله:** دزکوة ویشلو کارغیر مسلم ته سپارل روانه دی ، ځکه چي حتماً دهغه له امله دمسلمانانو سپکاوی اوپه مسلمانانو باندي دکافرمشري رامنځته کیږي په دغه ډول دزکوة ورکونکي زکوة نه دی اداء شوی اوذمه ئي دانجمن جوړونکو په غاړه ده. په دغه کاربانـدي بایدکافریافاسق یادزکوة په مسائلو ناخبرونه ټاکل شي. (فتاوی رحیمیه ۵جلد ۱۵۸مخ)

## په زکوة کي باید مال ورکړل شي او که دهغه قیمت؟

**مسئله:** دزکوة په ورکولو کي دزکوة ورکونکي اختیاردی، یعني هغه شي په زکوة کي ورکوي چي زکوة وربانـدي واجب شوی دی اوکه دهغه قیمت ورکوي اوقیمت دهغي زماني داعتباروړدی په کومه کي چي زکوة ورکول کیږي که څه هم دوجوب دزماني په اعتبارهغه وخت دشي قیمت پورته شوی یاراولیدلی وي ؛ دمثال په ډول دکال په اخیرکي چي زکوة فرض کیدی دیوي وزي قیمت دري سوه روپۍ ؤخوهغه وخت چي زکوة ایستل کیدی دهغي قیمت څلورسوه ته پورته شو یادووسوو ته راټیټ شو ،نوزکوة ورکونکي به څلور،یادوه سوه روپۍ په زکوة کي ورکوي. (علم الفقه ۴جلد ۲۹مخ)

## په زکوة کي څنګه مال باید ورکړل شي؟

**مسئله:** که ټول عمده مال وي ،نوپه زکوة کي هم باید عمده مال ورکړل شي. اوکه ټول مال خراب وي نوپه زکوة کي هم باید خراب مال ورکړل شي؛اوکه نیمایي مال عمده وي اونیمایي خراب وي ،نوپه زکوة کي بایدمتوسط (میانه) مال ورکړل شي. کـه ئي دکمي درجي مال ورکړچي کموالي پکښي وو ،نودهغه کموالی په بدله کي دي دهغه

قیمت ورکړي او که ئي دلويي درجي مال ورکړنو بیا دي دزیادت قیمت ورڅخه بیرته واخلي. په دغه صورت کي دزیادت اخیستل او دکمبود پوره کول په قیمت سره روا دی. (علم الفقه ۴جلد ۳۰مخ)

## ا یا حکو مت کولای شي چي زکوة کاټ کړي؟

**مسئله**: له بانکونو څخه دحکومت له خوا دزکوة کاټولو په کړنلاره باندي بايد له سره غور وشي. دزکوة ورکونکو دزکوة اداء کیدل په هغه ډول چي دوئ ئي کوي ډیرزیات ترشک لاندي دي، نو ددي دپاره چي دمحترمو زکوة ورکونکو په یقیني ډول زکوة اداء شوی وي، نو باید دوئ پخپل لاس خپل زکاتونه اداء کړي (امداد مسائل زکوة ۹۰مخ)

## استعما ل شوی شی په ز کو ة کي ور کو ل څنګه دی؟

**پوښتنه**: یو چایو شی شپږمیاشتي کارؤوروسته ئي پخپله خوښه دزکوة په نیت په نیمایي قیمت مسکین ته ورکړ، خو هغه ته ئي داونه ویل چي زه دغه شی په زکوة کي درکوم نو په دي ډول ئي زکوة اداء شوی دی او کنه؟
**ځواب**: که په بازارکي هم دغه شی په دغومره قیمت (چي دشي مالک ورته ټاکلی دی) پلورل کیدای شوای، نو بیا ورباندي زکوة اداء شوی دی. (آپ کی مسائل ۳جلد ۳۸۲مخ)

## د نه خرڅيد و نکي شي په زکوة کي ورکول څنګه دی؟

**پوښتنه**: له یو دکاندار سره داسي شی ؤچي نه خرڅیدی آیا هغه کولای شي دغه شی په زکوة کي ورکړي؟
بي ارزښته او دریدلی (ګوته) شی په زکوة کي ورکول داخلاص خلاف دی. نو څومره قیمت چي دهغه شي په بازارکي وي په هغه قیمت ئي په زکوة کي ورکول صحیح دی. خو دابه ډیره نامردي وي.

## خراب شي په زکوة کي ورکول څنګه دی؟

**مسئله**: بعض خلک په زکوة کي داسي شیان ورکوي چي (رد شوي او له کاره لویدلی وي، دمثال په ډول د کتابو تجاران داسي کتابونه په زکوة کي ورکوي چي دخرڅولو وړتیانه لري د کپړو خرڅونکي زړي او خیري شوي کپړي په زکوة کي ورکوي غله خرڅونکي ترخه، زاړه او تپ شوي اوړه ورکوي دغه رنګه نور تجارت کونکي. نو هغه حساب چي دوی دغه شي ته لګولی دی که په بازار (مارکیټ) کي په دغه قیمت نشوای پلورل کیدای نو بیا زکوة هم نه دی وربانديي اداء شوی. څومره چي تردغه لګول شوي قیمت دبازار قیمت کم دی هغومره دزکوة ورکونکي په ذمه پاته دی مګر زکوة ورکونکي باید دا یاد ولري چي څومره دهغو په کارکي د اخلاص کمی وي هغومره به ئي دقبلید لو هم کمی وي. (امداد مسائل زکوة ۴۲ کتاب الفقه ۱ جلد ۹۷۳ مخ)

## د زکوة د روپو پخپله استعما لول

**پوښتنه**: که یو چا دزکوة روپۍ له نورو څخه جلا کړي، مګر تر جلا کولو وروسته ئي ورته ضرورت پیدا شو، نو آیا هغه کولای شي دزکوة روپۍ قرض ورواخلي؟

**ځواب**: دزکوة روپۍ څو ترهغه وخته پوري چي چاته ئي ورکړي نه وي دهغه ملک دی نو ځکه ئي استعمال هم ورته روا دی.

(آپ کي مسائل ۳ جلد ۴۱۴ مخ وفتاوی محمودیه ۱۱ جلد ۱۴۲ مخ)

**مسئله**: ترهغه وخته پوري چي دزکوة دپاره جلا کړل شوي روپۍ مسکینانو ته نه وي ورکړل شوي، نو ترهغه وخته پوري ئي مالک دنصاب خاوند دی. (فتاوی دارالعلوم ۶ جلد ۲۱۸ مخ شامي ۲ جلد ۱۴ مخ)

## د سود له روپو څخه زکوة اداء کول څنګه دی؟

**مسئله**: که د سود روپۍ باید د صدقې او ثواب په نیت چا ته ورنکړلی شي بلکه بغیرله د غونیتونو څخه محتاجانو او مسکینانو ته ورکړلی شي. د سود په روپو باندې زکوة نه اداء کیږي. (اپ کي مسائل ۲ جلد ۳۹۲مخ احسن الفتاوی ۴جلد ۲۸۲مخ)

## په زکوة کې کومه کرنسۍ (نوټ) داعتبار وړدی؟

**پوښتنه**: یو له وطنه څخه لیري څوک (مهاجر) غواړي خپلو وطنوالو مسکینانو ته دزکوة روپۍ ورولیږي. مګر د دې ځای او هغه ځای روپۍ (سکې) سره فرق لري د مثال په ډول که له دې ځایه څخه (۵۰/۰۰۰) روپۍ ولیږي نو هلته (۴۰/۰۰۰) روپۍ رسیږي. نو تاسو راته داوښائي چې زکوة د(۵۰/۰۰۰) زرو روپو اداء شوي دي او که د څلویښتو زرو؟ دغه رنګه که مونږ په خپل هیواد کې د هیواد بلې داسې برخې ته چې کرنسۍ ئې له مونږسره فرق لري دزکوة روپۍ لیږو، نو زکوة به موپه څه ډول اداء شوي وي؟

**ځواب**: زکوة ورکونکې چې د کوم هیواد له کرنسۍ څخه زکوة اداء کړی دی هغه کرنسۍ داعتبار وړده، د هغه هیواد په کرنسۍ سره ئې چې د هرڅومره مال زکوة اداء کړ د هغومره مال زکوة اداء شوی دی. د هغه بل هیواد کرنسۍ که ترې کمه وي او که زیاته. (آپ کي مسائل ۳جلد ۳۹۳مخ)

## په غیر ملکي سکې سره د زکوة اداء کولو طریقه:

**مسئله**: په زکوة اداء کولو کې داضروري ده چې د زکوة اجبه اندازه به مستحقینو (مسکینانو) ته ورکوي او د هغو په وررسولو چې کوم لګښت کیږي هغه به د زکوة اداء کونکې په غاړه وي، هغه لګښت د زکوة له روپو څخه پوره کول روانه دی، ځکه چې په دې سره په

واجب شوي اندازه کي کموالی راځي اوزکوة په پوره ډول نه اداء کیږي. (فتاوی محمودیه ۱۲جلد ۱۴۱مخ)

## تر وار له مخه زکوة اداء کول:

**مسئله**: دنصاب ترخاوند کیدلو وروسته او دکال ترپوره کیدلو له مخه دزکوة اداء کول روادی مګردنصاب ترخاوند کیدلو له مخه روانه دی.
دتروخت لـه مخـه زکـوة ورکولو دپاره ددریو شرطونو خیال ساتل ضروري دی. لومړی داچي دوار لـه مخـه زکوة ایستلو په وخت بـه دنصاب کال پیل شوی وي دوهم داچي دکوم نصاب زکوة چي هغه تروخت له مخه اداء کوي هغه به دکال ترپایه له مینځه نه ځي اودریم شرط دادی چي اصلي نصاب به دکال په مینځ کي نه ضائع کیږي.
ددي صورت دادی: چي لـه یو چاسره دسپینو یاسروزرو یادتجارت دمال ترنصاب لږکم څه موجودؤاو هغه ئي ترپوره کیدلو له مخه زکوة اداء کړاو ترزکوة اداء کولو وروسته نصاب پوره شو؛ یا داسي ؤ چي له چاسره دوه سوه درهمه یاددووسوو درهمو تجارت مال ؤ، هغه دزکوة پنځه درهمه اداء کړل اودهغو پنځو درهمو په لیري کیدلو سره نصاب پوره نشو او په ناپوره نصاب باندي ټول کال تیرشو. (طحاوي)
په څه ډول چي دیو نصاب زکوة تروخت له مخه ورکول روادی همدغه رنګه دزیاتو نصابونو زکاتونه تروخت له مخه ورکول هم روادی. (فتاوی قاضي خان)
**مسـئله**: لـه یو چاسـره دوه سـوه درهمـه ؤمګرهغـه تروخـت لـه مخـه دزرو درهمو زکوة چاته ورکړ، نوکه په دغه کال کي دننه ورتـه نورمال راغی یائي په دغه سرمایه باندي دومره روپی. وګټلي چي دنصاب دکال پوره کیدلو پروخت ورسره زر درهمه موجودؤ، نوتروخت له مخه

ایستلی زکوة ئي اداء شوی دی اوله ذمي څخه ئي دزرو درهمو زکوة ساقط شوی دی او که داسي وشول چي دتروخت له مخه زکوة ورکولو وروسته کال پوره شو خو زر درهمه لاموجود شوي نه ؤاو تر کال پوره کیدلو وروسته زر درهمه پوره شول او یاد غو مره قیمت مال ئي ترلاسه کړ، نوداوخت بیاهغه تروخت له مخه زکوة دبل کال دمال دپاره کافي نه دی. دنوي مال یارو پوله ترلاسه کولو وروسته چي کله بیا دنصاب کال پوره شي ،نوزکوة ورباندي واجب دی. (بحرالرائق)

**مسئله** : که له یو چاسره زرروپی، موجودي وي خوهغه په دي نیت ددووزرورو پوزکوة ورکړچي که په دغه روان کال کي ماته زرنوري راشي نودابه دهغوتروخت له مخه (پیشکي) زکوة شي، او که رانغلي، نوبیادراروان کال دزرورو پوزکوة دی ،نودغه نیت ئي صحیح کیږي.

**مسئله** : له یو چاسره څلورسوه درهمه ؤاودهغه داخیال شوچي پنځه سوه درهمه دي ادپنځه سوودرهموزکوة ئي اداء کړ، وروسته ورته معلومه شوه، نودهغه دپاره ددي چانس شته چي په زکوة کي زیاتي ورکړل شوي روپی، دراتلونکي کال په زکوة کي ولګوي.

(محیط السرخسي وفتاوی عالمګیري ۴جلد ۱۵مخ)

**مسئله** : که یو څوک دخپل مال زکوة ترکال پوره کیدلو له مخه ورکړي اویادڅوکلونو زکوة تروخت له مخه اداء کوي، نودا ورته روادی. (علم الفقه ۴جلد ۲۶مخ)

## که یو غریب ته تروخت له مخه زکوة ورکړل شواو بیا هغه مالدار یامړشو؟

**مسئله**: که کوم محتاج ته تروخت له مخه (پیشکي) زکوة ورکړل شوی ؤاو تر کال پوره کیدلو له مخه هغه محتاج سړي غني (شتمن (او یامړشواو یا (نعوذبالله) له اسلامه څخه بهرشو، نو هغه زکوة چي هغه ته ورکړل شوی ؤ هغه صحیح دی او اداء شوی دی. (عالمگیري ۴جلد ۱۵مخ)

**مسئله**: ځکه چي دزکوة یا عشر په ورکولو کي هغه وخت داعتبار وړ دی چي فقیر ته ورکول کیږي؛ او دا چي په راتلونکي کي څه پیښیږي هغو ته اعتبار نشته. که دزکوة ورکولو پر وخت هغه مسکین ؤ، نو بیا دزکوة په اداء کي هیڅ شک نشته. (عالمگیري ۲جلد ۴۸مخ)

## دزکوة له روپو څخه قرض ورکول:

**پوښتنه**: زه هره میاشت دزکوة روپۍ له خپل مال څخه جلا کوم او درمضان المبارک په میاشت کي ئي مسکینانو ته ورکوم، که یو څوک را څخه قرض وغواړي، نو زه کولای شم چي دزکوة له روپو څخه ئي ورکړم؟

**ځواب**: تر څو پوري چي دزکوة روپۍ له تاسره وي تر هغه وخته ستا په ملکیت کی دي، نو ته چي ورباندي هر څه کول وغواړي هغسي کولای شي. (آپ کي مسائل ۳جلد ۳۸۰مخ)

## له موجود وروپو څخه به زکوة ورکوي او که له نورو څخه؟

**پوښتنه**: له زید سره دوه سوه روپۍ دي، نو آیا له دغو دوو سوو څخه به پنځه روپۍ په زکوة کي ورکوي او که به هغه دوه سوه روپۍ پوره له

ځان سره ایږدي او دزکوة دپاره به له کوم بل ځای ځخه په قرض یا بل ډول روپۍ راپیدا کوي او بیا به ئي په زکوة کي ورکوي؟

**ځواب**: دادزید خوښه ده چي دهغو (دوو سوو) روپو ځخه دزکوة پنځه روپۍ ورکوي او که له بل ځایه ئي ورته پیدا کوي، او که له هغه سره تردوه سوه نوري زیاتي وي نو دهغو په ورکولو سره هم زکوة اداء کیږي، دزکوة دپاره دقرض اخیستلو ضرورت نشته.

(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۹۵مخ بحواله ردالمحتار ۲جلد ۴۱مخ)

**یادونه**: که ددوو سورو پو لرونکي دبل نصاب خاوندنه وي نه صرف په دوو سوو روپو باندي تر هغه وخته زکوة نشته تر څو چي ورباندي دوه پنځوس نیمي تولي سپین زرنشي اخیستل کیدای. (محمدرفعت قاسمي غفرله)

## که چاته دزکوة په ورکیدلو او نه ورکید لوکي شک پیداشي:

**مسئله**: که یو چاته دزکوة په اداء کولو او نه اداء کولو کي (چي اداء کړي به مي وي او کنه) شک پیداشو نو احتیاطاً باید دوهم وار زکوة وباسي. (فتاوی عالمگیري ۴جلد ۲۴مخ و علم الفقه ۴جلد ۳۱مخ)

## په فِي سَبِيلِ الله کي کوم، کوم خلک داخل دي؟

**پوښتنه**: په (فِي سَبِيلِ الله) کی دلګښت کولو کوم، کوم ځایونه داخل دي؟ آیا دتبلیغ او اسلام ساتونکو تنخواا و دخوراک او سفر مصارف په هغو کي داخل دي؟

**ځواب**: بي له شکه چي په فِي سَبِيلِ الله کی دبدائع نومي کتاب دلیکوال رحمة الله علیه له تفسیر سره سم دخیرد لګښت ټول ځایونه داخل دي مګر کوم شرطونه چي دزکوة داداء دپاره دي دهغو تولولحاظ ساتل ضروري دی هغه دادی چي بلا عوض به دزکوة دمال دمحتاج ملک ګرزول کیږي، نو ځکه باید لومړی ورته دتملیک حیله

جوړه شي ،ترڅو له هغه وروسته ئي په تبليغ ،د كاركونكو په تنخواه اونوروكي لګښت رواشي .(فتاوى دارالعلوم ٢جلد ٢٨٢مخ په حواله ردالمختارباب المصرف ١جلد ٨٣مخ)

**مسئله** : په زكوة كي چي داشرط دى چي دزكوة مال به بلا عوض دمسكين ملک ګرزول كيږي داپه هيڅ وخت اوهيڅ ډول پرينښودل كيداى نشي (فتاوى دارالعلوم ٢جلد ٢٩٠مخ)

دفى سبيل الله دلفظ لفظي معنى ډيره عامه ده ،كوم كارچي دپاک خداى جل جلاله درضاترلاسه كولودپاره كيږي هغه ټول ددغه مفهوم له مخي په في سبيل الله كى داخل دي هغوخلكو(چى درسول الله صلى الله عليه وسلم دتفسيراو بيان اودامامانودتفسير څخه بغيردقرآن كريم په صرف لفظي ترجمه پوهيږي) دلته غلطي كړي اوكومي ئي چى دفي سبيل الله دلفظ په ليدوسره دزكوة په لګښت ځايونو كي هغه ټول شيان ورګډ كړي اوګڼوي چي له يو نه يو حيثيت څخه نيكي ياعبادت وي. لكه دمسجدونو ،مدرسو ،شفاخانو ،مسافرخانواوداسي نورورغول. دژوروځاګانو ،پلونواوسړكونوجوړول چي داټول سراسرغلط اوداجماع امت په ټكركي دي. اوكوموعلماء كرامو(دفقهي پوهانو) چي طالبان(داسلامي علوموزده كونكي) يانوردنيكوكاروكونكي په دي كي ورګډ كړي دي ،نوهغه په دي شرط چى مسكينان او محتاجان به وي اودابښكاره خبره ده چى محتاج اوفقيرخود زكوة دلګښت ځايونوترټولولومړى ځاى دى ،هغه كه دفي سبيل الله په مفهوم كي ورګډ نكړاى شي هم دزكوة مستحق دى. كه په يوه خبره باندي ژورفكروشي نوهغه به په دى مسئلي دپوره پوهاوي دپاره كافي شي هغه داده چي كه دزكوة په مسئله كى دومره عاموالي

پروخت وي چې په ټولو عبادتو او هرډول نیکیو کې خرڅ کول په هغه کې داخل وي، نو بیا په قرآن کریم کې داتو(۸) لګښت ځایونو بیان (معاذالله) بې ځایه او چټې کېږي. او د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک ارشاد چې مخته هم ذکر شوی دی سپارلي، بلکه پخپله ئې ورته (۸) ځایونه ټاکلي دي، نو که د في سبیل الله په مفهوم کې ټول طاعات او عبادات او نیکئ داخلي شي او په هریوه کې د زکوة مال لګول کیدای شي، نو (معاذالله) د حضور صلی الله علیه وسلم د غه ارشاد مبارک خو بیا بالکل غلط شو. نو اوس په ډیره اسانئ سره کولای شو دا معلومه کړو چې د في سبیل الله له لفظ څخه چې ناخبرو خلکو ذهن ته عاموالی ورځی دا د الله جل جلاله مراد نه دی، بلکه مراد هغه دی چې د حضور صلی الله علیه وسلم له بیان او د صحابه کرامو له تصریحاتو څخه ثابت دی. (دلا نبه تفصیل دپاره د تفسیر معارف القرآن ۴ جلد ۴۰۸ مخ وګورئ)

## د لګښت ځایونو قدرتي ترتیب :

د زکوة دپاره چې د لګښت اته (۸) ځایونه په ترتیب سره بیان شوي دي د کم فکر کولو رو سته کولای شئ معلومه کړئ چې دا قدرتي ترتیب دی. تر ټولو له مخه د دوو هغو ټولیو یادونه شوي ده چې په استحقاق کې تر ټولو زیات ړومبی دي یعني، فقیران او مسکینان، ځکه چې د زکوة لو مړی مقصد له هغو سره مرسته کول دي.

دریم وار د هغه چا یادونه شوي ده چې د هغو له موجودګي څخه بغیر د زکوة نظام پخپل حال نشي پاته کیدای یعني (العاملین علیها) په څلورمه درجه کې (المؤلفة قلوبهم) راغلي دي چې د هغو روزنه لاس ته راوړل، د ایمان د تقویت او د حق د خیراو دي د پاره

ضروري ؤ. په پنځمه او شپږمه درجه د غلامانو ازادول او قرضدارانو ته له قرضو څخه اوږي ورسپکول یادشوي دي چي نسبت مختنیو ته موقت او محدود ؤ.
په اووم قدم کی که د مستحقینو پورته ذکر شوی مال اندازه ډیره زیاته شویوي، نود هغه وخت او حال د پاره د(في سبیل الله ) یادونه شوي ده چي یوه جامع او حاوي دروازه ده. په اخیرکي د(ابن السّبیل ) ذکرشوی دی ځکه چي په پخواکي داترټولو کم، او داندازي له لحاظه ډیر محدود د پیښیدونکی لګښت ځای ؤ. (حقیقت زکوة ۲۵ مخ)

## ایا دزکوة مال به په دغو ټولولګښت ځایونو ویشل کیږي ؟

**پوښتنه**: دلګښت ځایونوله بیان څخه مقصد دادی چي وجوباً بایددزکوة مال په دغو ټولو لګښت ځایونوویشل شي، او که داچي په دغو ځایونوکي کولای شئ دزکوة مال ولګوئ؟

**ځواب**: په دې اړوند دفقهاؤ اختلاف دی، مګرد جمهورو مذهب دادی چي په یووخت ئي په ټولو باندي ویشل ضروري نه دی، څنګه چي وخت، حالت او ضرورت وي له هغو سره سم بایدولګول شي او دغه مذهب دقرآن مجید او حدیث شریف له تصریحاتواوروحیي سره برابردی ،په څلوروامامانوکي صرف دامام شافعي رحمة الله علیه قول له دي څخه بدل دی (حقیقة الزکوة ۲۴ مخ. کتاب الفقه علی مذهب الاربعه ۱جلد ۱۰۱۳ مخ وعلم الفقه ۴ جلد ۴۴ مخ)

## دزکوة وصولو نکو اصول اوفضائل :

داسلامي حکومت له طرفه چي دزکوة راټولو دپاره کوم خلک لیږل کیږي دهغو دپاره حضورصلی الله علیه وسلم ډیرهدایات فرمایلي دي په هغوکي ډیري هدایات دهغه چادپاره هم دي چي

دمسلمانانوکوم نمائنده تنظیم یاکومي اسلامي اداري (مدرسویامکاتبو) ته دزکوة راتولولودپاره سفرونه کوي که هغه خلک په سم ډول خپله ذمواري اداء کړي نوپه لاندینیو احادیثو شریفوکي ورته مختلفي خوشخبرئ اوزیري ورکړل شوي دي او څوک چي په دي کارکي بي پروایي کوي اودشریعت دحدودو خیال نه ساتي، نودهغو دپاره وعیدونه بیان شوي دي.

دحضرت دافع بن خدیج رحمة الله علیه څخه روایت دی چي حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل «دصدقاتوراتولونکي چي په سم ډول دپاک خدای جل جلاله دپاره خپل کارپه مخ بوزي نوترڅو چي واپس خپل کورته نه وي راګرزیدلي ترهغو دپاک خدای جل جلاله په لاره کي دجهاد کونکو په څیردي. له حضرت ابوهریره رضی الله تعلی عنه څخه روایت دی چي رسول صلی الله علیه وسلم وفرمایل ،، بهترینه ګټه دعامل ده په دي شرط چي هغه په خیرخواهي اوسم ډول کاروکړي.

**تشریح** : په کوم کارکي چي دانسان دنه ختلو امکان او ځایونه ډیروي له هغه څخه که انسان سم اوبي داغه راووزي نودهغه په اجراوثواب برسیره ددغه آزماینښت څخه دسلامت راوتلوله امله هم ورته دقدرپه سترګه کتل کیږي، تردي چي دانسان لاس ته ډیرمالونه اوښته ورځي اوکه دهغه په زړه کي دالله جل جلاله ویره نه وي، نوپه هرهرقدم کي ورته ستونځي مخ ته راځي. په دغه رنګه مراحلوکي که انسان په تقوی اوپرهیزګاري باندي تکیه وکړي اودپاک خدای جل جلاله دحکمونو خیال وساتي، نو په یقین سره دغه دنفس په خلاف یولوی جهاد دی.. (الترغیب والترهیب ۲جلد ۱۹۴مخ)

## آیا زکوة راټولونکي هدیه قبلولای شي؟

حضرت عبدالله بن بریده رضی الله تعلی عنه دخپل پلار په حواله نقل کوي چي حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چي مایو څوک په څه کارباندي مقرر کړاوهغه ته مي تنخواهم ورکړه ،ترهغه وروسته چي بیاهغه نور څه اخلي ،داخیانت دی.

په راټلونکي حدیث شریف کي دپورتني حدیث شریف لا زیات وضاحت شوی دی: حضرت ابوحمید ساعدي رضی الله تعلی عنه فرمائي چي: حضور صلی الله علیه وسلم داز دقبیلي یو سړی (لتیبه) دزکوة راټولولودپاره ولیږو ،کله چي بیرته راغی نوحضور صلی الله علیه وسلم ته ئي دمال ورسپارلوپروخت وویل ،دغه ستامال دی اودغه ماته په هدیه کي راکړل شوی دی رسول صلی الله علیه وسلم دخپلي حکیمانه طریقي له مخه سمدستي هغه ته څه ونه ویل بلکه خطبي ته ولاړشواودحمد اوثناء ویلووروسته ئي وفرمائل:

زه له تاسو څخه یوڅوک له دغو کاروڅخه دیوه دپاره ټاکم دکوموچي پاک خدای جل جلاله زه ذمواړکړزولی یم اوبیاهغه راځي اوماته وائي چي داستادي ،اوداهغه څه دي چي ماته په هدیه کي راکړل شوی دی ؛ هغه له خپل موراوپلار سره په کورکي ولي نه کښینست ،ترڅوکه هغه رښتیاسچه وای نودهغه هدیه به هغه ته کورته راتلای ،زمادي په خدای قسم وي چي له تاسو څخه هرڅوک په ناحقه څه شی اخلي نوخامخابه دقیامت په ورځ په داسي حال کي راشي چي هغه به یي په شاوي ،نوداسي دي نه وي چي زه له تاسو څخه یوڅوک دقیامت په ورځ په داسي حال وپیژنم چي هغه خدای جل جلاله سره

په داسي حال کي مخ کيږي چي غږمبيدونکي اوبن يارمباړي وهونکي غوبي اوداسي نورئي پشااخيستي وي له هغه څخه وروسته حضور صلی الله عليه وسلم خپل دواړه لاسونه پورته کړل تردي چي حضور صلی الله عليه وسلم دبغلو سپينوالی ترستر گو کيدواو فرمائل ئي: ای الله جل جلاله ! آياماستا پيغام بند گانو ته ورساؤ. (ترغيب ۱۲۹مخ)

**تشريح** : کله چي يو څوک په حکومتي يابله محکمه کي وي چي ورسره دعامه خلکو کاروباروي هغه ته هم چي تحفي ورکولي کيږي ډيري دهغوددي دپاره وي چي شايد کله به مي له دغه څوکئ لرونکي سره کارپيداشي. (ترغيب ۱۷۹مخ)

مطلب دادی چي زکوة راټولونکي ته چي هديي او تحفي ورکولي کيږي هغه دده دذات په وجه نه بلکه دهغه دڅوکئ په وجه ورکولي کيږي. که هغه دزکوة راټولولو په څوکئ نه وای ناکل شوی او پخپل کورکي ناست وای، نوآياهغه ته به چاتحفي ورکړي وای ؟له دي څخه معلومه شوه چي که زکوة راټولونکي ته دهغه کوم خپل يادوست تحفه ورکړي، نو بايد ديته وکتل شي چي که دغه تحفه هغه ته د هغه دڅوکئ (وظيفي) له وجي نه، بلکه دخپل پخواني نزديکت او مراسمو په وجه ده اويادادهغوهميشني معمول دی، نو دغه تحفه دهغه دپاره روا ده. او که دتحفي ورکول صرف دهغه دڅوکئ ياوظيفي له خاطره وي، نو ددغه رنگه تحفي اخيستل کله هم هغه ته روا نه ده.
(مظاهرحق مديد۲جلد ۴۹۲مخ)

## عاملین څوک دي؟

له عاملینو څخه مراد هغه خلک دي چې د اسلامي حکومت له خوا د دي د پاره ټاکل شوي وي چې له خلکو څخه صدقې، زکاتونه، عشر او نور راټول کړي او بیا یې بیت المال ته وسپاري، څنګه چې دغه خلک خپل ټول وخت په دغه خدمت کې تیروي، نو ځکه د هغو ضرورتو ذمه واري د اسلامي حکومت په غاړه ده. د قرآن کریم په دې آیت شریف (العاملینَ عَلیها) سره دوئ یو له اتو لګښت ځایونو د زکوة څخه ګرزول شوي دي او ویل شوي دي چې د دوئ د خدمت حق به د دغه زکوة له مال څخه ور کول کیږي.

په دې کې اصل دادی چې پاک خدای جل جلاله له مسلمانانو څخه د زکوة او صدقو راټولو (اخیستلو) فریضه براه راست حضور صلی الله علیه وسلم ته سپارلیي ده، چې ذکریې د دغه سورة په یو آیت شریف (خذ من اموالهم صدقة) کې راغلي دي چې معنی ئې ده،، واخله ته صدقه ای محمد صلی الله علیه وسلم له مالونو د مسلمانانو څخه،، د دغه آیت له مخې د مسلمانو په امیرانو د غه فریضه اچوله کیږي چې هغه باید زکاتونه او صدقې راټولې کړي. او بیا داهم څرګنده خبره ده چې امیر نشي کولای په ټول هیواد کې بغیر له نورو مرسته کونکو دغه چاره ترسره کړي، نو ځکه د هغه د مدد کارانو ذکر په (والعاملین علیها) سره شوی ده. د دغه آیت شریف په عملي کولو سره حضور صلی الله علیه وسلم ډیر اصحابان رضی الله تعلی عنهم د زکوة راټولولو د پاره ټاکلي ؤ او بیا یي د هیوادونو هري برخي ته لیږلي ؤ او د آیت له لارښووني سره سم ئي

دهغو دخدمت حق دزکوة له راټول شوي مال (روپو) څخه ورکړی ؤ په دوئ کي هغه اصحابان رضی الله تعلی عنهم هم شامل ؤچي غنيان ؤ يواځي زکوة راټولونکو ته دکارپه بدل کي دزکوة مال ورکول روادی، ځکه چي داپه آيت شريف سره ثابت دی بل هيڅ يو ځاته په هيڅ يووخت اوهيڅ يو ډول دکارپه بدل کي دزکوة مال نشي ورکول کيدای.

**ددووپوښتنوځواب:**

دلته دوه پوښتني پيداکيږي لومړئ داچي ولي ياپه څه ډول دزکوة مال دخدمت په بدل کي ورکړ شو؟

دوهم داچي ولي ياپه څه ډول شتمنو (غنيانو) ته دزکوة مال ورکړ شو؟

ددغودواړوپوښتنوځواب يودی چي دعاملينوحيثيت بايد وپيژندل شي. هغه دادی چي دوئ دفقيرانووکيلان دي اوپه دي خوټول پوهيږوچي دوکيل قبضه داصل (مؤکل) د قبضي په حکم کي دی. که يوڅوک دخپلوقرضود اخيستلو دپاره وکيل وټاکي اوقرضدارهغه قرض وکيل ته ورکړي نوهغه دوکيل ترقبضي لاندي شول قرضدارورڅخه خلاص دی. نوکله چي دصدقواوزکاتو راټولونکي دفقيرانو دوکالت دحيثيت په لرلو سره زکاتونه اوصدقي راټولوي، نو دورکوونکوئي زکوة اداء شوی دی؛ داوخت داټول شته دهغوفقيرانوملک دی چي دوکيلانوله طرفه ورته راټول کړل شوي دي، نوهغه روپۍ چي عاملينوته ورکولي کيږي هغه دمالدارانوله طرفه نه، بلکه دفقيرانوله طرفه ورته ورکولي کيږي اوفقيرانوته په دغه راټول شوي مال کي دهرډول تصرف اختيارشته.

## عاملین چا دفقیرانو وکیلان کړي دي؟

پاته شوه دا پوښتنه چي دغه عاملین څه ډول دفقراؤ وکیلان شول ؟ ددي ځواب دادی چي دا اسلامي حکومت مشرپه قدرتي ډول دالله جل جلاله له طرفه دټول هیواد دفقیرانو اومحتاجانو وکیل وي ځکه چي دهغو دټولو ضرورتونو ذمواري د اسلامي حکمت دمشرپه غاړه ده ،نوهغه چي کوم کوم خلک دزکوة اوصدقوراټولولو دپاره ټاکي هغه دمشر دنائب دحیثیت په لرلو سره دفقیرانو وکیلان ګرزي.

## ا یا د مدرسو سفیران (استاذي) په عاملینو کي داخل دي؟

نن سباچي دا اسلامي مدرسواو انجمنو مهتمیمین او یادهغو استاذي دمدرسو او انجمنو دپاره زکاتونه اوصدقي راټولوي. دهغو داحکم نه دی کوم چي دصدقي دعاملینو په اړوند په آیت شریف کي راغلي دي چي دزکوة لـه روپو څخه دهغو تنخواه ورکوله کیدای شي ،بلکه دهغو دپـاره لازمـاً باید دمدرسـو یا انجمنو له خواځـانګړي تنخـواه وټاکله شي. دزکوة لـه مال یاروپو څخه دهغو تنخواه نشي ورکوله کیدای وجه ئي داده چي دغه خلک (مهتمم وي که دهغه استازی) دفقیرانو وکیلان نه ،بلکه دزکوة ورکونکو وکیلان دي ،دهغوله طرفه دوئ ته دزکوة دمال په مناسب ځای لګولو اختیارورکړي شوي دي. نوله دي امله دهغوترقبضي لاندي راتللو وروسته هم زکوة ترهغه وختـــه پــوري نـــه اداء کیـــږي ترڅـــوچي دوئ هغـــه مسکینانو یامحتاجانوته ورنکړي. دوئ دفقیرانو وکیلان ځکه نه دي چـــي پـــه حقیقـــي ډول خـــو دوئ فقیرانو وکیـــل نـــه دي ګرزولـــي اودمؤمنانو امیرتـــه چـــي دعامـــه مشـــري پـــه وجـــه کـــوم وکالـــت

دفقیرانو خود بخوده حاصلیږي هم دوئ ته حاصل نه دي، نوله دي امله کوم مال دزکوة چي دوئ ته ورکول کیږي داسي دي لکه دمال له اصلي خاوند سره چي وي. په دغه کارکي په عام ډول له بي پروايئ څخه کاراخیستل کیږي، ډیرخله مهتمیمین یانوردخلکوزکاتونه راټولوي اوبیاپه کلوکلوورسره ایښي وي، اوزکوة ورکونکي دافکرکوي چي زکوة مي اداء کړ، حال دادي چي دهغوئ زکوة به هغه وخت اداء کیږي چي دزکوة مال ئي په مناسب لګښت ځای کي ولګیږي. (معارف القرآن ۴جلد ۳۹۹مخ)

## په څرګند ډول دزکوة اداء کول

**مسئله**: په دي نیت چي خلک دزکوة اداء کولوته تشویق کړي دزکوة په ښکاره ډول اداء کول روادی، مګردریاکاري اوځان ښکارولو په نیت دهغه تشهیرروانه دی، بلکه په دي سره ثواب ضائع کیږي.

**مسئله**: فقهاء رحمة الله علیهم فرمایي چي کله څوک زکوة اداء کوي، نوپه ډاګه یابښکاره ډول اداء کول ئي بهتردی اونفلي صدقي اوخیراتونه په پټه اداء کول ډیرثواب لري. (فتاوی عالمګیري ۴جلد ۴مخ)

دلته هم دریاکاري څخه ځان ساتل پکښي ضروري دی. (قاسمي غفرله الله)

## بل ښار ته دزکوة لیږل څنګه دی؟

**پوښتنه**: زید خپل زکوة اوسرسایه (قدقة الفطر) دخپل ښار غریبانو ته نه ورکوي بلکه چیرته لیري دبل ښارمسکینانو ته ئي لیږي. آیاداسي کارکول په شریعت کي روادی؟

**ځواب**: بل ښارته دزکوة لیږل مکروه تنزیهي دی، خوکه هلته دلیږونکي له خپلوانو څخه څوک مسکین ؤ، یاددغه ښارتر

مسکینانوهلته زیات مستحقین موجودۀ، یاهغه څوک چي زکوة ورلیږل کیږي نیک یاددیني علوموزده کونکی وي اویادزکوة بل ځای ته په لیږلوکي دعاموميسلمانانوډيري ګټي وي، نوبیامکروه نه دی، بلکه داهل اوقرابت حق دخپل ښارترمسکینانوزیات دی.
(احسن الفتاوی ۴جلد ۲۴۹مخ فقه الزکوة ۲جلد ۳۵۳مخ)

**مسئله**: کله چی دبل ځای خلک غریب اومحتاج وي یا عزیزان اوقریبان وي اوضرورت مندوي، یادهغه ځای خلک په دیني تعلیم باندي مشغول وي، نوداسي خلکوته دروپو په ورلیږلوکي هیڅ منعه نشته، بلکه په بعض ځایوکي درباندي زیات ثواب حاصلیږي.
(فتاوی رحیمیه ۵ جلد ۱۵۵مخ بحواله هدایه ۱جلد ۱۸۸مخ و معارف القرآن ۴جلد ۴۱۱مخ)

**مسئله**: دزکوة روپی دغیراسلامي ممالکوغریبانو مسلمانانوته ورکول هم روادی، مګرشرط پکښي دادی چي هرچاته ورکول کیږي هغه باید دنصاب خاوندنه وي اودزکوة دمال مالک وګرزول شي.
(فتاوی دارالعلوم ۶جلد ۲۷۷مخ)

**مسئله**: غرض داده چي دټولوخیال بایدوساتل شي، که دزکوة په روپوکي ګنجایش ۇنوهرحاجت لرونکي اوقریب ته دي ورکړای شي اوکه ګنجایش کم ۇبیادي لومړی قریبانوته ورکړلي شي بیانوروسکینانوته. (فتاوی دارالعلوم ۶جلد ۲۲۲مخ بحواله ردالمختار ۲جلد ۹۳مخ)

## دمستحق دنه موجودیت په صورت کي دزکوة څنګوالوحکم:

**پوښتنه**: کله داسي کیږي چي مستحق نه وي اودزکوة روپی تربل رمضان المبارک پوري ایښي وي نودتیرکال روپی دراروان کال له روپوسره تقسیمول څنګه دي؟

**ځواب**: ټول د زکوة مال له وجوب څخه سمد ستي وروسته تقسیمول ضروري نه ده، بلکه په لږ لږ ویشلو سره هم زکوة اداء کیږي خو د ورکولو پروخت ئي نیت لرل ضروري دی او ژر اداء کول ئي ډیر بهتر او زیات احتیاط دی، او ځنډ کول پکښي مناسب نه دی بلکه بغیر له عذره ئي ځنډول مکروه دی. (فتاوی محمودیه بحواله ردالمحتار ۲ جلد ۲۷ مخ)

## دزکوة له روپو څخه غریبانو ته تجارت برابرول:

**پوښتنه**: دلته د (خدمتګارانو د ټولني) په نوم یوه اداره ده. د دي د پاره ځوانانو چنده راغونډه کړي ده چي ډیري روپۍ ئي د زکوة دي؛ اوس دوئ هغه روپۍ غریبانو ته قرض ورکوي ترڅو هغوئ ورباندي یو کاروبار برابر کړي او له ګټي کولو څخه وروسته د قرضو خپل سر بغیر له سود څخه بیرته هغي اداري ته ورکړي، غریب ته دغه روپۍ ورکول شرعاً څنګه دي؟

**ځواب**: دزکوة روپۍ دي دزکوة په لګښت ځایونو کي ورکړي غریب ته د قرض ورکولو اجازه ئي نشته. که دزکوة ورکونکي له طرفه اجازه ورته وي هم جائز نه دی، ترڅو چي محتاج دزکوة د مال مالک و نه ګرزول شي تر هغه وخته پوري زکوة نه اداء کیږي، لهذا د زکوة حقدار ته دي قرض نه بلکه ملکاً ورکړلي شي. (فتاوی رحیمیه ۳ جلد ۲۰۳ مخ دارالعلوم ۲ جلد ۱۹۵ مخ)

## دزکوة په نیت د خرڅونکي شي قیمت کمول:

**پوښتنه**: د نصاب خاوند په یو غریب باندي څه شی خرڅاؤ، چي قیمت ئي دري سوه روپۍ وُ غریب ور څخه وغوښتل چي د خدای جل جلاله د پاره د هغه قیمت ټیټ کړه، خرڅونکي د الله جل جلاله د پاره سل روپۍ پریښودلي. آیا هغه کولای شي دغه روپۍ په زکوة کي شمار کړي؟

**ځواب**: دغه ډول روپۍ په زکوة کي شمارل روانه دي. خو دا رنګه کيداى شي چي هغه شى دوه برخي کړي يوه برخه دي په دوه سوه روپۍ ورباندي وپلوري اويوه برخه چي قيمت ئي سل روپۍ دى هغه دي په زکوة کي ورکړي. يادي هغه شى ورباندي په دري سوه روپۍ خرڅ کړي روپۍ دي ورڅخه واخلي اوبيادي سل روپۍ ورته بيرته ورکړي. (فتاوى محموديه ۳جلد ۳۵مخ بحواله شامي۲جلد ۱۲مخ)

## دزکوة روپۍ د فقيرانودګټي دپاره لګول:

**مسئله**: جمهور فقهاء په دي متفق دي چي دزکوة په اتو (۸) تاکل شوولګښت ځايونو کي هم دهغه اداء دپاره دا شرط دى چي محتاج به دهغه مال يارو پو بلاعوض مالک ګرزول کيږي. بغيرله دي چي يوله فقيرانو يادير ددوئ ددغه مال مالکان وګرزول شي که دغه مال ددوئ دګټي دپاره ولګول شي، نوزکوة نه دى اداء شوى؛ ځکه دامت جمهور فقهاء په دي خبره هم غږي دي چي دزکوة روپۍ دمساجدو، يتيم خانو، شفاخانواومدارسوپه بيارغونه اودهغوپه نورو ضروورياتو کي لګول روانه دي، که څه هم دهغو ګټه فقيرانو اونورو هغو خلکوته رسيږي کوم چي زکوة اخيستلو مستحق وي. (معارف القرآن ۴جلد ۴۰۹مخ)

## چا ته دزکوة ورکول اواخيستل روادى؟

**مسئله**: له چاسره چي ترضرورت اصليه زيات ديونصاب په اندازه مال نه وي هغه ته زکوة ورکول کيداى شي، اودغه رنګه خلکوته زکوة اخيستل هم روادى. اوپه ضروريات اصليه ؤکي داستوګني کور، دکارولولوښى اوکپړي اوميزاوکرسئ وغيره ټول داخل دي

نصاب یعني اوه نیمي تولي سره زر۸۷ ګرامه ۴۷۹ملي ګرامه، یادوه پنځوس نیمي تولي سپین زرچي ۶۱۲ګرامه او۳۵ملي ګرامه کیږي یادهغه قیمت چي له چاسره وي، اوهغه قرضدارهم نه وي، نوهغه ته دزکوة ورکول روانه دی. دغه رنګه که له یوچاسره څه نغدي روپۍ وي اوڅه سره یاسپین زروي. که ټولوته حساب وکړل شي د(۱/۲ ۵۲ ) تولوسپینوزروقیمت ورڅخه جوړیږي، نوداهم دنصاب خاوند دی اوزکوة ورکول اواخیستل ورته روانه دی. (معارف الرقرآن ۴جلد ۳۹۲مخ)

## ایا د مستحق د حال څېړل ضروري دی؟

**پوښتنه**: که یو څوک خپل ځان په په ظاهره په وینااو عمل سره دزکوة مستحق ښکاره کړي اودصدقي یابل څه سوال وکړي نوآیاصدقی اوزکوة ورکونکوته ضروري ده چي دهغه داصلي حالاتو څیړنه وکړي اوبغیرله هغه زکوة ورنکړي؟

**ځواب**: ددي په اړوند داحادیثوروایات اودفقهاؤ اقوال دادی چي داضروري نه دی ،بلکه که په ظاهرحالت باندي داغالب ګمان شوچي ربښتنی فقیردی، نوهغه ته زکوة ورکول کیدای شي. څنګه چي په حدیث شریف کي هم راغلي دي چي دحضور صلی الله علیه وسلم په مخ کي څوډیربدحال لرونکي خلک حاضرشول ،نوحضور صلی الله علیه وسلم دهغودپاره له خلکوڅخه دصدقواونورودراټولو امرورکړ، ډیرشته راټول شول اوهغوخلکوته ورکړل شول. حضور صلی الله علیه وسلم داضروري ونه ګڼله چي دهغودحقیقي حال پوښتنه وکړي. (معارف القرآن ۴جلد ۴۱۲مخ)

## دزکوة زیاتي حقداري مدرسي دي اوکه پوهنتونونه ؟

**پوښتنه**: زه دزکوة روپۍ خپلو قریبانو او دیني مدرسو ته ورکوم خوزمایو دوست وائي چې دعربي مدرسو پرځای دمتوسطو ښوونځایو او پوهنتونونو زده کونکو ته ورکول زیات ثواب لري آیا زما ددوست دغه لارښوونه او عمل صحیح دی؟

**ځواب**: هر مسلمان ډیر ښه پوهیږي چې دیني او مذهبي تعلیم تر هر څه بهتر اوله حد څخه زیات ضروري دی.

### چه نسبت خاک . با عالم پاک

قصه داده چې د دیني زده کونکو په رومبي والي کي دشریعت رواج کول او خپرول دی ځکه چې دشریعت مبلغین او حاملین همدغه زده کونکي (طالبان) دي دمصطفی صلی الله علیه وسلم امت ددوئ په ذریعه ظهور فرمادی ،دقیامت په ورځ به هم دشریعت پوښتنه وي،جنت ته تلل او له دوزخ څخه ځان ساتل په شریعت باندي له عمل کولو سره تړلي دي تولو نبیانو علیهم السلام چې په تولو کائیناتو کي بهترین مخلوق دي دشریعت رسول ؤ تر خلکو پوري. نو تر تولو لوی خیرات دادی چې دشریعت په خپراوي کي کوشش وشي.

### ضروري یادونه :

یو دپوره فکر او غور کولو وړ خبره داهم ده چې هرځای کي چې تاسو وګورئ له مکاتبو (اسکولونو) او پوهنتونونو سره دهغه هیواد دحکومت له خوا مرستي کیږي او حمایه کیږي ،خو بر عکس دهغو دیني مدرسو سره چې دخیر خواهو او حق پرستو مسلمانانو په مرستو چلیږي نور هیڅ هم نشته : نو له دي څخه وروسته ډیر کم عقل

انسان هم دا فیصله کولای شي چي له کوم ځای او چا سره په مرسته کونکي به اجر او ثواب ډیروي ؟ لنډه دا چي له دیني مدرسو سره چي په حقیقت کي د اسلام قلعه ګاني دي دهغو دتل پاته والي، پرمختیا او ټینګښت د پاره ستاسو په څیر دیندار او غیرتمند ولس قرباني او مالي مرستي تر حد زیاته ضروري ده لهذا: ستاکړنلاره او دفکر طریقه ډیره په ځای، سمه او په زړه پوري ده؛ او ستا دوست چي درته څه ویلي دهغه لاربښوونه غلطه او ګمراهي کونکي ده دحجة الاسلام امام غزالي رحمة الله علیه په اثر (احیاء العلوم) نومي کتاب کي لیکل شوي دي چي دزکوة او نورو دورکولو د پاره دداسي چاپه لټه کي شئ چي ددنیا طمع او طلب ئي پري ایښی وي او دآخرت په تجارت کي مشغول وي.
دکائیناتو سردار (صلی الله علیه وسلم) فرمایي چي ،، تاسو پاک خواړه وخورئ او په پاکو انسانانوئي وخورئ ،، دغه رنګه ئي یوبل ارشاد دی، چي دخیر کار کونکو ته خپل خواړه وروخورئ! چي دوئ دالله جل جلاله طرفته متوجه دي. کله چي دوئ تنګ لاسي شي نو توجه ئي نورو طرفو ته اوړي. نو هرڅوک پوهیږي چي یو سړی الله جل جلاله ته متوجه کول ډیر بهتر دی تر هغو زرګونو خلکوته تر ورکولو دکومو چي توجه او فکر دنیا به لوري وي. حضرت عبد الله بن مبارک رحمة الله علیه به همیشه خپل خیراتونه او زکاتونه دعلم خاوندانو ته ورکول او ویل به ئي چي زه دنبوت صلی الله علیه وسلم له درجي څخه وروسته دعلماؤ رحمة الله علیهم تر درجي بهتره بله درجه نه وینم، ځکه چي که دعلم خاوندان تنګ لاسي شي نو ددین دپاره خدمت نشي کولای چي له دي امله په دیني امورو کي

نیمگړتیارامینځته کیږي، نوځکه داسلامي مدرسوزده کونکي په خپلومرستو ،زکاتونواوصدقوسره علمي خدمت ته فارغول ترهرڅه بهتردی. (دځواب خلاصه فتاوی رحیمیه۲جلد۵مخ)

## خرابو عقیدو لرونکوته دزکوة ورکول څنګه دی؟

**پوښتنه**: دلته داسي محتاجان اوغریبان دي چي شرک ، بدعت، تعزیه پرستي اونوربدکارونه کوي، لمونځ نه کوي روژه نه نیسي ،له درواغو ،زنااوغلاڅخه نه یوداچي ځان نه ساتي بلکه بدکارتي هم نه بولي. په دغه حالت کي دغوخلکوته زکوة ورکول څنګه دی که رواوي خوخیر، اوکه روانه وي نوزماپلارغواړي چي دبل ځای محتاجانوته ئي ولیږي.

**ځواب**: ستادکلي دغوخلکوته چي تائي حال لیکلی دی زکوة ورکول صحیح دی ځکه چي دښارغریبان هم حق لري، بلکه زیات. اودبل ځای مظلومین که څه هم حق لري هغوته په زکوة لیږلوکي اورسیدلوکي دبي احتیاطي ویره ده چي له امله ئي شایددزکوة اداء کیدل له شک سره مخ شي. ځکه چي دزکوة په مال کي داشرط دی چي محتاج به دهغومالک ګرزول کیږي. نودامعلومه نه ده چي تاسوچاته دزکوة مال ورلیږئ هغه پکښي دغه شرطونه پوره کړي اوکنه؟اوهغه دزکوة په لګښت ځایونوپوهیږي اوکنه؟ ستاسودښارخلک دکوموحال چي تالیکلی دی که څه هم دهغودعقیدواوعملوخرابي خوښکاره ده مګرداهم څرګنده ده چي دوئ کلمه وایي اوداسلام دعوی لري، نوددي باوجودچي اعمال اوعقائدئي سم نه دي خوعموماً په دوئ باندي دکفرحکم نشي کیدای. خوکه له یوچاڅخه دکفرکلمه واوریدله شوه، یادهغه دحال له تحقیق څخه معلومه شوه چي دهغه عقیده دکفرده، نوپه هغه باندي بیادکفرحکم لګول کیږي. نوداچي

ورباندي په عام ډول د کفر حکم نشي لګول کيدای ،نو له دي خاطره چي محتاج او غريب دي او له ګاونډ يانو يا له ښاريانو څخه دي، نو ځکه زکوة ورکول هم ورته صحيح دی. تردي زيات سپناوی او کش وګيرته ضرورت نشته. (فتاوی دار العلوم ۲جلد ۲۳۲مخ بحواله ردالمختار ۹۲مخ)

## اندازاً زکوة ورکول څنګه دی؟

**مسئله** : اول بايد په سم ډول هغه څه ته حساب وشي چي زکوة ورباندی لازم دی بيائي بايد زکوة اداء کړل شي. که اندازه کمه ولګوله شوه نو دزکوة فرض دهغه په ذمه پاته دی که په پوره ډول حساب کول ممکن نه ؤ ،نو بيا بايد زياته اندازه ولګوله شي. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۳۲۳مخ)

## بي حسا به زکوة ورکول څنګه دی؟

**پوښتنه** : که يو څوک په کلني ډول زکوة نه باسي بلکه هره مياشت څه ناڅه غريبانو ته ورکوي او دورکونکو شيانو حساب هم ورسره نه وي، نو آيا دا به په زکوة کي شمارل کيږي او که نه ؟

**ځواب** : دزکوة په نيت چي هرڅومره مال محتاجانو ته ورکړل شي هغه په زکوة کی شمارل کيږی مګر دا به څنګه معلوموي چي زمازکوة پوره شوی دی او کنه ؟

نو ځکه حساب کول ضروري دی او بيا دادزکوة اداء کونکي خوښه ده چي ټول زکوة په يو ځای اداء کوي او که لږلږ، مګر حساب ئي بايد له ځان سره وساتل شي او دزکوة ورکولو په وخت لازمًا بايد دزکوة نيت وشي. کوم شی چي دزکوة له نيت څخه بغير ورکړل شي هغه په زکوة کي نه شمارل کيږی همدا راز که دزکوة مال ياروپۍ جلاکښيودلي

شي او بيا وخت په وخت مسكينانو ته وركړل شي ،نو هم زكوة اداء كيږي .(آپ كى مسائل ۳ جلد ۳۷۹ مخ)

## دزكوة دروپو وركولو دپاره د مياشتي ټاكل :

**پوښتنه** : په ماچي څومره زكوة اداء كول لازم ؤ هغه روپۍ مي ټولي له نورو روپو څخه جلا ايښي دي ،دوه كورونه دي چي زه غواړم زكوة وركړم ،نو له دغو روپو څخه لږلږ اخلم او وروركوم ئي څګه كه ټولي وركړم نو له هغو څخه لګيږي آيا دا صحيح ده؟

**ځواب** : ستاسو دغه كارصحيح دى چي دزكوة روپۍ دي له نورو څخه جلا كړي دي او كله چي د اداء مناسب وخت او ځاى راورسيږى بيائي اداء كوي . (آپ كي مسائل ۳ جلد ۳۸۰ مخ)

## لږ، لږ زكوة وركول څنګه دى؟

**مسئله** : كه يو څوك داغواړي چى دكال په اخيركي ديو ځاى زكوة اداء كولو په ځاى هره هره مياشت څه روپۍ په زكوة كي وركړي ،نو دا صحيح ده .

**مسئله** : كه دټول كال په لږلږوركولو سره زكوة اداء كړل شي ،نو هم زكوة اداء كيږي؛ او كه دكال له پيل څخه ترپاى پوري لږلږ زكوة وركوي دا هم صحيح دى . (آپ كي مسائل ۳ جلد ۳۷۹ مخ وفتاوى محموديه ۳ جلد ۳۲ مخ - ۱۱ جلد ۱۲۸ مخ)

**مسئله** : كه يو چا مسكين ته دزكوة له روپو څخه په مياشتني ډول څه مقرر كړل نو زكوة ئي اداء كيږي . (فتاوى دارالعلوم ۲ جلد ۳۳۷ مخ بحواله ردالمختار ۲ جلد ۱۲ مخ)

## تر واجب شوي زكوة زيات وركول څنګه دى؟

**پوښتنه**: كه په يو چا باندي دري سوه روپۍ دزكوة واجب وي خو هغه دوه سوه زياتي وركړي ،نو آيا زكوة ئيورباندي خرابيږي؟

**ځواب** : په دغه صورت کی ثواب زیات شوی دی؛ زکوة هم اداء شواو ددوو سوو روپو نورو هم ثواب وشو. (فتاوی دار العلوم ۲جلد ۷۱مخ)

## ا یا زکوة ورکونکي کولای شي زیات ورکړل شوي روپۍ د راروان کال په زکوة کي لګوي؟

**پوښتنه** : د زکوة چی د څومره روپو اداء کول واجب وي که تر هغو زیاتي ورکړلي شي نو هغه زیاتي دراتلونکي کال په زکوة کي شمیرلي کیدلای شي کنه؟

**ځواب** : که دغه زیات مال د زکوة په نیت ورکړ شو، نو بیا هغه دراتلونکي کال په زکوة کي حسابیدلای شي. (فتاوی دار العلوم ۲جلد ۹۳مخ بحواله ردالمختار ۲جلد ۳۶مخ)

**مسئله** : که یو چار خت په زکوة کي ورکړ، او د ورکولو په وخت ئي ورته (۸) روپۍ قیمت ولګاؤ، خوله ورکولو څخه وروسته معلومه شوه چی هغي قیمت (۱۲) روپۍ ؤ، نو دغه رخت یا ورکړل شوی بل شی که لا تر هغه وخته له هغه چا سره موجودؤ چي ورکړل شوی دی نو بیا زکوة ورکونکی کولای شي هغه په دولس روپۍ شمارکړي. (فتاوی دارالعلوم)

## په زکوة کي وکیل جوړول څنګه دی؟

**مسئله** : تاسو کولای شئ بل چا یا اداري ته روپۍ ورکړئ او دخپل ځان د پاره ئي وکیل کړئ چی هغه ستاسو له طرفه د زکوة مال د زکوة په سم لګښت ځای کی ولګوي، مګر د دوو خبرو خیال باید پکښي وساتل شي:

لومړی: دا چي په هغه وکیل به مو ددي پوره باوروي چی د زکوة روپۍ به صرف په حقدارانو د زکوة باندي تقسیم کړي. او په نورو ځایونو د خیرات کي به ئي نه لګوي.

دوهم: دا چی تر کومه وخته پوري چی د زکوة مال د وکیل په قبضه کي وي داسي دی لکه له تاسو سره چي وي. زکوة به هغه وخت اداء شي

چي کله دغه سړی یا اداره دزکوة مال هغه چاته ورکړي چي دزکوة اخیستلو حقداروي. ډیري اداري دزکوة روپۍ جمعه کوي اوپه کلونوکلونوئي له ځان سره ساتي. لګوي ئي نه دایوه لویه بي احتیاطي ده .(امداد و مسائل زکوة ۷۰مخ وفقه الزکوة ۲جلد ۳۹۴مخ)

## په شرط سره دوکیل نیول

**پوښتنه** : زید عمرپه دي شرط وکیل کړچي خاص حقدارد زکوة ته به زکوة ورکوي که هغه ټاکل شوی حقدارته زکوة نه بلکه بل مستحق ته ورکړي، نودزید زکوة اداء شوی دی؟

**ځواب** : په شامي نومي کتاب کي راځي چي په دي کي دوه خبري دي؛یوه داچي زکوة اداء کیږي دوهمه داچي نه اداء کیږي. اووکیل ضامن دی. نواحتیاط په دي کي دی چی بل مستحق ته زکوة ورنه کړي بلکه هغه ته ئي ورکړي کوم چی زکوة اداء کونکی ورته ښوولي دی. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۵مخ بحواله ردالمختار ۲جلد ۱۵مخ)

**مسئله** : که یوچاتاته روپۍ درکړي نه وي خودائي درته وویل چی زماله طرفه زکوة اداء کړه. تردي ویلووروسته تادهغه له طرفه زکوة اداء کړ،نودهغه زکوة اداء شواوته بیاهغه روپۍ له زکوة اداء کونکي څخه واخله .(فتاوی شامي ۲جلد ۱۴مخ بهشتي زیور۳جلد ۲۹مخ)

## ایا وکیل کولای شي نائب ونیسي؟

**مسئله** : تایوچاته دخپل زکوة دوه سوه روپۍ ورکړي نودابیا دهغه خوښه ده چي پخپله ئي کوم غریب ته ورکوي اوکه ئي خپل نائب ته سپاري چي هغه ئي کوم غریب ته ورکړي. داصلي زکوة ورکونکي دنوم اخیستل ضروري نه دی اوهغه که هغه سړي ته خپل

موریا پلار غریبان ښکاره شول نو هم ورکول ئې ورته صحیح دي، مګر که پخپله غریب ژنو د خپل ځان د پاره ورکړزول ئي هغه وخت صحیح نه دي که تادانه ورته ویلي چې هرڅه ئي کوي هغسې ئي کړه، او چاته چې ئي ورکوي هغه ته ئي ورکړه. او که داسې دي ورته ویلي ژبیائې ورکړزول ورته روادي. (امداد مسائل زکوة ۲۱مخ بحواله فتاوی قاضی خان)

## وکیل ته د زکوة په روپوکي اړول راړول څنګه دي؟

**پوښتنه**: یو چا بل چاته د دي د پاره د زکوة روپۍ ورکړي چې په مسکینانو ئي وویشي، خو هغه دغه روپۍ بدلي کړي یعني د لسو، پسو، لس لوټونه ئي ورڅخه له ځان سره کیښود او د هغو په ځای ئي پکښې یو د سلو روپو نوټ کیښود. نو آیا وکیل ته داسې کول روادي او کنه؟

**ځواب**: په هر حال چې وي زکوة اداء کیږي خو دادلون بدلون روا والی په دي پوري تړلی دي چې د مؤکل له خوا ورته صراحةً یا دلالةً د بدلو لو اجازه ورکړله شوي ده او کنه؟ نو صراحةً اجازه اخیستل بهتر دي. (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۹۰مخ)

**مسئله**: وکیل ته داروانه دي چې د بل چا د زکوة روپۍ له خپلو روپو سره ګډي کړي او د زکوة ورکونکي زکوة هغه وخت اداء کیږي چې د زکوة مال ئي په شرعي لګښت ځای کې ولګیږي. که وکیل په خپلو روپوکي د مؤکل د زکوة روپۍ ګډي کړي او د وکیل ورته اجازه د ګډولو وه، نو بیا چې هر وخت د زکوة روپۍ له نورو څخه جلا کړي او د زکوة په نیت ئي فقیر ته ورکړي، نو هغه وخت د زکوة اداء کونکي (مؤکل) زکوة اداء شوا و که وکیل دغه کار بغیر له اجازي د مؤکل (هغه څوک چې دی ئي وکیل کړی دی) وکړ، نو د زکوة

ورکونکي (مؤکل) زکوة نه اداء کیږي؛ اوکوم څه چي وکیل فقیرانو ته ورکوي نو هغه دوکیل له طرفه هغوئ ته هدیه یا صدقه ده.
(فتاوی دارالعلوم ۶جلد ۲۳مخ بحواله ردالمختار۲جلد ۱۴مخ)

**مسئله**: تاخپل نمائنده یاوکیل ته دزکوة روپۍ ددي دپاره ورکړي چي مسکین ته ئي ورکړی مګرهغه بعینه هغه روپۍ چي تاورته ورکړي وي فقیرته ورنکړي بلکه هغه ئي له خپل ځانه په دي خیال دغومره روپۍ ورکړي چي هغه نوري به بیازه راواخلم ،نوهم ستازکوة اداء شو؛خوپه دي شرط چي هغه ستاروپۍ له هغه سره موجودي وي اودنوروروپوله ورکولوورو سته ستاوکیل هغه ستااصلي روپۍ وراخلي. اوکه ئي ستاروپۍ تردي له مخه لګولي وي اوبیائي دهغو پرځای نوري مسکین ته ورکولي،نوبیازکوة نه اداء کیږي؛
همدارنګه ئي ستاروپۍ هم ورسره ایښي وي خودنورود ورکولوپروخت ئي دانیت نه ؤچي هغه روپۍ به زه رااخلم،نوبیاهم زکوة نه اداء کیږي. اوبیابه په زکوة کي دغه روپۍ ورکوي.

## ایا وکیل کولای شي دبل چادزکوة په روپوځان دپاره څه واخلي؟

**پوښتنه**: آیاوکیل کولای شي دزکوة په روپوبدځان دپاره غله جامي،میوه اوداسي نورواخلي؟

**ځواب**: داهم دهغه چاپه اجازه پوري تړلي ده چاچي دی وکیل کړی دی؛ که هغه ورته پري دخه اخیستلواجازه ورکړي وه،نوبیاورته روادی اوکه نه ئي وه ورکړي بیانه دی روا.(احسن الفتاوی ۴جلد ۲۹۰مخ)

## ایا وکیل کولای شي خپلو ذي رحموته زکوة ورکړي؟

**مسئله**: که چادزکوة اداء کولودپاره وکیل ونیوی،نوهغه وکیل کولای شي رااخیستل شوی زکوة خپلو ذي رحموته (چي وکیل ورته خپل

شخصي زکوة نشوای ورکولای ) ددي له خاطره چي دی دبل چاوکیل دی ورکړي .(احسن الفتاوی ۲۹۸مخ ۴جلد )

**مسئله** : که یو چاوکیل ته دزکوة روپی دزکوة اداء کولو دپاره ورکړي، وکیل هغه خپل لوی یاوړوکی بچی یاخپلي میرمني ته ورکړي، نوصحیح دی خو په دی شرط چی دزکوة اخیستونکي به غریب وي : (درمختار ۱جلد ۱۳۰مخ وفتاوی عالمگیري ۴جلد ۴۰مخ )

**مسئله** : زید عمرته دزکوة روپی ددي دپاره ورکړي چي په محتاجانوئي وویشي . عمر پخپله دنصاب خاوند دی خو میرمن ئي مسکینه ده ، نوعمر کولای شي دزید دزکوة روپی خپلي میرمني ته ورکړي .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۹۲مخ)

## آیا وکیل پخپله زکوة وراخیستی شي؟

**پوښتنه** : زید عمردخپل زکوة دپاره وکیل کړچي لس زره روپی زماله طرفه مستحقینو ته ورکړه . عمردوکالت اخیستلو په وخت کي شتمن ؤ ، خوپه ناڅاپي ډول مسکین شونو هغه دزید زکوة پخپله وراخیستلای شي اوکنه ؟

**ځواب** : وکیل ته دارو انه ده چي دخپل مؤکل (وکالت ورکونکی ) زکوة پخپلو لګښتونو ولګوي اویایي له ځان سره وساتي . مګرکله چي هغه ته داویل شوي دي چي هر چیري ستاخوښه وي دغه دزکوة مال تقسیم کړه ، نوکه تر هغه وروسته عمرمسکین شونو بیاهغه کولای شي دزید زکوة خپل ځان ته وروګرزوي .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۸۷مخ)

## ایا وکیل زکوة پخپل ځان لګولای شي؟

**پوښتنه** : زید دیو مسجد امام دی چي دکلي یاکوڅي خلک ورته نفلي یاواجبي صدقی ورکوي اوورته وائي چي مدرسي ته ئي ورکړه ،زید هغه مدرسي ته ورکوي. اوڅوک چي ورته وائي چي طالب ته ئي ورکړه ،نوهغه ئي طالب ته ورکوي کله خولاڅوک ورته داسي هم وائي چي څنګه چي ته ئي مناسب بولي هلته ئي ولګوه. کله ناکله خولازید چاته داهم وائي اوتصحیح وربانديکوي چي که هرڅوک مستحق ؤهغه ته دغه ستامال ورکړم؟صدقه ورکونکي ورته وائي چي هو ! همداسي وکړه کله خلکوته داهم وائي چي تاسو ماته روپۍ راکوئ زه به ئي انشاء الله په سمواومناسبو ځایو کي لګوم؛ کله چي خلک په پورتنیوډولونوهغه ته روپۍ یامالونه سپاري،نوهغه ورڅخه یوڅه په سمولګښت ځایونوکي لګوي ،اویوڅه دخپلي مجبورئ،خوارئ او قرضدارئ په وجه پخپله استعمالوي. زیدله بل چاڅخه اوریدلي ؤچي که دصدقي ورکونکي وکیل ته ووائي چي چاته چي ستاخوښه وي هغه ته ئي ورکړه،نوپه داسي حال کي چي وکیل پخپله مستحق (مسکین) وي نوهغه کولای شي دغه مال ځان ته وروګرزوي څه وخت وروسته زید ته معلومه شوه چي دشامي نومي کتاب له الفاظوڅخه مفهوم دغه نه دی،نوځکه داوخت زیدډیرغمجن اوپه فکرکي دی چي دامي څومره غلط کارکړی دی ،نه اوس له هغه سره حساب شته چي څومره پیسي مي پخپله لګولي دي اوڅومره مي په مناسب ځای لګولي دي. اونه ورسره روپۍ شته اونه هغه روپۍ ورکونکي له دي څخه خبرولای شي. دادزید دپاره ډیره شرمونکي ده

ځکه چي خلکو هغه ډیرښه سړی بللی ؤ، نو اوس زید څه وکړي او د حل لاره څه ده؟

**ځواب** : په دغه صورت کی زکوة نه اداء کیږي د شامي نومي کتاب له الفاظو (ضعها حیث شئت)

**ژباړه**: (چیري چي ستاخوښه وي هلته ئي ولګوه) ده او داد تملیک جمله ده، او دا چي (چاته چي ته غواړي هغه ته ئي ورکړه) توکیل دی. په عام عرف کي بهشتي زیور دوهمي جملي ته داولی جملي فرعیت ویلی دی. یعني له تملیک وروسته ستاخوښه شي چي پخپل مصرف کي ئي لګوي او که بل چاته ئي ورکوي. د تیرد جبران خو ماته هم دسمون کوم صورت په نظر نه راځي ،داصرف یو تدبیر کیدای شي چي زید هغو خلکو ته چي دي ئي د زکوة د پاره وکیل ګرزولی ؤ وو ائي چي د نه علم او نه پوهاوي په وجه له ماڅخه ستاسو د زکاتو نو روپی په نامناسبو ځایو نو کي ولګیدلي چي ضمانت ئي زما په غاړه ؤ، خو داوخت زه سخت غریب یم او دومره قدرت نه لرم چي ستاسو دغه قرض اداء کړم، نو تاسو ماته دغومره روپی د زکوة په نیت راکړئ زه به بیرته تاسو ته هغه ستاسو په قرضو کي درکړم. (والله اعلم) (احسن الفتاوی ۴ جلد ۲۹۸مخ)

## که له وکیل څخه دزکوة روپی ضائع شوي:

**پوښتنه** : زید خاله ته ددي د پاره د زکوة روپی ورکړي چي په مسکینانو ئي وویشي له خاله څخه هغه روپی ضائع شوي، نو په غه صورت کی د زید زکوة اداء شوی دی او کنه، او آیا په خالد باندي زید ته د دغو روپو ورکول واجب دی او کنه؟

**ځواب**: په دغه صورت کې دزید زکوة نه دی اداء شوی؛ او که خاله دد غورو په ساتنه کې بې پروایي نه وه کړې، نو بیائې په خاله باندې اداء لازمه نه ده. (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۸۹مخ)

## په زکوة کې حیله جوړول څنګه دی؟

**پوښتنه**: مدرسو ته دچندې روپۍ ډیر کمې ورکولې کیږي خود نفلي او واجبو صدقو لکه دروژې کفاره، دعید دقربانیو پوستو کې او داسې نورډیرزیات جمعه کیږي نوداچې دچندې له روپو څخه داستاذانو تنخواه ورکوي آیادوی دغه عمل په ځای دی؟

**ځواب**: دغه حیله سمه ده او ددې حیلې ترجوړولو وروسته هغه روپۍ داو ستاذانو په تنخواه کې ورکول روا دی او دځو مره روپو دپاره چې دوی حیله جوړول غواړي هغه ټول دې په یو وخت وکړي ځکه په دې کې دنصاب داندازې شرط لازمي نه دی، فرق ئې صرف په اولی والې او غیراولی والې کې دی، اودحیله جوړونکو او دحیلې منونکو په دې کې هیڅ ګناه نشته ؛بلکه دنیک نیت په وجه ئې دثواب امیدهم شته. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۰۴مخ)

## په حیله کې شرط لګول څنګه دی؟

**پوښتنه**: غریب ته دزکوة روپۍ ورو سته له دې وینا څخه ورکړلې شوی چې یو ځلې ته دغه قبولې کړه او بیائې فلانۍ مدرسې ته ورکړه، نو په دې ډول زکوة اداء کیږي او کنه؟

**ځواب**: اصل خبره دنیت ده، که نیت سم وي نوزکوة هم اداء شوی دی، او که نیت ناسم وُ، نوزکوة هم نه دی اداء شوی. په پورتني صورت کې په اداء شک شته که دچادپاره بغیرله حیلې جوړولو بله لاره نه

وه، نوهغـه دي بغيرلـه څـه ويلودزكـوة مـال دزكـوة حقدارتـه وركړي، اوبيادي هغه وهڅه وي اوترغيب دي وركړي چي دغه مال يارو پي، بيرته مدرسي ياكوم بل څه ته وركړي. نوكه مستحق په خپله خوښه هغـه روپي، وركـړي خوډيره ښـه ده اوكـه وريـي نكـړي نو پـه زوريابل څه ئي ورڅخه څوک نشي اخيستلاى ځكه چي داوخت هغه (مستحق) دزكـوة دمـال مالـک شـوى دى. ددي پـوره تـړاود نيت اودكارله طريقي سره دى كه دوئ سم وي نوزكوة هم اداء شوى دى. دتمليک (دمسكين دملک) ګرزولو دپاره ظاهري وركول اوبيرتـه تري اخيستل كافي نه دى. (فتاوى رحيميه ۲ جلد ۹ مخ ومحموديه ۳ جلد ۵۵ مخ)

## كه په حيله كى تمليک مقصود نه وي:

**پوښتنه**: بعض خلک دزكوة روپي، دتبليغ دپاره وركوي اوداورته وائي چي حيله ورته جوړه كړئ نوكله چي په تمليک كي اخيستونكى اووركونكي دواړه پوهيږي چي تمليـک مقصـودنه دى، آيا پـه دغـه رنګه حيله جوړولو سره هم زكوة اداء كيږي؟ اوپه دي سره هغه روپي، دټاكل شوي هدف دپاره رواكيږي اوكنه؟

**ځـواب**: حيلـه پـه شـريعت كـي روادة اوفقهـاؤ هـم ليكلـي ده، اودهغوخيالاتوباوجود چي تاسووايئ (چي پـه حيلـه كـى دمـال وركونكي اواخيستونكي دواړه پوهيږى چي تمليک مقصودنه دى) حيله صحيح ده اوكول ئي ضروري دى. ترڅودزكوة وركونكي زكوة سمدستي اداء شي. وروسته بياخبره دمهتمم اونوروچاروا كوخوښي ته پاته كيږى چي په هرځاى كي ئي لګښت مناسب وبولي هلتـه دي ولګوي. (فتاوى دارالعلوم ۳ جلد ۱۹۹ مخ)

**مسئله** : په زکوة کي داشرط دی چي فقیربه دزکوة دمال مالک ګرزول کیږی که داسي نه وي ،نوزکوة نه اداء کیږي، نوکه دزکوة له مال یاروپوبغیردچندي دزکوة دمال مالک داسي یوڅوک وګرزول شي چي دنصاب خاوند نه وي، بیائي هغه له خپله طرفه په جلسه ،انجمن اوبل څه کي لګوي. ددي صورت په کارولوکي په سم ډول سرته ورسیږي. په دي بیان دلانبه پوهاوي دپاره له یوعالم څخه زباني تفصیلات وغواړئ. ترڅو مو هغه په پوره اوسم ډول وپوهوي.
که حیلي څخه مقصد بغیرله څه وجی اولوی ضرورته دشریعت دیوحکم بي معنی کول اودخپلوغوښتنوپوره کول،اودګټوترلاسه کول وي،نوښکاره خبره ه چي دایوناروا کاردی اودپاک خدای جل جلاله له خوابه ئي له عامل څخه پوښتنه هم وشي. اوکه یوڅوک دکوم دیني مصلحت دمختـه راتلوله امله ناچاره شي ،نوبیاحیله جوړول ورته روادی. (محمدرفعت قاسمي رحمة الله علیه )

## د مسجد د پاره د تملیک حیله جوړول څنګه دی؟

**پوښتنه** : په یو مسجد کي دپنکوضرورت ؤاودمسجد ساتونکي (خدمتکار)پخپله مسکین ؤ،ماڅوپنکي واخیستلي اودمسجدُ خاوندته مي دزکوة په نیت ورکړي اوهغه دغه پنکي له خپل طرفه په مسجدکي ولګولي. آیازمازکوة اداء شوی دی اوکنه ؟

**ځواب** : که تاسودمسجد خادم ددوئ مالک (هغه که دمسجد ته ورکولوپه شرط اوکه بغیرله شرطه وي ) ګرزولي وي اوکه څه هم هغه ستاله شرمه بغیرله پوره اخلاصه دزړه مسجدته ورکړي وي په هرحال ستازکوة اداء شوی دی. مګرپه شرط لګولواوغیرت ته په اړکولوکي

ستاګناه ده، او دغه پنکي بیا په مسجد کي لګول روانه دی. او که بغیرله غیرته اړ کولو او په اخلاص دزړه دغه کار وشو بیا روا دی. (احسن الفتاوی ۴ جلد ۲۹۲ مخ)

**مسئله** : دزکوة په روپو باندي دمسجد دپاره جرناتور نشي اخیستل کیدای، خو داسي کیدای شي چي یو غریب قرض روپی واخلي او بیا ورباندي جرناتور واخلي او مسجد ته ئي ورکړي او دزکوة روپی بیا غریب ته دقرض اداء کولو دپاره ورکړلي شي. (آپ کی مسائل ۳ جلد ۳۸۵ مخ)

## دحیلي په ذریعه هدیري دپاره ځمکه وقف کول :

**پوښتنه** : یو څوک غواړي دزکوة په روپو باندي دهدیري (قبرستان) دپاره ځمکه واخلي آیا په دي ډول چي دزکوة روپی یو غریب ته ورکړي او هغه ورباندی ځمکه واخلي او بیائي دهدیري دپاره وقف کړي دزکوة ورکونکي زکوة اداء کیږي او کنه؟ او ثواب به ئي دمحتاج وي او که به دزکوة ورکونکی هم وي؟

**ځواب** : په پورتني ډول زکوة اداء کیږی. لومړی دي غریب ته دزکوة روپی ورکړي، هغه دي دغو روپو مالک وګرزوي، او بیا دي ورته مشوره ورکړي چي په دغو روپو باندي دهدیري دپاره ځمکه واخله. مګر روسته له دی چي غریب دزکوة دروپو مالک شي د هغه خوښه ده چي دهدیري دپاره ځمکه اخلي او کنه، نو که وائي خلي نو ثواب ئي ددواړو سره ګڼل دی. (فتاوی دارالعلوم ۲ جلد ۲۸۷ مخ لحواله ردالمحتار ۲ جلد ۱۲ مخ وفتاوی محمودیه ۱۳ جلد ۹۹ مخ)

## دزکوة په روپوسره په هدیره باندي قبضه کول :

**پوښتنه** : زمونږ په سیمه کی څو مساجد او هدیري دغیر مسلمو په قبضه کی ورغلي دي او پکښي ترحد زیاته بي ادبي کیږی، نو آیا دهغو دبیرته ترلاسه کولو دپاره دزکوة له روپو څخه کار اخیستل کیدای شي او کنه؟

**ځواب:** دزکوة په روپو باندي ددې کارکول روانه دی. ځکه چي دزکوة په اداء کولوکي داضروري ده چي هغه مال به یو محتاج یاڅو محتاجانو ته بلاعوض ملک ګرزول کیږي.
(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۲۲مخ بحواله رد المحتار ۲جلد ۸۵مخ وفتاوی محمودیه ۱۳جلد ۹۹مخ)

## په هدیره کی دزکوة روپۍ لګول څنګه دی؟

**پوښتنه:** په یوه هدیره کی مسجد هم شته او ترڅنګ ئي تالاب هم شته، نو که یو څوک دهدیری په ساتلوکي دزکوة روپۍ ولګوي نوزکوة ئي اداء کیږي اوکنه؟

**ځواب:** دمسجد او هدیري دواړو په رغونه (بازسازي) کي د زکوة روپۍ لګول روانه دی. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۱۳مخ)

## په مقدمه یا عدالت کي دزکوة روپۍ ورکول

**مسئله:** که یو چاله بل چاسره په حکومت کي مقدمه لرله او دزکوة روپۍ ورته ورکړلي شوي، نو که دغه مقدمه چلونکي مسکین ؤ او په دغورو پوئي پوره قبضه وکړه او وروسته له هغه ئي دمقدمي په جریان کي ولګولي، نوزکوة اداء شوی دی. او که مقدمه چلونکي ته ورنکړای شوي بلکه نورچاله خلکو څخه راټولي او په مقدمه یامحکمه کي ئي ورکړي، نوزکوة نه دی اداء شوی. (فتاوی محمودیه ۳جلد ۲مخ)

## د شیانو په ډول دزکوة ورکول څنګه دی؟

**مسئله:** که دزکوة به روپو باندي مستحق ته جامي جوړي کړلي شي او هغه ته ورکړلي شي نو هم زکوة اداء کیږي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۹۲مخ)

**مسئله:** که یو څوک دزکوة په روپو وریځي واخلي او ټول کال ئي په غریبانو ویشي، نو هم زکوة ئي اداء شوی دی.

(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۳۳مخ بحواله ردالمحتار ۲جلد ۲۹مخ)

**مسئله**: که ستاسو عزیز (خپل) (چي دزکوة مستحق وي) په دي شرمیدی چي دزکوة روپی واخلي، نو په دا رنګه ویلو سره چي (دغه روپی درواخله او خپلو بچیانو ته وربانديي زماله طرفه جامي جوړي کړه) دزکوة ورکول صحیح دی، په زړه کي ورته دزکوة نیول شوی نیت کافي دی. چاته چي دزکوة مال ورکول کیږي هغه ته ئي دښکاره ویلو ضرورت نشته. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۹۷مخ بحواله ردالمحتار۱جلد ۱۷مخ)

**مسئله**: که دزکوة په روپو باندی دمستحقینو دپاره څه پاخه او هغوته وروخوړل شي (یعني هغوته ورکړل شي او هغه ئي مالک وګرزول شي) او یا څه شی واخیستل شي او بیا فقیرته ورکړل شي، نو زکوة اداء شوی دی. (فتاوی دالالعلوم ۲جلد ۲۰۵مخ وفتاوی محمودیه ۱۳جلد ۱۱۴مخ)

**مسئله**: مدرسوته چي دزکوة کومي روپی راځي دهغو دغه اختیارله مهتمم سره دي چي په نغدي دول ئي طالبانو ته ورکوي، جامي او داغوستو کالي ورو کړي او که کتابونه ورته په اخلي او دوئ ته ئي ورکوی. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۱۵مخ)

**مسئله**: که یو چا دزکوة غله خرڅه کړه او مسکین ته ئي وربانديی دخوراک څه واخیستل یائي جامي ورته پري جوړي کړي او هغه ته ئي ورکړل، نو زکوة اداء شوی دی.

**مسئله**: داسمه ده چي مسکین ته دشیانو (لکه سامان او نورو) په مشکل کي زکوة ورکړل روا دی مګر ددي خیال باید لازمي وساتل شي چي خراب قسم شیان ورنکړل شي. (آپ کي مسائل ۲جلد ۳۸۲مخ)

## دزکوة روپی په روژه ماتي یا پیشلمي کي لګول :

**مسئله** : درمضان المبارک په روژه ماتي اوپیشلمي کی دزکوة دروپو لګښت په دي ډول روادی چي روژه ماتونکی یاپیشلمي کونکی مسکین وي اوپه داسي ډول ورته خوراک وویشل شي چي هریو دخپلي برخي مالک وګرزول شي. اوکه په خوړنکوکي غني (شتمن) ؤ، نوبیاداسي کول روانه دی. (کفایت المفتي ۴جلد ۱۵۸مخ)

## دزکوة په روپو دیني کتابونو او قران کریم اخیستل اوویشل :

**پوښتنه** : یو چادیني کتاب چاپ کړاوپه تاجرانه قیمت ئي دزکوة حقدارانو ته ورکړ کله چي دزکوة دروپو په اندازه کتابونه په مستحقینو وویشل شوی، پاته کتابونه هغو مولوي صاحبانو ته چي مستحقین نه ؤ دهدیي په ډول ورکړل شول آیاپه دغه صورت کی خو به دشریعت له نظره دزکوة په اداء کیدلو کي څه بدي نه وی؟

**ځواب** : په پوتني ډول ئي له شکه بغیرله څه بدي زکوة اداء کیږي بلکه داددیني کتابونو دخپراوي یوه ډیره ګټوره لاره ده. (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۸۳مخ)

**مسئله** : په زکوة کي هرشی په رواجي قیمت سره ورکول کیدای شي خوپه دي شرط چي په تملیکي ډول به محتاج ته ورکول کیږي. که مدرسي ته وقف کړل شي اویاطالبانو ته عاریةً دمطالعه کولو دپاره ورکړل شي (یعني په داسي ډول چی بیرته ورڅخه غوښتل کیږي) ،نو بیازکوة نه اداء کیږي (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۹۲مخ)

**مسئله** : که یو چاډیر قرآنونه دزکوة په روپو باندي واخیستل اوغریبانوکوچنیانو یالویانو ته وویشل نو په دي سره زکوة اداء کیږي.

او که ئي له هغو څخه کوم قرآن کريم شتمن ته ورکړ، نو دغومره اندازه زکوة ئي نه دی اداء شوی، هغه به بيا اداء کوي. (ردالمحتار۲جلد ۷۱مخ)

**مسئله**: که دزکوة په روپوسره ديني کتابونه چاپ يا واخيستل شي او مستحقينو علماؤ او طالبانو ته ورکړل شي، يادزکوة په روپوباندی ديني کتابونه چاپ کړل شي او په تاجرانه قيمت لګولوسره دعلم خاوندانو ته ورکړل شي، نو دواړه لاري ئي دثواب دي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۱۵مخ)

## دزکوة په روپودکتا بونواخيستل اووقف کول:

**پوښتنه**: که يوڅادمدرسي دکتابخاني دپاره کتابونه دزکوة په روپوواخيستل اوهغي ته ئي وقف کړل، نوصحيح دی اوکنه؟

**ځواب**: په زکوة کی داشرط دی چي دزکوة مال به دمحتاج ملک ګرزول کيږي. نوکه دغه کتابونه دمحتاجو (مسکينو) طالبانو ملک ونه ګرزول شي، نوکتابخاني (لائبريري) ته په وقف کولوسره ئي زکوة نه اداء کيږي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۹۸مخ)

## دزکوة په روپواخيستل شوي کتا بونه د مطا لعي د پاره ايښودل:

**مسئله**: که يوڅادزکوة په روپوباندی ديني کتابونه واخيستل اوله ځان سره ئي ددي دپاره وساتل چي کله دمطالعي (کتني) ضرورت پيښ شي نومطاله کوي به ئي مګرڅاته دداسي وراخيستلواجازه نه وه چي دځان ملک ئي وګرزوي، نوپه دغه صورت کي ي زکوة نه اداء کيږي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۹۸مخ)

**دزکوة په روپودا سکول سامان اخيستل مسئله**: يوڅوک غواړي دخپل زکوة په روپودسکول دماشومانودپاره څوکۍ، ميزونه اوداسي نورشيان واخلي، نوهغه په څه ډول دغه روپۍ ولګوي؟

**ځواب:** دزکوة داداء کیدلو دپاره تملیک شرط دی. او دا حقیقت دی چې په سکول او مدرسه جوړولو او سامان اخیستلو کې دغه شی نشته، نو ځکه ورباندی زکوة نه اداء کیږی. خو که مستحق بلاعوض ددغه مال مالک وګرزول شو او بیائي پخپله خوښه هغه روپی دسکول په رغونه او سامان کې ورکړي، نو بیازکوة اداء کیږي او هغه ته هم ورباندې ثواب ورکول کیږي. (فتاوی رحیمیه ۲ جلد ۱۱ مخ)

## دزکوة په روپو درسالي جاري کول څنګه دی؟

**پوښتنه:** یو چادزکوة روپی درسالي په اداره کی وزکړي، او خیال ئي داؤچي ټول کال به رسالي کوم نادار (مسکین) یا طالب ته رسیږي، نو آیازکوة ئي اداء کیږی او کنه؟

**ځواب:** دځومره قیمت په اندازه چي رسالي مسکین ته رسیږی دغومره زکوة اداء کیږي.

## دزکوة په روپو دکارخاني جوړول:

**پوښتنه:** آیادزکوة له روپو سره په ګډه په نورو روپو باندې څوک کولای شي کارخانه جوړه کړي ترڅو دهغې له لارې له غریبانو او مستحقینو سره په مستقل ډول مرسته وشي؟

**ځواب:** داچي دزکوة اداء کیدلو دپاره فقیر دزکوة دمال مالک ګرزول شرط دی، نو ځکه دصنعتي کارخاني په جوړولو سره زکوة نه اداء کیږي؛ خو که مو کارخانه جوړه کړه او دیو یا څو فقیرانو مالیت مووګرزوله، نو بیادومره اندازه زکوة اداء شو څومره چي ددغي کارخاني مالیت دی. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۳۸۳ مخ)

**مسئله** : دزکوة مال که دغریب پوره ملکیت و نه ګرزول شي، نو زکوة نه اداء کیږي او وروسته له دي چي هغه ددغه رقم مالک وګرزول شي بیا که دهغه په اجازه او وکالت وربانـدي دکاروبار جوړولو تیاری وشي، نو روادی. (آپ کي مسائل ۴ جل ۲۸۳مخ)

## دزکوة په روپو د مکان جوړول او بیا ئي غریب ته سپارل :

**مسئله** : یو چادزکوة روپی له خپلو روپو څخه بیلي نکړي بلکه په ټولو روپو په ګډه ولوئي په ذاتي ډول مکان جوړکړ، کومي روپی چي پري لګیدلي وي هغو ته ئي حساب وکړاو بیائي هغه کور دزکوة په نیت یو بي کوره غریب ته ورکړاو فقیر په راتجسترکي دخپل نوم په لیکلو سره په هغه باندي قبضه وکړه او جوړونکي له دغه کور سره هرډول تړاو او حق خواهي ختمه کړه، نو دغه رنګه مکان جوړول باکراهیت روادی ځکه دهغه په مالک کیدلو سره فقیر دنصاب خاوند نه ګرزي بلکه دضرورت ځای ورته ورکړل شوی دی.

**مسئله** : که یو چادزکوة روپی له خپلو ذاتي روپو څخه جلا اینښي وي، او بیائي په خپلو روپو باندي کور جوړکړاو فقیر ته ئي ورکړي دکور جوړیدلو لګښت ته ئي حساب وکړ هر څومره چي ئي ؤهغه ئي له جلا کړل شوؤ روپو څخه بیرته واخیست، نو په دغه ډول هم زکوة بلاکراهیت اداء شوی دی.

**مسئله** : که یو چادقسط په ډول فقیرته دومره روپی په وار، وار ورکولي چي هغه وربادي دنصاب خاوند نه کیدی او فقیر بیا هغه په کور جوړولو لګولي(که فقیر خپله ځمکه نه لرله، نو اول دي ځمکه واخلي او بیا دي دفقیر ملک وګرزوي) او له هغه وروسته دترنصاب

کمورو پو پـه ورکولـو او لګولـو سره کورجوړ شو ،نو په دي ډول زکوة
اداء کول هم روادی .(ایضاح المسائل ۱۱۵مخ واحسن الفتاوی ۴جلد ۴۹مخ)

## د زکوة په روپو سره داجتماع په ذريعه مکان جوړول :

**مسئله** : که یوي کمیټي یا دخلکو یوي شوری ته (لکه چی نن سبا رواج
هم ده ) دزکـوة روپـۍ ورکړلـي شـوي اوهغـوئ پـه دغـورو پو بانـدي
کورجوړ کړاو فقیر تـه ئـي ورکړ ،پـه دغـه ډول زکـوة خـو اداء کيـږي
خـو داخرابي پکښـي شـته چي دغـه روپـۍ مختـه تـردي چي فقیرئـي
مالـک وګـرزل شـي دکورجوړولو پـه سـامان اخیسـتلو کی لګيـږی
او دکوة اصل رقم فقیر ته نه رسيږي ،نو که څه هم زکوة خو اداء کيږي
خودا امرممنوع دی . ددي صورت ډیر ښه حل داکیدای شي چی لومړی
کمیټي ته له خپل ټول اصلي رقم څخه دکورجوړولو وکیل ونیسي او
کله چي کورتیارشي ،نوهغه کوردي دزکوة په نیت مسکین ته ورکړي
اودتل دپاره دي هغه ددغه کورپوره مالک وګرزوي ،نوهغه وخت دي
بیادکورجوړيدلو لګښت ته حساب وکړي اوله زکوة ورکونکي څخه
دي راواخلي ؛نودا صورت بلاکراهت ددوئ دپاره جوازلرلای شي .
په پورتنیو څلورو صورتونو کي که دنصاب خاوند په هرڅه او هرډول
(لکه دخبروکول ) زوراچاؤيائي هغه ته یو نه یوډول تکلیف
ورکاؤنو ټول ثواب ئي بربادیږي اودفقیرپه ملکیت کي هیڅ ډول
تاوان نه راځي .(ایضاح المسائل ۱۱۲مخ وفتاوی رحیمیه ۵جلد ۱۲۱مخ)

## دزکوة په روپو جوړشووکورونوويشل له شرائطو سره :

**پوښتنه**: کـه پـه لاندينیو شرطونو سـره مسـتحقینو ته دزکـوة پـه
روپو جوړشوي کورونه ورکړل شي ،نو دزکوة ورکونکوزکوة

اداء شوی دی او کنه ؟
(۱) ته به دغه کورترپنځو کلونو پوري په بل چانه خرڅوي، دزياتي مدي دپاره حد نشته.
(۲) دغه کور ستاد کاروني دپاره درکول کيږی . دا به کرايه دار ته نه ورکوي او بل چاته به ئي داستعمالولو دپاره نه ورکوي.
(۳) که دي دغه کور په کرايه ورکړيادي بل چاته داستعمال دپاره ورکړ، او بيا کميټه خبره شوه، نو ددي کور داستعمال حق در څخه اخيستل کيږي.
(۴) په کورباندي چي کميټي په مياشتني ډول څومره روپی. تاکلي دي هره مياشت هغه اداء کړئ اورسيدئي ترلاسه کړئ
(۵) دغه کوربه په کوم بل کورنه بدلوئ.
(۶) ددي کورچت (بام) به دکميټي په قبضه کي وي.
(۷) په راتلونکي کي به دکورخرڅولو او پريښودلو په صورت کي له کميټي څخه دنوي مخصوص کارت په اخيستلوسره . خپل کارمخته بوزئ
(۸) په پورتنيو شرائطوبرسيره به دکميټي له خوا وخت وخت راتلونکي حکمونه او شرائط هم منئ او په هغو به عمل کوئ.
**ځواب**: زړګيه ! زکوة خو هغه وخت اداء کيږي کله چي محتاج دزکوة دمال مالک وګرزول شي اودزکوة ورکونکي تړاو ورسره په کافي اوپوره ډول ختم شي . هغه دشرطونو لړی چي تاسو فرمائلي ده هغه دعاريت (په عارضي ډول چا ته دځه شي ورکولو ) شرطونه دي.
لهذا: که يو چاته په دغو شرطو دزکوة په روپو جوړشوی کورورکړل شو ، نوزکوة وباندي نه دی اداء شوی . دزکوة اداء کيدلو شکل دادی چي هرچاته چي دغه کورونه ورکول کيږي هغه دي ددوئ مالکان

وګرزول شي اودقانوني ملکیت کاغذونه (تیکټونه) دي داسي ورته جوړکړل شي چي هغه پخپله کورکي دهړدول تجاوزاوبدلون پوره حق ولري اوله هره اړخه ورباندي دکمیټي پابندي ختمه شي که داسي ونه شي ،نوپه زکوة ورکونکولازمه ده چي خپل زکوة دوهم ځل وباسي.
(آپ کي مسائل ۳جلد ۳۸۹مخ)

## د زکوة په روپوجوړوشووکورونو باندي کمه کرایه اخیستل :

**پوښتنه** : مونږ(۲) جریبه ځمکه په کرایه واخیستله،اوس اراده لروچي کورونهورباندي جوړکړواوبیائي غریبانوته په کمه کرایه ورکړواودغه کورونه دزکوة په روپوجوړیږي؛اود ځمکي کرایه مونږورکوو ،نوآیاددغه رنګه کورونوپه جوړلو کي دزکوة دروپوپه لګولوسره زکوة اداء کیږي اوکنه؟

**ځواب**: په پورتني صورت کي دزکوة په روپود ځمکي اخیستل یاکورونه جوړول روانه دي اودزکوة ورکونکو زکوة نه اداء کیږي ځکه چي دزکوة داداء دپاره داشرط دی چي دزکوة حقداربه ئي مالک ګرزول کیږي. اوداشرط دلته نشي ترسره کیدای.(فتاوی رحیمیه ۵جلد ۱۵۱مخ)

## غریب ته په زکوة کي بغیر له کرایي کورورکول :

**مسئله** : غریب دمال دیوي برخي مالک ګرزولوته زکوة ویل کیږي نفعه په زکوة کي نه ګڼله کیږي.

**لهذا** : که څوک یو کوربغیرله دي چي کرایه واخلي پوره یو کال غریب ته دزکوة په نیت ورکړي،نودهغه زکوة ورباندي نه اداء کیږي ځکه چي په دغه صورت کي دکوروال دنفع مالک ګرزول شوي دي. دمال مالک نه دی (یعني فقیرته دکرایي روپۍ ورکړلي شوي دي کوردهغه نه ی) او دغه ګټه (چي کرایه ده مادي شي نه دی ) (فقه الزکوة ۱جلد ۱۲۸مخ)

## دزکوة په روپو دغریب دکور رغونه :

**مسئله** : که مستحق ته دزکوة روپی ورنه کړي شوي بلکه دهغه دکورپه بیارغونه کی ولګول شوي ،نوزکوة نه دی اداء شوی .ځکه چي داضروري ده چي دزکوة روپی په غریب ته ورکولي کیږي او هغه به ئي په قطعي ډول مالک ګرزول کیږي ،بیادهغه خوښه ده چي کورورباندي جوړوي او که زوړکورپري بیرته له سره رغوي .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۴۱مخ)

## له حکومت سره تړلیو مدرسوته دزکوة ورکول :

**پوښتنه** : کومي مدرسي چي له حکومت سره تړلي وي هغو ته دسرسایي ،زکوة اودقربانئ دپوستکي ورکول څنګه دی . په داسي حال کي چي له مونږ سره ددي ویره ده چي که نن ته وي نو سبادغه مدرسي زمونږ له لاسه وزي او حکومت ورباندی قبضه کوي .

**ځواب** : که په دغو مدرسو کي دزکوة د روپو مستحقین موجود ؤ ،نوبلا کراهیت ورته دزکوة روپی ورکول روادی . (نظام الفتاوی ۱جلد ۳۲۲مخ)

**مسئله** : کله چي دمدرسي ضرورتونه له بلي خواڅخه پوره کیږي ،نوبیابایدددی دپاره حیله جوړه نکړل شي چي خامخادزکوة روپی په هغي ولګولي شي ،نوداچي ستاسو له پوښتني څخه ښکاره کیږي چي دغه مدرسه نیمه حکومتي ده نوځکه غریبان اوطالبان ترهغي زیات دزکوة حقداردي .(فتاوی محمودیه ۳جلد ۱۱۰مخ)

## دا تکلي مدرسي په نوم زکوة راټولول :

**پوښتنه** : یوچا دصدقو ،زکاتو او دقربانیو دپوستو کوروپی راټولي کړي چي فلانی ځای به مدرسه جوړوم ،خوهغسي ونشول (یعني

مدرسه ئي جوړه نکړه) نوآیا دغه روپۍ په بله مدرسه کي لګول کیدای شي، او که وئي نه لګوي نوخدای به ئي پري نیسي او کنه؟

**ځواب**: اول خو باید کوشش وکړي چي دغه راټولي شوي روپۍ پخپل ځای ولګوي، خو که مدرسه وربانډي جوړه نکړله شود، نوبلي مدرسي ته ئي هم ورکولای شي او بهترین ځای دلګښت ئي د ديني علم زدکونکي (طالبان) دي. اودروپو راټولونکي که دغه روپۍ په هغوو نه لګوي نوخدای جل جلاله ئي ورڅخه پوښتنه کوی او پري نیسي ئي. هغه هیڅ حق نه لري چي د پخپل شخصي ژوند په کاروکي ئي ولګوي .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۸۳مخ بحواله ردالمحتار۲جلد۱۴مخ)

## په دې امید چنده کول چي مستحق طالبان به راشي:

**پوښتنه**: مولوي صاحب مدرسه جوړه کړیده چي په خاص ډول صرف دعربي او فارسي علمونه پکښي ښودل کیږي او هغه ورته دهرډول چنده راټولوي او وائي چي که روپۍ جمعه شي نودلته به وربانډي دخوراک بندوبست کوي، آیا په دغه امید دهرډول چندي اخیستل روادی او کنه؟

**ځواب**: که دفي الحال مستحقو طالبانو دپاره راټولي شوي روپۍ کفایت نه کوي اوله دي وجي دخوراک بندوبست نه وي او مولوي صاحب په دي کوشش کي وي چي ددي بندوبست وکړي، اودهغه غالب امید ؤنو بیا دغه روپۍ هم وراخیستلای شي، مګرهغه دیته باید پوره فهم ولري چي کومي روپۍ دي له خلکو څخه دڅه دپاره رااخلي نوحتماً باید په هغه کي ولګیږي. دبعضي مدرسواومرستندویه ادارو دناکامي لومړنی سبب همداوي چي دوئ

داپه نظرکي نه نیسي چي دچندو په ذریعه راټوله شوي سرمایه کی څومره حرام مال ګډ دی. دوئ په غصبي روپو سره دمدرسي دبنسټ ډېره ایږدي چي بیا هغه دمدرسي دخرابئ ګډوډئ اوناکامئ سبب ګرزي اوددوئ په نزدیکت چي حرام خوړونکوشتمنوته ئي کوي ددي امت رښتوني علماء بي قدره کیږي اوپه مبارکونوموئي توررداغ اینبودل کیږي. (حاشیه فقه الزکوة ۲جلد۴۲۵مخ)

## د مدرسي مشر د طالبانو وکیل دی که د ورکونکو؟

**مسئله**: دمدرسي مشر(مهتمم) دمال خاوندانوپه صراحت سره وکیل کړی دی څکه چي هغوئ روپی ددي دپاره ورکوي چي په مناسب ځای ئي ولګوه.همدارنګه: دغریبانووکیل هم دی څکه چي کله طالبانو د هغه مشري (مهتمم) منلي دی نوګویادائي ویلي دي چي ته زمونږدپاره له شتمنوڅخه مالونه راټولوه اوزمونږ ضروریات (لکه خوراک څښاک جامي ) اوداسي نورورباندي پوره کوه .(فتاوی محمودیه ۳جلد ۴۸مخ و۱۳جلد ۲۲۰مخ)

**مسئله**: که دمدرسي خاوندان دطالبانوپه وکالت ومنل شي نوبیاداشک (چي دزکوة روپی به ناوخته یاسوکه ،سوکه مصرفیږي ) له مینځه ځي څکه چي ددوئ قبضه دطالبانو قبضه ده. اوکه دوئ دمالونودخاوندانووکیلان وبلل شي ،نوبیااصل دادي چي زکوة هغه وخت اداء کیږي کله چي په غریبانو(طالبانو ) باندي وویشل شي. نوکه ترویشلوله مخه اضطراري ضائع کیدل رامینځته شونوضمانت ئي دمدرسي په مشرانونه دی اودزکوة ورکونکوزکوة اداء شوی دی .(فتاوی محمودیه ۳جلد۴۱مخ)

**ا یا غریب مهتمم کولا ی شي مدرسي ته ورکړل شوی زکو ة استعما ل کړي؟**

**پوښتنه**: دمدرسي مهتمم صاحب مجبوردی او قرضداردی آیا کیدای شي چي دزکوة له هغو مالونه څخه چي دمدرسي دطالبانودپاره راټول شوی دی دهغه اولادته ورکړل شي؟

**ځواب**: مهتمم صاحب دزکوة اوصدقوورکونکووکیل وي هغه ته داحق نشته چي دزکوة اوصدقوورکونکوله شرط څخه خلاف هغه ولګوي. دهغوشیانو(چي خلک ئي مهتمم ته خاص ددي دپاره ورکوي چي په طالبانوئي ولګوه)دهغه لګول په اوستاذانواومهتمم ته پخپله روانه دی. (کفایت المفتي ۴جلد ۱۵۵مخ)

**ا یا مهتمم ته دزکوة دروپوپه ورسپارلوسره زکوة اداء کیږي؟**

**پوښتنه**: کله چي کومي مدرسي یاانجمن ته روپی ورکولي کیږی هغه دهیڅ مسکین ترقبضه لاندی نه راوستلي کیږي بلکه د هغومهتممینوته ورکولی کیږي هغه هم مسکینان نه وي، نوآیاپه دغه صورت کي زکوة اداء کیږی اوکنه؟

**ځواب**: مدرسوته چي دزکاتونوکومي روپی راځي نومهتمم ته پکاردی چي په داسي لګښت ځای کي ئي ولګوي چي دزکوة ورکونکی دزکوة اداء له هیڅ شک سره مخامخ نشي. هغه داچي دوئ بایدترهرڅه لومړی دغه مال دزکوة په یومسکین باندي قبض کړي اودهغه ملک ئي وګرزوي اوبیادي هغه بیرته پخپله خوښه دمدرسي مهتمم دمدرسي دمصارفودپوره کولودپاه ورکړي. داچي دزکوة دپاره دا شرط دی چي دغریب ملکیت به ګرزول کیږي ،نوځکه باید ترلګښت اوهرڅه اول داطریقه جوړه کړله شي. برسیره پردي طالبان

او مسکینان د زکوة یو بل لګښت ځای دی، د هغو په خوراک څښاک او پوښاک کي د زکوة د روپو لګښت بي له شکه روا دی او په مدرسو کي زکاتونو روپی په طالبانو او غریبانو باندي لګول کیږي په هر حال زکوة او صدقو ورکونکو ورونو ! تاسو په دي اړوند هیڅ شک زړه ته مه اچوئ په داډه زړه خپل زکاتونه او صدقي مدرسو ته ورکړئ او په دي کي به انشاء الله ستاسو دپاره بل اجر او ثواب دی. (فتاوی دار العلوم ۲ جلد ۸۲ مخ بحواله ردالمحتار ۲ جلد ۱۲ مخ)

**مسئله**: زکوة هغه وخت اداء کیږي چي په طالبانو باندي دغه روپی په یونه یو ډول وویشلي شي یعني یا وږته خوراک پري برابر کړشي یا جامی ورته پري جوړي کړلی شي او یا په نغدي ډول ورته وویشلي شي. او په مدرسو کی اکثراً دا رنګه کار صورت نیسي چي د مدرسي مهتمم او نور کار کونکي اول د زکوة روپي د چا (غریب) ملک ګرزوي او بیائي د مدرسي خزاني ته ځي او بیا د لګښت تروخته هلته ساتلي وي. (فتاوی دار العلوم ۲ جلد ۸۹ مخ بحواله ردالمحتار ۲ جلد ۱۵ مخ)

## د مختلفو ډولونو روپی یو ځای جمعه کول:

**پوښتنه**: یوه مدرسه ده چي ورته په بیلا بیلو نومونو روپی ورکولي کیږي لکه د زکاتونو، د مسجد جوړولو، خیراتو او داسي نورو، د مدرسي مهتمم هغه ټولي را جمع کوي او یو ځای ئي ساتي هغه چي جمع شوي دي او هغه چي دا وخت راځي سره جلا کوی د لګښت په وخت چي هر ډول روپی د څه د پاره وي هغه په خپل ځای لګولي کیږي نو آیا په دغه طریقه زکوة اداء کیږي او کنه؟ ځکه چي هغه روپی چي یو چا د مسجد جوړولو د پاره ورکړي دي د مسجد په جوړولو کي ولګولي شي او کنه؟

**ځواب**: که رواج داسي وي چي مهتمم دغه بيلابيل مالونه سره ګډول نو بيا ددي کارکول مهتمم ته روادی او ضمانت ئي د هغه په غاړه نه دی په دي شرط چي د هرڅه دپاره دروپو ورکونکي هم په دي خبروي او که رواج داسي نه وي نو بياد مهتمم دپاره له دی طريقي څخه کار اخيستل ناروادی او ضمانت ئي د هغه له غاړي دی او دد غه جواز په صورت کی دي د هرمالک دروپو په اندازه د مؤکل له ګډ وروپو څخه واخلي او په ټاکلي مصرف دي ولګوي ،نو په دي ډول به د زکوة ورکونکو زکوة اداء شي او د مسجد دودانی جوړونکي له طرفه به د مسجد وداني جوړه شي. او که مهتمم د زکوة له روپو سره بي پروائي کوي او په داسي ځای ئي لګوي چي مناسب نه وي او زکوة ورکونکي ورڅخه خبر نه وي ،نو د هغو اخروي مسئوليت او محاسبه به له مهتمم سره وي. مګر د زکوة ورکونکي زکوة اداء کيږي او که زکوة ورکونکي خبر شي نو حق نه لري چي تلف شوي روپۍ له مهتمم څخه واخلي او بيا زکوة اداء کړي.

(۲) فقهاؤ رحمة الله عليهم داحکم ورکړی دی چي هغه وخت چي ګډوي جمعه شوي روپۍ په خپل خپل ځای ولګولي شي او د ګډون درواج لرلوله وجي د مالکانو له طرفه دلالةً اجازه خط واخيستل شي ،نو په دي سره به هم د زکوة ورکونکي د زکوة اداء له شکه خلاصه شي او هم به د مهتمم په ذمه نه ګناه وي او نه څه ضمانت. (کفايت المفتي ۴ جلد ۲۲۲ مخ)

## د مدرسي د روپو حکم:

**مسئله**: د مدرسي روپۍ د هغي له مشر (مهتمم) سره امانت دي. د مهتمم دپاره داروانه ده چي د مدرسي روپۍ پخپلو کاروکي

ولګوي. او که ئې ولګوي نو بیرته اداء کول (مدرسي ته ورکول) ئې واجب دي. (فتاوی محمودیه ۳ جلد ۱۱۰ مخ)

## په مدرسو کې دزکوة دروپود لګښت یوه بله طریقه:

**پوښتنه**: دلته یو مکتب دی چې قرآن کریم، پښتو او دنیات پکښې لوستل کیږي د مدرسې لګښت دڅندي له روپو څخه (چې اته زره دی) او دفیس له روپو څخه (چې دوه زره دي) نه پوره کیږي بلکه میاشتنی لګښت ئې (۱۸) زره روپۍ دی، نو که مونږ ئې پاتې لګښت دزکوة په روپو پوره کړو نو زکوة اداء کیږي او کنه؟

**ځواب**: دزکوة په روپو د مدرسې جوړول او دا وستاذانو په تنخواه کې ورکول روا نه دی او زکوة هم نه اداء کیږي او د جواز صورت ئې دا دی چې فیس دی لوړ کړي او دزکوة روپۍ دې په میاشتني ډول د مرستې په څیر غریبانو طالبانو ته ورکړي او بیا دې بیرته ورڅخه په فیس کې واخلي، نو په دې ډول به زکوة اداء شي او بیا دې وروسته هغه دا وستاذانو په تنخواه یا د مدرسې په نور لګښت کې ورکړي.

(فتاوی رحیمیه ۵ جلد ۱۵۰ مخ)

## دزکوة د روپو دا وستاذانو په تنخواکې ورکولو یوه لاره:

**مسئله**: دزکوة اصلي حقداران فقیران او مسکینان دي، مدارسو ته باید خاص د پاک خدای جل جلاله د پاره روپۍ ورکړلی شي. اصلاً بهتري په دې کې ده چې زکوة غریبو طالبانو ته ورکړل شي خو ډیر خلک خپل زکاتونه مدرسو ته ورکوي، که د مدرسې مهتمم ئې ورڅخه نه رانیسي نو د مدرسې چلول او دا استاذانو تنخواه ګانې پوره کول بغیر له هغه ګران کار دی، نو ځکه د دغې مجبورئ په صورت کې د

ضرورت په اندازه دزکوة د روپو د پاره حیلي جوړولو او له هغې څخه داوستاذانو د تنخوا ګانو پوره کولو ګنجایش شته. دمدرسي دتعمیرپه اړه بنه خبره داده چي پکښې ونه لګولي شي او دهغه دپاره له خلکو څخه خاصې روپۍ راټولي کړلي شي. (فتاوی رحیمیه ۵جلد ۱۵۴مخ وفتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۱۱مخ)

## دزکوة په روپو د مدرسي دپاره ودانۍ او ځای اخیستل:

**مسئله**: دزکوة په روپو باندي دمسجد او مدرسي جوړول روانه دی، ځکه چي په زکوة کي تملیک دفقیرانو شرط دی. ترهغو پوري چي فقیر دزکوة دمال مالک نه وي ګرزول شوی زکوة نه اداء کیږي. (فتاوی دارالعلوم)

**مسئله**: زکاتونه، عشراو ټولي واجبي صدقي لکه سرسایه او کفاري په تنخواه ګانو او مدرسي یا مسجد په جوړولو کي لګول روانه دی، بلکه په غریبانو او طالبانو به ئي لګوي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۰۷مخ)

## دزکوة روپۍ غریب ا وستاذته ورکول:

**پوښتنه**: دمکتب ښوونکي ته دیوې اداري له خوا څه تنخوا راتله او څه بیا ورته دچندی له لاري پوره کیدله مګر اوس هغه لاري وتړل شوي خو مکتب ته یو چادرزکوة روپۍ ورکړي دي ایا موږ کولای شو هغه دښوونکي په تنخوا کي ورکړو؟

ځواب: که یو څوک غریب او ستادته دزکوة روپۍ دزکوة ورکونکي په اجازه په میاشت کي لږ لږ دمرستي په ډول ورکوي نو دارواده، په دې صورت کي زکوة هم اداء کیږي، او له ښوونکي سره هم مرسته کیږي - خو له دغو روپو دزکوة څخه دتنخوا جوړول روانه دي، او که ئي په تنخوا کي ورکولي بیا دي لومړي بغیر له قید او شرطه دیو غریب ملک وګرزوي او بیا دي هغه تشویق کړي چي زمونږ دکلي مدرسه ډیره

مسکینه ده ، که ته دغه روپۍ د پاک خدای جل جلاله درضالپاره دغي مدرسي ته ورکړي ، نودا به دي ډیر لوی احسان او اجروي مونږ به له دي څخه استادته تنخواورکړو ، نو که غریب ددوي دغه غوښتنه ومنله او روپۍ ئي واپس دوي ته ورکړي نو بیا دوي کولاي شي له هغو څخه اوستاد ته تنخواه ورکړي.(فتاوي رحیمیه ۵ جلد ۱۵۷مخ

## دزکوة روپۍ خپل اوستادته ورکول

**پوښتنه**: یونفر دمدرسي زده کونکوته ډوډۍ ،چاې او ترکاري پخوي بل نفر دهغوي لپاره دال غوړي ،مالګه ، مصاله اونورسامان راوړي ،نوایاهغوته په اجرت (مزدوري ) کي دزکوة روپۍ لګول روادي او کنه ؟ دغه رنګه دمدرسي داستازي په لګښتونو کي دزکوة روپۍ لګول روادي او کنه ؟ دغه رنګه دزکوة په روپو دزده کونکو اودبرق ، اوبو او ځای کرایه دزکوة له روپو ورکول روادي او کنه ؟

**ځواب** : دکوم کار په بدله کي دزکوة روپۍ ورکول روانه دي ،په مزدوري او کرایه خوارک کي هم دزکوة روپۍ نشي ورکول کیدای ،همدارنګه داستازي په لګښتونو او خوراک کي هم دزکوة دروپو لګول روانه دي دزکوة روپۍ به مسکین ته بلاعوض ورکولي کیږي ، دزکوة په روپو دکتابخاني لپاره کتابونه اخیستل هم روانه دي او په ځای ، برق ،اواوبو کي په ورکولو کي یي هم زکوة نه اداء کیږي . دزکوة روپۍ دي طالبانو ته ورکړي ، تر خو هغوي پخپله دځان لپاره کتابونه واخلي ، اودبیرته واپس کیدلو شرط پکي نه وي فتاوی رحیمیه ۵ جلد ۱۲۳مخ

**پوښتنه** : طالب العلم ته دزکوة ورکول روادي او کنه؟

**ځواب**: له (ردالمحتاردوهم جلد ۸۱مخ باب المصرف ) څخه معلومیږي چي شتمن (غني ) طالب ته زکوة ورکول روانه دي ،دهغه

دعلمي بوختياله امله صرف دااجازه ورته شته چي په کارلګيا کيدل ورته ضروري نه دی که غريب شي نوبيا کولای شي زکوة واخلي.
(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۴۴مخ واحسن الفتاوی ۴جلد ۲۵۲مخ وفقه الزکوة ۲جلد ۳۲مخ)

**مسئله** : څه په (في سبيل الله) کي طالب العلم هم داخل دی، خودزکوة ورولو د پاره غربت پکښي شرط دی .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۵۲مخ)

**مسئله** : هغه طالب العلم ته چي غني وي او مسافرنه وي د زکوة ورکول او اخيستل دواړه حرام دي، اودزکوة ورکونکي زکوة نه اداء کيږي
(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۲۳مخ)

**مسئله** : علامه شامي رحمة الله عليه هم پورتنی قول چي غني(صاحب نصاب) طالب العلم ته دزکوة ورکول حرام دی راجح او غوره ګڼلی دی
.(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۸۰مخ بحواله ردالمحتار ۲جلد ۸۶مخ)

## کوم زده کونکي چي ددیني علم ترڅنګ د شيانو جوړول اونورکسبو نه هم زده کوي :

**مسئله** : دزکوة روپۍ دطالبانو او مسکينانو په خوراک او پوښاک کي لګول کيدای شي که څه هم هغوئ دصنعت ، کسبونو اوديني علم ترڅنګ دانګريزي ژبه هم دژبي پنوهيدني په غرض زده کوي.
(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۵۱مخ بحواله ردالمحتار ۲جلد ۸۵مخ وفتاوی محموديه ۳جلد ۲۰مخ)

## دمدرسي دقوانينو څخه نه مراعت کونکو طالبانوته دزکوة ورکول

**پوښتنه** : دمدرسي هغه ضروري قوانين چي په زده کونکو ئي پوره کول لازمي وي که يوزده کونکی پوره نه کړي ،نو هغه زکوة به چي هغه ته ورکول کيږي اداء شوی وي او کنه؟

**ځواب**: دمدرسو دا يوه عامه قاعده ده چي دزکوة مال لومړی ديو غريب ملک ګرزوي بيائي هغه غريب بيرته دمدرسي دلګښت

پوره کولو د پاره دهغې مشر یا کارکونکو ته ورکوي ،نو څکه په دي سره دزکوة په اداء او نه اداء کي هیڅ فرق نه راځي. دزکوة اداء هغه وخت وشوه کله چي په لومړي ځل دغریب ملک و ګرزول شو. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۶۷مخ)

## هغو طالبانو (دیني زده کونکو) ته چي دائي معلوم نه وي چي غریب دی او که شتمن دزکوة ورکول:

**پوښتنه**: که دمدرسي مشر(مهتمم) ته دا معلومه نه وه چي د طالب مور او پلار یا سرپرست دنصاب خاوند دی او کنه، نو په دغه صورت کي له طالب العلم سره دزکوة په روپو مرسته کول روا دی کنه؟

**ځواب**: د دي معلومول ضروري دی؛ خو که طالب پخپله ووائي چي زه غریب یم او زما مور پلار هم غریبان دي، نو دهغه له وینا سره سم دزکوة ورکول روا دی. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۲۰مخ عالمگیري مصري ۱جلد ۱۹۰مخ)

**مسئله**: مستحقو طالبانو (ددیني علم زده کونکوته) دزکوة له روپو څخه وظائف (هغه روپی چي زده کونکي ته لازیات تعلیم حاصلولو دپاره دمرستي په ډول ورکولي کیږي) ورکول هم روا دی.

## استازي ته دزکوة دروپو بدلون:

**پوښتنه**: زید دمدرسي دپاره چنده کوي او خلک ورته دچندي په لړکي دزکوة او سرسایي روپی هم ورکوي، داوخت زید د مدرسي دپاره پنځوس زره روپی تولي کړي دي، نو که هغه خپل ورور ته لیک ولیږي چي دلته له ماسره دمدرسي پنځوس زره روپی موجودي دي، نو ته مدرسي ته زماله طرفه پنځوس زره روپی ورکړه، نو دغه رنګه کول روا دی او کنه؟

**ځـواب**: دمدرسـي پـه چنـده کـي چـي کـومي دزکـوة روپـی دي دهغومدرسي ته دورلیږلو په ځای که یو څوک وروریابل چاته ولیکي چي دغـومره روپـی. څـومره چـي لـه ماسـره دي مدرسـي تـه ورکـړه داروادی.دمدرسي مشران چي هرکله دزکوة روپی. دزکوة دلګښت په مناسب ځای کي ولګوي هغه وخت به زکوة اداء شي.

**یادونه**: مدرسي ته دروپوورکولوروسته که دمدرسي روپی په خپل ذاتي لګښت کي لګوي نولګولای ئي شي، خو مدرسي ته ترورکوله مخه ئي داستعمال اجازه ورته نشته.(فتاوی رحیمیه ۵جلد ۱۲۰مخ)

## استازي ته دزکوة دروپواستعما ل:

**پوښتنه**: بعض له هغوخلکوڅخه چي مدرسوته چندي راټولوي شتمن وي،نوکله چي هغوتـه دچندي ټولوپـه سفرکي خپلي ذاتـي روپـی ورختمـي شـي،نودزکاتوله هغوروپـو څخـه کـاراخلي چـي خلکودمدرسـي دپـاره پـه زکـوة کـي ورکـړي دي خوبیـا چي کورتـه راورسیږي نوبیرته هغومره روپی مدرسي تـه ورکوي،آیاداسي کول دوئ ته روادی اوکنه؟

**ځواب**: دوئ ته دزکاتونودروپولګول روانه دی،یاخوئي بایدله کوره څخه وروغواړي اویادي له چاڅخه قرض واخلي.

(فتاوی رحیمیه ۵جلد ۱۲۴مخ وفتاوی محمودیه ۱۲جلد ۲۲۴مخ)

## که له استازي څخه دزکوة روپی ضائع شوې:

**مسئله**: که دمدرسي له استازي(نمائنده) یامهتمم څخه د زکوة روپی غلوواخیستلي اویاپـه بـل ډول ورڅخه ضـائع شـوي اودوئ دهغولـه حفاظت څخه هیڅ قدرت سپمولي نه ؤ،نوتـاوان ورکـول ئي ورباندي

لازم نه دی، او دزکوة ورکونکي زکوة اداء شوی دی. ځکه چي دغه خلک (استازي یا مهتممین) عملاً هم او عرفاً هم د مستحقو طالبانو وکیلان دي او د وکیل قبضه داسي ده لکه د فقیر قبضه. او که دوئ ئي په ساتلو کي بي غوري کړي وه، یائي د زکوة په روپی بدلي کړي وي او یائي له خپلو شخصي روپو سره ګډي کړي وي نو په دوئ ئي د تاوان پري کول واجب دی او پري لازمه ده چي له خپل جیب څخه دغومره روپی مسکینانو ته ورکړي. (درمختار ۲جلد ۳۲۹مخ وامداد الفتاوی ۲جلد ۱۴مخ ومحمودیه ۳جلد ۴۱مخ)

## طالب العلم ته زکوة ورکول څنګه دی؟

**مسئله**: که یو څوک د خوراک او څښاک د ومره سامان را واخلي څومره چی ورباندي زکوة واجب دی او پاخه ئي کړي او مستحق طالب یا بل چا ته ئي په داسي ډول ورکړي چي په پوره ډول د هغه ملکیت وګرزي (د میلمستیا په ډول نه) نو هم زکوة اداء کیږي. (فتاوی محمودیه ۷جلد ۲۵۵مخ و درمختار ۲جلد ۲۵۷مخ)

## بغیر له ملکیت له پخنځي څخه خوراک ورکول:

**پوښتنه**: که د مدرسي مهتمم د زکوة په روپو باندي پخلنځای جوړ کړي او بلا ملکیت ئي د مدرسي طالبانو ته خوراک ورکاوُ، نو په دغه صورت کي زکوة اداء کیږي او که نه؟

کله چي طالب داواک و نه لري چي که خوراک هر ډول کوي هغسي ئي کولای شي، نو کوم داسي صورت به وي چي د زکوة روپی پکښي ولګولي شي؟

**ځواب**: په زکوة کي داضروري ده چي هغه به د غریب ملک ګرزول کیږي. او د طالبانو د خوراک د غه صورت چي تا لیکلی دی تملیک (د غریب د ملک ګرزیدلو) صورت نه دی او په دغه ډول زکوة هم نه

اداء کيږي. ددي سمه طريقه داده چي اول دي دزکوة مال (روپۍ وي او که بل شی) دکوم مسکين ملک وګرزوي اوبيادي دمدرسي په داخل کي دطالبانو په خوراک قبلونکي له خپل طرفه ولګوي.

(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۳۴مخ بحوالهخ ردالمحتار ۲جلد ۱۲مخ)

دمدرسو چلونکي بايد په کلکه ددي خيال وساتي چي دزکاتو روپۍ کومي چي دوئ له خلکو راټولوي که په بالغانو لګولي کيږي نو هغه به پخپله به دنصاب خاوندان نه وي او که په نابالغو لګولي کيږي نو دهغو به پلرونه يا سرپرستان دنصاب خاوندان نه وي. او نه بايد دزکوة روپۍ چاته په اجرت کي ورکړي (محمد رفعت قاسمي رحمة الله عليه)

## ا يا دمدرسي اوستاذان کولای شي د مدرسي له پخلنځای څخه خوراک وکړي؟

**پوښتنه**: بعض مدرسي دي چي استاذانو ته ئي ورکيدونکي خوراک هم ورشميرل کيږي، يعني دهغه دتاکلي مياشتنۍ تنخواه يوه برخه ورڅخه په خوراک کي دمدرسي له طرفه کاټيږي نو دهغو مالونو خوړل چي مدرسي ته دزکوة اوصدقو په ډول مدرسي ته ورکول کيږي استاذانو ته روادی او کنه؟ په داسي حال کي چي استاذان دخوراک قيمت اداء کوي.

**ځواب**: څومره اندازه چي استاذان جزوآ تنخواه په طور خوري هغومره اندازه زکوة نه دی اداء شوی. ددي حساب کول ضروري دی. دغه رنګه حال د نورو ملازمينو او مستحقينو دلګښت هم دی.

(فتاوی محموديه ۱۲جلد ۲۲۳مخ)

## د خاصو طا لبا نواشپزته دزکوة له روپو څخه اجرت ورکول

**مسئله** : کوم اشپز(پخونکی) چي خاص طالبانو ته خوراک تیاروي هغه ته اجرت (تنخواه) دعشراوزکوة له روپو څخه ورکول کیدای شي (احسن الفتاوی ۴جلد۲۹۲مخ)

دلته له طالبانو څخه هغه طالبان مرادي چي مستحقین وي. مګر د طالبانو له عامه پخلنځای څخه مستحق او غیر مستحق لکه استاذان هم خوراک کوي، نو ځکه په دغه مسئله کي ډیراحتیاط کول پکاردی .(محمدرفعت قاسمي صاحب)

شتمنو(نابالغو) زده کونکوته دزکوة له مال څخه دوظیفي ورکول ناروادی. (فتاوی دارالعلوم ۶جلد ۲۸۹مخ بحواله عالمګیري۱جلد ۱۷۷مخ)

## د دیني علم زده کونکي ته د سوال کول څنګه دی؟

**مسئله** : دفقهي شریفي دعلم پوهانو(رحمة الله علیهم) مسکین دیني زده کونکي ته دسوال کولواجازه ورکړي ده، مګرداهغي زماني خبره ده چي په عواموکي له دیني علم څخه کرکه او نفرت نه ؤ، په ننني زمانه کي چي د دیني علم له زده کونکوسره او دهغو دعلم په وړاندي نفرت موجود دی طالب العلم ته دسوال کول جوازنه لري، ځکه چي په دي کي د دین تحقیراوتذلیل دی، دوئ بایدله شتمنواو بډایانو څخه بې پرواوسي او په خپل خدای جل جلاله توکل وکړي .(احسن الفتاوی ۴جلد۲۵۸مخ)

## ایادزکوة ورکولودپاره دطالب العلم دحال څیړنه ضروري ده؟

**مسئله** : په طالبانو کي بل قید داهم دی چي هغه به دزکوة له لګښت ځایونو څخه وي یعني دنصاب خاوندبه نه وي، سیّد به نه وي او که هغه طالبان چي زکوة ورکول کیږي نابالغ وي،

نو دهغو موراو پلار یا سرپرست به دنصاب خاوند نه ي. او بالغ فقیر طالب ته دموراو پلار یا بل سرپرست بډاینه (شتمنو توب) دزکوة اخیستلو اوورکولو مانع نه دی. او طالباتو ته دزکوة په روپو دجامواو کتابو اخیستل هغه وخت روادی چي دوئ لو یان پخپله دنصاب خاوندان نه ي او دکوچنیانوئي موراو پلار دنصاب خاوندان نه وي ددي د معلو مولو د پاره باید کوشش او تحقیق وشي.

(فتاوی دار العلوم ٦جلد ٢٦٩مخ رد المحتار ٢جلد ٨٨مخ)

## که خوراک پوخ کړل شي او په غریبانو وخوړل شي نوزکوة اداء کیږي؟

**مسئله**: دزکوة اداء کیدلو د پاره داشرط دی چي هغه به د غریب ملک گرزول کیږي. طالبانو ته دخوراک پخولواو پړي خوړلو سره تملیک صورت نه نیسي. دوئ باید د خوراک مالکان وگرزول شي. نوډیره سمه طریقه داده چي لومړی دي غریبو طالبانو ته دزکوة روپۍ ورکړي بیادي ورته ووائي چي دخوراک او څښاک فیس راکړئ، کله چي طالبان بیرته هغه روپۍ ورته ورکړي نوبیادي هغه په خوراکوکي ولگوي په دي ډول به هم زکو اداء شوی وي او هم به طالبانو ته دوډئ رسیدلي وي. اویادي ددار العلوم دیوبند په څیر طالبان دخوراک پوره بي شرطه مالکان وگرزول شي. (فتاوی رحیمیه ۵جلد ۱۷۲مخ و محمودیه ۳جلد ۸۸مخ)

**مسئله**: که خوراک په داسي ډول غریبانو ته ورکړشي چي د غورزولو، خوړلو او بل ته ورکولو هرډول اختیارئي له غریب سره وي، نوخومره قیمت چي دخوراک وي هغومره زکوة هم اداء شو، او که پورتني واک ئي له غریب سره نه وي بلکه خوراک ورته په نژدي داسي

ډول ورکول کیږي لکه میلمستیا ، نوزکوة وربانديي نه اداء کیږي ځکه
چي په میلمستیا(دعوت) کي ملکیت نه وي.
مسئله: دغه رنګه که پوخ شوی خوراک یاګنډل شوی جامي ددومره
قیمت نه وي څومره چي زکوة واجب دی، دمثال په ډول جامي
یاخوراک خراب شوی ؤ، نوڅومره قیمت چي دخرابي په وجه کم شوی
دی هغومره زکوة به نوربا سي .(امدادمسائل زکوة ۴۳مخ وفتاوی محمودیه ۳جلد ۵۲مخ)

## مسافرته دزکوة ورکول او اخیستل څنګه دی؟

**مسئله**: مسافرته دزکوة اخیستل روادی خو هغه وخت چي هغه دلته دنصاب
خاوندنه وي، که څه هم دهغه په کورکي وي. (فتاوی دارالعلوم۲جلد ۲۸۳مخ بحواله ردالمحتار۲جلد ۸۸مخ)

**مسئله**: یوڅوک دی چي په خپل کورکي ډیرشتمن دی مګرپه سفرتللی
ؤچي هلته اتفاقاً ورسره مال ختم شو، تول شته ورڅخه چاغلاکړل
یادارنګه بله پیښه وشوه. اوس هغه داسي مجبورؤچي ترکوره ئي
ځان نشوای رسولای، نوهغه ته هم زکوة ورکول روادی؛ همدارنګه که
داسي حاجي ته چي په کورکي ډیرمالداردی دحج په لاره کي خرڅ
ورختم شونوهغه ته هم زکوة ورکول روای .(امدادومسائل زکوة ۷۳مخ وعالمګیری ۱جلد ۱۸۲مخ)

## دمسافر قرض له زکوة څخه اداء کول:

**مسئله**: که دغه مسافرخاوند دنصاب نه ؤاوسید هم نه ؤ، نوهغه ته
زکوة اودومره روپۍ دزکوة ورکول چي وربانديي دهغه قرض اداء شي
روادی څنګه چي دقرآن کریم دتوبي سوزة په دغه آیت مبارک کي
راغلي دي (اِنَّمَا الصَّدَقَاتُ ط الاية )(فتاوی دارالعلوم۲جلد ۲۸۱مخ بحواله هدایه۱جلد ۱۸۸مخ)

## مسافر ته دروپوورکولوپه ځای تیکټ (کرایه ورکول) وراخیستل

**پوښتنه**: یومالداره سړی زکوة په داسي ډول اداء کوي چي کله

يو مسافر پيدا کړي نو خپل نفر ترا ډې پوري ورسره ليږي او هلته ورته د تلو د پاره ټيکټ کوي ، نغدي روپۍ ورته په لاس نه ورکوي نو که مسافر څه عذر په وجه لاړ نشي او ټيکټ برباد شي نو د دغه سړي زکوة به اداء شوی وي او کنه؟

ځواب: که دغه شتمن د مسکين مسافر په اجازه سره هغه ته ټيکټ اخلي ، نو له مسافر سره تلونکي سړي د مسکين وکيل په قبض کولو او ټيکټ اخيستلو کي کيداى شي . څنګه چې د شتمن وکيل دی نو ځکه د ما لداره سړي زکوة که په پورتني صورت سره وي ، نو اداء شوی دی ، او که هغه مسافر بيا له څه وجي معطل شو او ټيکټ ئي له کاره ولويدی هم د ما لداره سړي زکوة اداء شوی دی . (فتاوی دار العلوم ۲ جلد ۱۹۷ مخ بحواله رد المحتار ۲ جلد ۱۴ مخ)

**پوښتنه**: که ديو چا د خوراک پخلو خدمتګار غريب وي ، نو هغه کولای شي زکوة يا سرسايه ورکړي؟

**ځواب**: که څوک خپل د خوراک پخو لو خدمتګار يا خدمتګاري ته په دي نيت زکوة يا سرسايه ورکوي چي هغه مسکين دی ؛ نو روا ده او که په تنخواه کي ئي ورکوي بيا روا نه دی . که هغه مسکين وي نو په تنخواه برسيره چي هر څه ورکول غواړي هغه دي ورکړي .

(فتاوی دار العلوم ۲ جلد ۲۴۵ مخ بحواله رد المحتار ۲ جلد ۸۹ مخ)

**مسئله**: خپل غلام او مينځي ته زکوة ورکول روا نه دی . خو هغه خلک چي شرعي غلامان يا مينځي نه وي لکه نن سبا چي په هندوستان کي په کورو کي او سيدو نکي خادمان او خادماني دي هغه غلامان نه دي هغو ته د زکوة او سرسايي ورکول روا دی که غريبان وي ، مګر له زکوة او سرسايي څخه به ورته تنخواه نه جوړوي .

(فتاوی دار العلوم ۲ جلد ۲۵۵ مخ بحر الرائق ۲ جلد ۲۴۴ مخ عالمګيري ۱ جلد ۱۹ مخ)

## اذان ویونکی اوامام ته دعشر اوزکوة ورکول څنګه دی:

**مسئله**: دعشر دلګښت ځایونه هم هغه دي کوم چي دزکوة دپاره ټاکل شوي دي، نو څنګه چي زکوة دامامت په تنخواه کي ورکول ناروا دی هماغسي دعشر، اوسرسایي ورکول هم دامامت په تنخواه کي ناروادی. دورکیدو په صورت کي سرسایه، زکوة او عشر او نوري واجبي صدقي نه اداء کیږي. اوپه نه جوازئي ټول فقهاء رحمة الله علیهم هم رغید لي دي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۷۲مخ بحواله ردالمحتار ۲جلد ۷۹مخ)

**مسئله**: صرف په دي سره څوک مستحق نشي ګرزیدای چي دمسجد امام دی؛ داجرت په ډول هیڅ یو امام ته زکوة ورکول روانه دی. (فتاوی محمودیه ۷جلد ۲۳۲مخ)

## درواج له مخي اما م ته زکوة ورکول څنګه دی؟

**پوښتنه**: زمونږ په علاقه کي یو ډول رواج دی چي دمسجد امام ته هیڅ ډول تنخواه نه ټاکي بلکي صرف زکوة ورکوي. دامام دټاکلو پروخت داخبره نه سره خلاصوي چي زه ستاسو امامت کوم او تاسو ماته زکوة راکوئ، نو څکه امام ته هم معلومه وي چي قوم به زکوة ماته راکوي اوقوم ته هم؛ نو آیا دغه ډول زکوة اداء کیږي او کنه؟

**ځواب**: که څه دمسجد له امام سره دغه فیصله نه وي شوي چي دزکوة له روپو څخه به تنخواه ورکوي خود (المعروف کالمشروط) داصل مطابق کوم شی چي له پخوا څخه په ذهن کي فیصله شوي وي هغه داسي دی لکه چي شرط ئي لګول شوی وي. څنګه چي تروخت له مخه دامام اوزکوة ورکونکو په ذهنو کي داخبره شته چي امام ته ټاکل شوي تنخواه نه ده ورکړله شوي هغه ته به زکاتونه ورکول کیږي

،نو ځکه ویلای شو چي دزکوة له روپو امام ته تنخواه (یاپه بل ډول دامامت اجرت (ورکول روانه دی خو که داسي وکړي چي دامامت اجرت ئي جلا وکړی او بیا دهغه دغربت په وجه زکوة هم ورته ورکړي نو دارو ادی .(آپ کي مسائل ۳ جلد۲ ۴۰۲مخ)

## دزکوة له روپو څخه مبلغینو ته امتیاز یا تنخواه ورکول:

**پوښتنه**: دزکوة له روپو څخه مبلغینو ،او طالبانو ته هغه ځانګړي مرسته چي یادهغو دښه کارکرده ګي له خاطره ورکوله کیږي یادلازیات کارکولو له خاطره ورکوله کیږي روادی او کنه؟

ځواب: طالبانو او مسکینانو ته وظیفه دزکوة له روپو څخه ورکول روادی ،او دمبلغینو په تنخواه ورکولو کي دتملیک حیله جوړول ورته شرط دی .بغیرله حیلې جوړولو ورته روانه دی ځکه چي په زکوة کي تملیک شرط دی .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۷۵مخ بحواله رد المحتار۲ جلد ۷۹مخ)

## دتبلیغي جماعت په غړیو دزکوة لګول:

**مسئله**: که دتبلیغي جماعت غړي غریبان وي نو زکوة ورکول کیدای شي مګر صحیح نه ده چي دوئ دزکوة صحیح لګښت ځای وبلل شي (یعني صحت ورپوري انحصار شي)

**یادونه**: بعض خلک له زکوة څخه ددنیوي مقاصدو دپاره ګټه اخلي چي دادشریعت له خلوص او روحیې سره په ټکر کي دي دمثال په ډول خلک خپلو هغو مزدورانو ته چي مستحق دزکوة هم وي په دي خیال زکوة ورکوي چي دوئ په دي سره نور هم زما په طرف راتول شي او ددغه احسان په وجه په ښه ډل زما کارونه سرته ورسوي داسي خلک هم شته چي کله ددوئ په کارکي خرابي ووینې نو په خپله ژبه

ورته وائي چي دازه خوپه تنخواه برسيره له تاسره دمرستي په خاطر زكوة هم دركوم مګرته احسان هيرونكى ئي اوداسي نور ،نوكه دمسئلي له نظره ورته وركورونوزكوة ئي اداء شوى دى خودمقبوليت پوښتنه ئي مه كوه ! ځكه چي په عظيم الشان قرآن كي دى چي (قَوْلٌ مَعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِنْ صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَا أَذًى وَاللهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ ۲۶۳) دبقري سورة) (محمد رفعت قاسمي غفرله الله)

## نوكر ته دزياتي تنخواه غوښتنه په زكوة وركوره كول :

**پوښتنه**: زمايومزدوردى چي دتنخواه دزيات توالي غوښتنه ئي كوله ،نومادزكوة په نيت دهغه تنخواه زياته كړه ،نواوس هغه دافكركوي چي زمايه تنخواه كي زيادت شوى ى آيايه دغه ډول زكوة وركول صحيح دى اوكنه؟

**ځواب**: دملازم تنخواه خودهغه دكاربدله ده ،نوكله چي تادتنخواه دزياتوالي په نوم زيادت وكړنوهغه هم دكاربدله ده ،نوځكه په دغه ډول زكوة نه اداء كيږي كومه تنخواه چي تاكلي شوي دهغي له اداء، كولووروسته كه مزدور محتاج اوغريب ؤ ،اوبيازكوة وركړل شو ،نوزكوة اداء شوى دى .(آپ كي مسائل ۳جلد ۳۸۴مخ)

## خادم ته دوخت ترمخه دزكوة په نيت دروپووږپريښودل :

**مسئله**: ماخپل مزدورته تروخت له مخه روپۍ دبيرته راكولو په شرط وركړي دي ،خواوس زه ښه پوهيږم چي هغه به ئي اداء نكړاى شي ،نوكه زه دغه روپۍ دزكوة په نيت پسي وركړ پرېږدم نوزمازكوة به اداء شوى وي اوكنه؟

**ځواب**: دزکوة دورکولو په وخت دزکوة نیت کول ضروري دی، هغه نیت چي له ورکولو وروسته ئي ته کوي هغه داعتبار وړنه دی نو ځکه ته نشي کولای هغه دزکوة په نیت ورپریږدي. البته دا کولای شئ چي دغو مره روپی هغه ته دزکوة په نیت ورکړئ او بیائي بیرته ورڅخه په خپلو قرضو کی واخلئ. (آپ کی مسائل ۳جلد ۳۸۴مخ)

## خادمي ته دزکوة په روپوګینه وراخیستل:

**پوښتنه**: له زید سره یوه یتیمه نجلئ خدمت کوي چي صرف خوراک څښاک او جامي ورته ورکولي کیږي نو زید کولای شي دزکوة په روپو هغي ته ګینه، جامي او نورڅه واخلي اوکنه؟

(۲) او کومه ښځه چي فکر کوي چي زکوة راته دخدمت په بدل کي راکول کیږي هغي ته دزکوة ورکول څنګه دی؟

ځواب: یتیمي نجلئ ته چي تنخواه ورته مقرره نه ده صرف داورته مقرر دي چي ډوډئ او جامي به ورکولي کیږی دزکوة په روپو دګینوورجوړول روادی، او داهم سمه ده چي دزکوة روپی په نغدي ډول ورکړي. خو ورته مقرري شوي جامي به دزکوة په روپو ورته نه جوړوي

(۲) او هغی ښځي ته چي داپخپله فکر کوي چي زکوة راته دکار په بدل کی راکول کیږي دزکوة ورکول روانه دی. (فتاوی دارالعلوم ٦جلد ٢٦١مخ بحوالہ الدرالمحتار ۲جلد ۷۹مخ)

هیڅ یو چاته هم دکار په بدل کي دزکوة ورکول روانه دی او په دي ډول زکوة هم نه اداء کیږي (محمد رفعت قاسمي)

## دغريبي انجلۍ په واده کي دزکوة روپۍ ورکول :

**مسئله** : دانجلۍ موراوپلارته چي دزکوة مستحق وي که دزکوة روپۍ ددي دپاره ورکړلي شي چي دلورپه نکاح (واده) کي ئي ولګوي، نوروادي، اوداهم سمه ده چي دزکوة په روپولوښي، ګيڼې اونورڅه واخيستل شي اوانجلۍ ته ورکړل شي.

**مسئله** : که هغي انجلۍ ته تر واده له مخه ياوروسته دزکوة روپۍ په نغدي ډول ورکړلي شي هم روادي، خوپه دي شرط چي دنصاب خاونده نه وي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۴۷مخ ردالمحتار ۲جلد ۷۹مخ)

**مسئله** : مګرددی خيال ساتل ضروري دي چي دزکوة دورکيدلو اندازه دومره نه وي چي ترنصاب زياته شي؛ اوکه کوم غريب ته دنصاب برابرزکوة ورکړل شويايوشميرخلکو ته دلږ، لږزکوة په ورکولوسره دنصاب اندازه پوره اوياتري زيات شو، نوبيا له دي خاطره دوئ ته دنورزکوة ورکول روانه دی چي دوئ داوخت مستحقين نه دی.
(ايضاح المسائل ۱۱۷مخ بحواله درمختارکراچي ۲جلد ۳۵۳مخ)

## دزکوة له روپو څخه دمړي تجيزاوتکفين کول څنګه دی؟

**مسئله** : دزکوة په روپوباندي دمړي تجهيزاوتکفين کول روانه دي؛ خودضرورت پروخت داسي کيدای شي چي که دمړي ولي غريب وي نوهغه ته دزکوة روپۍ ورکړلي شي چي هغه بياورباندی دتجهيزاوتکفين کارونه پوره کړي. (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۹۳مخ ردالمحتار ۲جلد ۲۸مخ فتاوی دارالعلوم ۶جلد ۲۲۲مخ)

## آيا مړي ته دکفن وركولو ثواب به دزكوة وركونكي هم وي؟

**مسئله** : که دزکوة مستحق (غريب) له خپل طرف څخه دمړي دکفن ، دمسجدد جوړولواوداسي . نوروکارکوي نوثواب ئي دواړو (مستحق اوزکوة ورکونکي) ته رسيږي. په شامي نومي

کتاب کي داسي ليکل شوي دي چې زکوة ورکونکي ته دزکوة ورکولواو غريب ته دمړي دکفن ورکولو ثواب رسيږي. اوداهم ويل شوي دي چي دزکوة ورکونکي په کفن ورکولو کي هم ثواب شته ځکه چي په حديث شريف کي دي چي (الدال على الخير کفاعله)
(رد المحتار ۲ جلد ۱۲ مخ)

په جامع الصغير کي روايت رانقل شوى دى چي وائي «صدقه که ترسلګونو لاسونو تيره شي هم ،نو هريوه صدقه کونکي ته به ئي دومره ثواب ورکول کيږي لکه لومړني صدقه کونکي ته؛ بغيرله دي چي دلومړي په ثواب کي کمی راشي. ترسلګونولاسونودتيريدلو مطلب دادى چي يو صدقه کونکی دوهم ته صدقه ورکړي دوهم ئي دريم ،دريم ئي څلورم اوهمدارنګه ترسلوپوري سلسله ورسيږي .(فتاوى ارالعلوم ۲ جلد ۲۲۷ مخ)

بعض ځايونه خلک دبي وارث مړي دتجهيزاوتکفين دپاره چنده کوى،نوپه هغه کي دزکوة دروپو په ورکولو سره زکوة نه اداء کيږي. که وارث لرونکي مړى وي هم په دغه ډول زکوة نه اداء کيږي ځکه په مړي کي داورتيانشته چي زکوة ئي ملک وګرزول شي. خودارنګه کيداى شي چي دزکوة روپۍ دمړي وارث ته (چي غريب وي) ورکړلي شي اوبيائي هغه له خپل طرفه دمړي په تجهيزاوتکفين کي ولګوي.
*(محمد رفعت قاسمي غفرله الله)*

## دزکوة په روپودمړي قرض اداء کول:

**مسئله**: که دمړي په ذمه باندي قرض پاته ؤنوزکوة ورکونکی نشي کولاى براه راست هغه په زکوة کی اداء کړي ، البته داسي کولاى شي چي لومړى دهغه يوغريب وارث ته دزکوة مال په داسي ډول ورکړي

چي هغه ئي په پوره ډول مالک وګرزي بيا هغه پخپله خوښه دغه مال د مړي په قرضو کي ور کړي .(معارف القرآن ۴ جلد ۴۰۸ مخ)
ځکه چي په مړي کي د مالک ګرزيدلو ورتيا نشته چي دغه د زکوة اداء کيدلو لو مړنی شرط دی. (محمد رفعت قاسمی رحمة الله عليه )

**دزکوة روپۍ په دي نيت غريب ته ورکول چي مړي ته ئي ثواب ورسيږي:**

**مسئله**: د زکوة روپۍ په داسي ډول مړي ته ورکول روا نه دی چي د هغه له طرفه ورباندي خيرات وکړل شي داغوستو کالي واخيستل شي او محتاجانو ته ورکړلي شي. له خپل طرفه بايد د زکوة په نيت محتاجانو ته ورکړل شي د هغه ثواب مړي ته بايد و نه بخښل شي .(فتاوی دارالعلوم ۲ جلد ۲۰۴ مخ)

## خپل غريب خاوند ته زکوة ورکول:

(۱) **پوښتنه**: په عام ډول خود ميرمني ټول کفالت د خاوند په غاړه وي، که خدای مه کړه خاوند غريب شي او ميرمن ئي شتمنه وي، نو شريعت د هغي په ذمه د خاوند کوم حقوق ور اچوي؟
(۲) **پوښتنه** که دغه خاوند له ميرمني څخه د زکوة روپۍ ورواخلي او خوراک پري واخلي نو دا صحيح دی او کنه؟
(۱) **ځواب**: په ميرمني چي د خاوند کوم حقونه دي هغه په غربت او مالداریٔ دواړو کي يو شان دي. کله چي خاوند غريب شي نو ميرمني ته په کار ده چي ور څخه دومره خه وغواړي څومره چي هغه ئي دراوړلو قدرت لري. خود اخلاقو تقاضا داده چي ميرمن بايد په خپل مال له خاوند سره د کور د لګښتونو په پوره کولو کي مرسته وکړي، او يا خاوند ته د دي واک ورکړي چي د هغي په مال باندي تجارت وکړي. نو څنګه چي د خاوند او ميرمني ګټي عادةً سره ګډي وي او په عام ډول دوئ ديو او بل له شيانو څخه کار اخيستلای، او

اخلي، نو ځکه د میرمني زکوة خاوند ته او د خاوند زکوة میرمني ته ورکول روانه دی. (آپ کي مسائل ۳جلد ۳۵۹مخ وفتاوی دارالعلوم ۲۹۲مخ بحواله شامي ۳جلد ۸۲مخ)

## د شتمني میرمني غریب خاوند ته دزکوة ورکول:

**پوښتنه**: د زید له میرمني سره د څلوروزرورو پوسره او سپین زردي، مګر پخپله زید ډیر غریب او قرضدار دی، نو آیا زید کولای شي زکوة واخلي؟

**ځواب**: زید د بل چا زکوة وراخیستی شي مګر خپله ښځه ورته زکوة نشي ورکولای، په هر حال که خاوند پخپله غریب وي نو دزکوة اخیستلو حقدار دی د میرمني د شتمنتوب په وجه هغه مالدار نشي بلل کیدای. (آپ کي مسائل: ۳جلد ۳۹۵مخ)

## واده شوي میرمني ته زکوة ورکول:

**پوښتنه**: یوه میرمن ده چي خاوندئي ژوندی دی او خواري او مزدوري کوي نو آیا هغي ته زکوة ورکول روادی او کنه؟

**ځواب**: که هغه غریبه اودزکوة مستحقه وي نو بیازکوة ورکول روادی (آپ کي مسائل ۳جلد ۳۹۵مخ)

## هغي کونډي ته دزکوة ورکول چي اولادونه ئي شتمن وي:

**پوښتنه**: یوه کونډه میرمن ده چي زامن ئي داوخت دکاروبار خاوندان دي، نو که دهغي زامن ورسره مرسته نه کوي اویا ورسره دومره مرسته کوي چي دهغي دپاره ناکافي وي، نودزکوة ورکول ورته روادی او کنه؟

**ځواب:** ددغي ميرمني تول لګښتونه دهغي داولادپه ذمه دي مګرکه هغه غريبه وي اوزامن ورسره دومره مرسته نه کوي چي دهغي دورځنيو ضرورتونو دپاره کافي شي نوزکوة ورکول رواى .(آپ کي مسائل ۳جلد ۳۹٦مخ)

## بد حاله ميرمني ته دزکوة ورکول :

**مسئله** : هغي ميرمني ته چي کونډه هم وي اوډژوند حال ئي هم خراب اوناسم وي مناسب ده چي خپل وروردورځنيو لګښتونو دپوره کولودپاره څه ورکړي، اوکه هغه داسي کول نه يائي قدرت نه ؤ ،اوله هغي کونډي سره هم دنصاب په اندازه سره زرسپين زرياروپۍ نه وي، نوښکاره خبره ده چي هغه بي کسه هم ده اوغريبه هم ده، نوځکه دزکوة ورکول ضروري دى .(آپ کي مسائل ۳جلد ۳۹۷مخ)

## د بد کردارسړي ميرمني ته زکوة ورکول :

**مسئله:** داسي دماشومانولرونکو ميرمنوته چي دخپل خاوند دعيشي ژونداوشراب خوړلوله امله ډيره په تنګ شوي وي اوغريبه هم وي (يعني خاونده دنصاب نه وي ) ته نه يوداچي زکوة ورکول صحيح دى بلکه دغه رنګه زوريدلو ښځوته دزکوة په ورکولو کي ډيرثواب دى (فتاوى دارالعلوم ٦جلد ۲۲۳مخ بحواله ردالمحتار۲جلد ۸۰مخ)

## بي روزګارته زکوة ورکول :

**مسئله** : دکاروبارنه کونکي سړي کفالت دزکوة له مال څخه کول روادى اوزکوة ورباندي اداء کيږي .(آپ کي مسائل ۳جلد ۳۹۸مخ)

## د معذ ورما شوم پلارته زکوة ورکول :

**پوښتنه** : یو ماشوم دی چي دماغي تکلیف لري، دهغه پلار مزدوري کوي او دهغه دژوند دټولو چارو واکدار دی، نو آیا پلارته ئي زکوة ورکول روادی او کنه؟

**ځواب** : که ددغه ماشوم پلار هیڅ نه لرل نو دزکوة مستحق دی بعض عیال دارداسي وي چي دنصاب خاوندان نه وي اوددوئ دکارلاس ته راوړنه هم دومره نه وي چي دهغو دټولو لګښتنو نودپاره کافي شي دغه رنګه خلکوته زکوة ورکول روادی .(آپ کي مسائل ۳جلد ۴۰۱مخ)

## د زکوة روپۍ دغریبوا نجو نوپه تعلیم کي ورکول :

**مسئله** : په زکوة کي تملیک شرط دی یعني یو فقیربایدد هغه پوره مالک وګرزول شي، نو که زده کونکو غریبو انجونو ته په نقدي ډول دزکوة روپۍ ورکړلي شي یاجامي ورته پري جوړي کړلي شي یاخوراک ورته په پوره ملکیت کي ورکړل شي نوصحیح دی. مګردښوونکو یانوروکارګروتنخواه له زکوة څخه ورکول روانه دی.

(فتاوی دار العلوم ۲جلد ۲۰۵مخ بحواله رد المحتار ۲جلد ۸۵مخ)

## دډیرعیا ل خاوندته دزکوة روپۍ ورکول :

**پوښتنه** : زه دمسجد امام یم، دمسجد په تنخواه دکورچلول ډیرګران دی عیال می هم ډیردی اوقرضدارهم یم، یو مالدار غواړي ماته ډیري روپۍ په زکوة کي راکړي نو زه هغه ورڅخه اخیستای شم او کنه؟

**ځواب** : مسئله داده چي غریب (دزکوة مستحق) ته باید دومره مال دزکوة ورکړل چي ترنصاب کم وي، دومره مال ورکول چي هغه پري دنصاب خاوند کیږي مکروه دی خو که یو څوک قرضداروي

اویا ډیرعیالونه لري نو قرضدار کولا شئ چي دومره زکوة واخلي چي قرض ئي پوره ورباندي اداء شي اونور ترنصاب کم ورسره پاته شي. او ډیر اولاد لرونکی کولای شي دومره زکوة واخلي چي که دهغه په ټول عیال تقسیم کړل شي نو هر یوه ته ترنصاب کم ورسیږي. په دغو دواړو صورتو کی دزکوة اخیستل بی کراهته روا دی. (طحطاوی علی مراقي الفلاح ۴۱۲مخ وکتاب الفقه ۱جلد ۱۰۱۳مخ)

**مسئله**: که دیو چا میاشتنۍ آمدني له ضرورت سره برابره وي مګر په ټول کال کي ورسره دومره نصاب نه جمع کیدو چي هغه پري دنصاب خاوند شي، نو هغه ته دزکوة اونفلي صدقي ورکول او اخیستل روا دی (فتاوی دار العلوم ۲جلد ۲۳۳مخ بحواله عالمګیري بالامصرف ۱جلد ۱۸۹مخ)

## ۱ یا مالدارضرورتمند ته دزکوة ورکول رواده‌ی؟

**مسئله**: که یو چا خلکوته روپۍ قرض ورکړي وي او دبیرته اخیستلو دپاره ئي خاصه نیته تاکله شوي وه او ددغي نیټي په بهیر کي هغه ته دکورني لګښت دپوره کولو ضرورت پیښ شو، نو دغه وخت هغه زکوة اخیستی شي، مګر په دومره اندازه چي دقرضو ترختلو ورباندي ضرورتونه پوره کړي. او که دقرضو دختلو دپاره تاکلي نیټه نه وه ځکه چي په دغه وخت کي هغه داسي دی لکه مسافر. او که قرض اخیستونکی شتمن وي او قرض اداء کوي، نو بیا دزکوة اخیستل روانه دی، که دغه قرض اخیستونکی قرض نه اداء کوي او دقرضي ورکولو شاهد عادل وي نو هم پورتنی حکم دی. او که شاهد عادل نه ي نو هغه ترهغه وخته پوري زکوة نشي اخیستلای ترڅو چي دعوی ئي قاضي ته نه وي وړاندي کړي او قاضي قرض اخیستونکي ته قسم نه وي ورکړی؛ خو هرکله چي قرض

اخیستونکی دانکارقسم وکړنوله هغه وروسته دی کولای شي زکوة واخلي. (فتاوی قاضي خان وعالمګیري ۴جلد ۴۰مخ)

## بي لمانځه ته دزکوة ورکول:

**مسئله**: هغه چاته چي لمونځ نه کوي زکوة ورکول روادی، ځکه چی دحنفیانو رحمة الله علیهم په نزد دلمانځه په پرېښودلو سره مسلمان نه کافرکیږي البته دلمانځه پرېښودل فسق اوکبیره ګناه ده مګرکفرنه دی، نوځکه هغه چاته چي لمونځ نه کوي اومحتاج وي دزکوة ورکول روای اوزکوة ورباندي اداء کیږي اوډیرامامان په دې مذهب دي چی دلمونځ پرېښودونکی کافرنه دی. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۸۴مخ بحواله مراقي الفلاح)

## دنشي عادت لرونکي ته دزکوة ورکول:

**پوښتنه**: یوڅوک ډیرزیات غریب دی خودبنګواوآفیونونشه کوي ،آیاهغه ته دزکوة ورکول شرعاً جائزدی اوکنه؟

**ځواب**: داښکاره خبره ده چی دزکاتونواوصدقونیکانوخلکو ته ورکول ډیره بهتره ده څنګه چي وائي (وَلْیأکُل طعامُک الأبرار) یعني ستاسوخوراکونه دي نیکان وخوري. مګرفاسق،فاجراوشراب خورته (چي محتاج اوغریب وي) دزکوة ورکول روادی اوزکوة اداء کیږي که څه هم فاسق وي خودزکوة ښه اداپه دي کي ده چي نیکانوفقیرانواومحتاجوته ورکړل شي. په هرحال دزکوة په اداء کي هیڅ خبره نشته؛ بهتري اونه بهتري جلاخبره ده.محتاج اوغریب که څه هم فاسق وي خودزکوة په ورکولوکي ثواب شته څنګه چي لیکي «هردروح لرونکي ته په څه ورکولوکي اجرشته» (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۳۵مخ بحواله ردالمحتار۲جلد ۷۹مخ)

خو کـه ديو چـاداپوره يقـين شـو چي هغـه دغـه زمـادزكوة روپـى پـه شرابو ورکوي،نو بيا زكوة ور كول روانه دى ځكه چي پـاک خداى جل جلاله فرمائي :(وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ) دمائدي سورة(محمد رفعت قاسمي)

## غيرمسلموفقيرانوته زكوة وركول :

**پوښتنه**: دزكوة وركول كافرانوته روادى اوكنه؟

**ځواب** : پـه درمختاراونوروكتـابوكي دزكـوة تعريف پـه دي ټكوكي شوى دى (تمليـک جزء مـال عينـه الشـارع مـن مسـلم فقيـر ..الـخ) چي مطلب ورڅخه دادى چي زكوة پـه شريعت كـي ديتـه وائي چي دخپـل مال څخه هغه معلومه برخه چي حضور صلى الله عليه وسلم تـاكلي ده مسلمان محتـاج تـه وركړله شي. نوله دي څخه معلومه شوه چي دزكوة اداء دپاره داشرط دى چي مسلمان فقيرتـه وركـول كيږي اودتـوبي دسورت له دغه آيت (انما الصدقت للفقراء والمسكين ) څخه مرادپـه اجماع دامت سره مسلمان فقيران اومساكين دي.

خونفلي صدقي اهل ذمـهؤ(كـافرانو ) تـه وركـول كيـداى شـي.پـه درمختاركي داسـي هم ليكـل شوي دي چي لـه زكـوة ،عشـراومـاليي څخه علاوه نوري صدقي كافرانوته هم وركولي كيداى شي.

(فتاوى دارالعلوم ۲ جلد ۲۷۷ مخ بحواله ردالمحتار ۲ جلد ۹۲ مخ وک۲ايت المفتي ۴ جلد ۴۲۳ مخ)

## دغير مسلموپه ښوونځاى كي زكوة وركول :

**مسـئله** : دغيرمسلمومدرسواوښـوونځيوتـه دزكـوة وركـول روانـه دى،اوزكوة نه اداء كيږي.ضروراً بايدمسلمان محتاج تـه وركړل شي.

(ردالمحتار ۲ جلد ۹۲ مخ)

## ملحد او مرتدته دزکوة ورکول :

**مسئله** : هرهغه څوک چي له پاک خدای جل جلاله ، نبوت او آخرت څخه منکروي هغه کافر او د اسلام دښمن دی. هغه ته هم دزکوة ورکول داسي دی لکه يو څوک چي د دين له دښمن سره مرسته کوي او څوک چي مرتد شي او د اسلام له کړئ ووزي ، نو هغه د اسلام له نظره دژوند مستحق نه دی پريږده دا خبره چي له هغه سره دي دزکوة په روپو مرسته وشي. هغه دومره لوی جرم اوله اسلام او مسلمانانو سره خيانت کړی دی چي په ټولنه کي ئي دژوند کولو حق بايللی دی لکه چي دحضور صلی الله عليه وسلم ارشاد دی = (هرمسلمان چي خپل دين (اسلام) په بل دين بدل کړي نو تاسو هغه ووژنئ) (فقه الزکوة ۲جلد ۲۰۹مخ)

## مسکين چاته ويل کيږي ؟

**مسئله** : څوک چي خاوند دنصاب نه وي او محتاج وي هغه ته مسکين يا فقير ويل کيږي (فتاوی دار العلوم ۲جلد ۱۹۴مخ بحواله ردالمحتار ۲جلد ۸۰مخ)

دچا په ملک کی چي هيڅ شی هم او يا وي خو ترنصاب کم ، نو هغه ته دشريعت په اصطلاح فقير او مسکين ويل کيږي. او دغه رنګه دزکوة او سرسايي حقداران دي (فتاوی محموديه ۱۳جلد ۱۱۴مخ)

دفقير او مسکين ترمينځ يو فرق داهم دی چي فقير ته دسوال کول پيغور نه ګڼل کيږي مګر مسکين ته دهغه پاک نفسي دخواست ، زاريء کولو او څه غوښتلو اجازه نه ورکوي. دصحيحينو په يو حديث شريف کي حضور صلی الله عليه وسلم دمسکين تعريف داسي کړی دی (الذي لايجد غني يغنيه ولا يفطون فيصدّق عليه ولايقوم فيسأل الناس)

(۱) څوک چي د داسي څه لرونکی نه وي چي پري شتمن شي
(۲) دچاچي غریبي داسي څرګنده نه وي چي خلک ورته خیرات ورکړي
(۳) څوک چي په خیر، خیرات غوښتلو پسي روان شوی نه وي او چاته ئي دسوال لاس اوږد کړی نه وي. (حقیقت الزکوة ۲۱ مخ مولانا ابوالکلام از د. کتاب الفقه علی مذهب الاربعه ۱ جلد ۱۲ (مخ)

## یقیني مسکینان څوک دي؟

**مسئله**: دیو قوم تول هغه وکړي چي د ژوند تیرولو د وسائلو او اسبابو د نیستۍ له امله وربانـدي د معیشت دروازي تړلي وي (سره له دي چي دوئ پوره پوره کوشش کوي خو بیا هم نه ورته څه نوکري پیدا کیږی او نه کوم بل کار او روزګار) یقیناً هغه په مسکینانو کي داخل دی او د زکوة حقداران دي، مګر د دي یوه ښه لاره داده چي د هغه احوال پرسي هم وشي او ترڅنګ ئي ورته د کار پیدا کولو لته هم وشي ترڅو هغه د بي کاري عادت وانخلي، او د زکوة خوړلو په نیت نورو کارو ته سست نه شي. (حقیقت زکوة ۲۳ مخ و علم الفقه ۴ جلد ۴۳ مخ)

## حکمي مسکینا ن څوک دي؟

**مسئله**: هغه خلک چي د سم او ښه حال لرونکي ؤ مګر د کار د ګډوډۍ له امله یا د کوم بل غم یا پیښي له امله خوارشول (که څه هم دوئ د مخکني حیثیت په وجه معذوربلل کیږي) حکماً په مسکینانو کي داخل دي، او ضروري ده چي په زکوة ایستلو کي دوئ له یاده ونه غورزول شي. (حقیقت زکوة ۲۳ مخ)

## کسب ګروفقیرانو ته زکوة ورکول:

**پوښتنه:** داسي کارپوهو فقیرانوته چي خواري مزدوري کولای شي زکـوة ورکـول روادی او کـه نـه؟ او آیـا د مستحقو او غیر مستحقو فقیرانو ترمینځ هیڅ فرق هم نه وي؟

**ځواب:** که دغه فقیریا مسکین په ظاهري ډول محتاج ښکاري، نو هغه ته د زکوة په ورکولو سره زکوة اداء کیږي. که څه هم په حقیقت کي هغه مستحق نه وي، خو د (انما الاعمال بالنیات) د قاعدي له مخي د زکوة ورکونکي زکوة اداء او ثواب ئي ورته ورکول کیږي. (فتاوی دار العلوم ۲ جلد ۲۲۹ مخ بحواله رد المحتار ۲ جلد ۹۵ مخ)

**مسئله:** کـه هغـه څـوک چي زکـوة ورکـول کیـدی پـه ظـاهري ډول فقیر او مسکین معلومیدی او یا له فقیرانو سره یو ځای راغی، او یا یي سوال وکړ او زکوة ورکونکي زکوة ورکړ نو زکوة ئي اداء شوی دی، که څه هم تر زکوة ورکولو وروسته معلومه شوه چي هغه شتمن ؤ او د زکوة مستحق نه ؤ. (فتاوی دار العلوم ۲ جلد ۲۲۸ مخ و فتاوی محمودیه ۱۱ جلد ۱۲۰ مخ)

## کوم فقیر چي روپۍ په ناروا کارو کي لګوي:

**پوښتنه:** د کومو غریبانو (مسکینانو) په اړوند چي غالب ګمان داوي چـي دوئ د زکاتونو او سرسـا یو روپۍ اخلـي او بیـا ئـي پـه غلطو غلطو کارو کي لګوي، نو هغوته د زکوة ورکول روادی او که نه؟

**ځواب:** که غالب ګمان همدغه وي، نو بیا بي شکه چي زکوة او خیرات ورکول ناروا او ګناه ده ځکه چي دغه له ګناه کولو سره مرسته ده او په ګناه کي له چا سره مرسته کول حرام دی. لکه چي پاک خدای جل جلاله فرمائي: (وَتَعَاوَنُواْ عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلاَ تَعَاوَنُواْ عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ط: د مائیدي مبارکي سورة)

**مسئله**: که یو چا دنه علم له امله غله یازناکارته زکوة ورکړ،نو دزکوة اوصدقي اجرهم ورته ورکول کیږي اوزکوة هم اداء شوی دی ،خوکه دهغه له غلااوزناکارۍ څخه خبرؤ نوبیائي هیڅکله باید ورنه کړي.
(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۲۸مخ بحواله مشکوة ۱جلد ۱۲۵مخ)

## شتمن فقیرته زکوة ورکول:

**پوښتنه**: دلته یوداسي فقیرنشته چي دزکوة اوسرسایي اخیستلوورتیالري ځکه چي دغه ټول په نامه فقیران د نصاب خاوندان دي اوزکوة پري واجب دی؛نوآیامونږخپل زکاتونه دغوفقیرانوته ورکړواوکه ئي دیني مدرسوته ورکړو؟

ځواب: دغه رنګه په نامه فقیرانوته (چي شتمن اودنصاب خاوندان وي ) بایدزکوة سرسایه اونوري واجبي صدقي ورنه کړي شي؛ تاسوخپلي سرسایي اوزکاتونه مدرسوته ورکړئ اوهلته ئي په غریبوطالبانوولګوئ .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۸۲مخ بحواله ردالمحتار۲جلد ۷۹مخ)

**مسئله** : داسي فقیرانوته دزکوة ورکول روانه دیچي خیرات ټولول خیرغوښتل ئي عادت ګرزیدلی وي اودامعلومه وي چي ډیري ددوئ شتمن دي. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۰۴مخ)

## هغه فقیرته زکوة ورکول چي په خه ګټلوقادروي:

**مسئله**: دزکوة دمستحق کیدلوتړاوله حاجت سره دی ،نو دغه اصل ته په کتوسره داپوښتنه پیداکیږي چي که یو څوک محتاج وی خوکارنه کي اودخلکوپه زکاتواو صدقو سره خپل ژوندتیروي اوله دي امله دټولني داوږوبار ګرزیدلی وی ،اوحال دادی چي په جسماني لحاظ هغه دښه کارکولوورتیالري نوزکوة ورکول کیدای شي اوکنه؟

دحنفي مذهب دجمهورو فقهاؤ رحمة الله عليهم نظر داده چي كسب
گرياد گتي كولو قابل فقيرته دزكوة وركول او اخيستل خوروادى
خو بهتره او ډيره ښه خبره داده چي ترڅو پوري چي له هغه سره دژوندي
پاته كيدلو دپاره لږله ډيروڅه موجود وي، نو هغه دي زكوة نه اخلي.
(فقه الزكوة ۲ جلد ۲۸ مخ بحواله مجمع لانهار ۲۲۰ مخ)

**مسئله**: هرهغه څوک چي ترنصاب دكمو شتو خاوندوي هغه ته زكوة
وركول روادى كه څه هم هغه روغ اودروزي گټلوور تيا لرونكى وي
ځكه چي هغه فقيردى او فقيران دزكوة په لگښت ځايونوكي داخل
دي. او بل داچي دحقيقي احتياج پته لگول سخت كاردى نو ځكه
دنصاب نه لرل د حاجت مندي قائم مقام بلل كيږي. (فقه الزكوة ۲ جلد ۲۰۲ مخ)

## يتيم خاني ته زكوة وركول څنگه دى؟

**مسئله**: نابالغوته زكوة وركول صحيح دى، نو ديتيم خاني
دماشومانو دلگښت دپاره هم زكوة وركول صحيح دى.
(فتاوى دارالعلوم ۲ جلد ۲۵۷ مخ بحواله ردالمحتار ۲ جلد ۷۹ مخ)

**مسئله**: دنابالغ غريب يتيم سرپرست ته ديتيم دضرورتونو دپوره
كولو دپاره زكوة وركول روادى. (فتاوى دارالعلوم ۲ جلد ۲۵۹ مخ وفتاوى محموديه ۳ جلد ۹۰ مخ)

**مسئله**: په يتيم خانه كي كه يتيمانو ته خوراک، جامي او داسي نور په
مالكانه ډول وركول كيږي نو دغو مره اندازه دزكوة روپۍ لگولي
كيږي. (معارف القرآن ۴ جلد ۴۰۹ مخ)

**مسئله**: كه هغه يتيم چي زكوة ورته وركول كيږي پوهه ولري او په
روپوباندي قبضه كولاى شي، نو هغه ته وركول ئي هم روادى؛ او كه
دزكوة دروپو دضائع كيدو ويره وه، نو سرپرست كولاى شي دامانت په
ډول هغه ورڅخه اخلي او ورته وئي ساتي. او كه ماشوم ناپوه

ؤاوداویره وه چې هغه به ئې په غلط ځای کې ولګوي یا به په بله لاروورڅخه ضائع شي ،نو بیائې هغه ته ورکول روانه دی بلکه دهغه سرپرست (څوک چې ددغه ماشوم پالنه کوي ) ته ددغه ماشوم دضرورتونو دپوره کولو دپاره ورکړلي شي .اوکه سرپرست هم بې باوره څوک ؤنو بیابايد دماشوم له خپلوانو څخه کوم بل چالکه تره ،نیکه ،ورور ،اونوروته په ماشوم دلګښت دپاره ورکړلي شي.
مسئله: که ولي (سرپرست ) دزکوة روپۍ دماشوم له طرفه پخپله قبضه کې واخیستلي نوهیڅ تاوان نه لري مګرهغه روپۍ چې ده اخیستی دی ترهغه وخته پورې چې دماشوم په تملیکې لګښتونو نه وي لګیدلي نو ترهغه وخته زکوة نه اداء کیږي (فتاوی محمودیه ۳جلد ۹۰مخ)

## د حضور صلی الله علیه وسلم د خا ندان نفروته زکوة ورکول :

**پوښتنه:** کومو کومو خلکوته زکوة ورکول روادی او کومو کوموته ناروادی؟
**ځواب**: زکوة دحضور صلی الله علیه وسلم دکورنۍ خلکوته حلال نه دی. اودهغه مبارک صلی الله علیه وسلم له کورنۍ څخه مراد دحضرت علی رضی الله تعالی عنه ،عقیل رضی الله تعالی عنه ،جعفر رضی الله تعالی عنه ،عباس رضی الله تعالی عنه ،اوحارث بن عبدالمطلب اولادې دي ،نوهغه څوک چې ددوئ رضی الله تعالی عنهم له نسلو څخه وي هغوته زکوة نشي ورکول کیدای. که له دوئ څخه څوک غریب وي نو په بل ډول بايد ورسره مرسته وشي .(آپ کې مسائل ۳جلد ۳۹۰مخ وعلم الفقه ۴جلد ۴۲مخ)

## سیّداوهاشمي ته زکوة ورکول روادی اوکنه؟

**پوښتنه** : که چیرې سید یاهاشمي ډیرزیات مسکین شو ،نو زکوة ورکول روادی اوکنه؟

**ځواب**: سيداو هاشمي ته دزکوة په ورکولو سره زکوة نه اداء کيږي، آيا دکلي يا کوڅې په ګاونډيانو کي دومره غيرت نشته چي بغيرله زکوة ورکولو دهغه احتياج پوره کړي؟ که د يو چاپلاره ډيرزيات غريب شي، نوآيا هغه ته به هم احتياجات دزکوة په روپوو پوره کوي؟
(احسن الفتاوی ۴جلد ۲۷۹مخ بحواله رد المحتار ۲جلد ۷۲مخ)

**مسئله**: دحنفيانو په نزددصحيح قول او ظاهر الرواية سره سم سيد ته په هيڅ حال هم زکوة ورکول صحيح نه دی. (فتاوی دار العلوم ۲جلد ۲۶۲مخ)

**مسئله**: هغه قول چي فتوی وربانـدي شوي ده دادی چي ساداتو (سيدانو) ته په اوس وخت کي هم زکاتونه او واجبي صدقي لکه دقرباني پوستو کي، سرسايه او نور ورکول حرام دی او زکوة او نور وربانديي نه اداء کيږي؛ دا خبره غلطه ده چي څوک وائي چي په بعض حالاتو کي ورته روادی. (فتاوی دار العلوم ۲جلد ۲۳۹مخ بحواله رد المحتار ۲جلد ۹۰مخ باب المصرف)

**مسئله**: سيد ته دزکوة او عشرغله او روپۍ دواړه حرام دي، خو که څوک ئي وروسته له حيلي جوړولو څخه ورکوي، نو بيا پکښي څه منع نشته، دحيلي صورت دا کيدای شي چي لومړی داسي يو غريب ته چي سيدنه وي وويل شي چي مادغه خپل زکوة ياهر څه چي وي فلاني ته ورکاؤ، خو هغه سيد دی او زکوة ورته روانه ی، نو ځکه اوس زه خپل زکوة تاته درکوم نو که ته دغه ټول يا نيمايي په خپله خوښه هغه ته ورکړي نو دايه ډيره ښه وي. له دي وروسته که بيا هغه غريب دزکوة له مال څخه سيد ته له خپله طرفه څه ورکړي، نوبيا سيد ته روادی. (کفايت المفتی ۴جلد ۲۷۲مخ)

## د چاچي مور سیّده وي هغه ته زکوة ورکول :

**مسئله**: که دیو چاصرف مور سیّده وي او پلار ئي سید نه وي، نو هغه ته زکوة ورکول روادی، ځکه چي نسب د پلار له لوري وي. د چاچي پلار سید نه وي نو د مور په سیدوالي سره نه سید کیږي. (احسن الفتاوی ۴ جلد ۲۷۹مخ بحواله رد المحتار ۲ جلد ۳۴۲مخ)

## څوک چي د نسب شجره نه لري هغه ته زکوة ورکول :

**پوښتنه**: زید له خپل پلار او نیکو نو څخه اوریدلي دي چي زمونږ د نسب شجره حضرت علی کرم الله وجهه ته رسیدلي ده مګر له زید سره پوره شجره نشته چي ورڅخه دا معلومه شي چي هغه رښتیا هم سیّد دی او کنه، نو په دغه صورت کي په داسي حال کي چي زید غریب دی هغه ته د زکوة اخیستل روادی او کنه؟

**ځواب**: د نسب د ثبوت دپاره عام شهرت کافي دی، دا ضروري نه ده چي خاما خا به د نسب شجره وي، نو ځکه زید ته زکوة اخیستل حرام دی.

(احسن الفتاوی ۴ جلد ۲۷۹مخ و کفایت المفتی ۴ جلد ۴۵۵مخ)

## سیدانو ته د زکوة نه ورکید لو عقلي وجه :

**مســئله**: زکـوة د خلکو د مـالو نو خیري دي او دا مناسـب نـه ؤ چـي د سید المرسلین صلی الله علیه وسلم اولاد دي پري ګکړ شي؛ که هغه محتاج شي نو له پاک مال څخه باید ورسره مرسته وشي، دغه رنګه که د سید المرسلین صلی الله علیه وسلم اولاد ته د زکوة اخیستلو حکم وای، نو ناپوهانو ته به داوسوسه پیدا کیدله چي (معاذالله) شاید دغه بنکلی نظام ئي د خپل اولاد دپاره په لاره اچولی وي؛ همدارنګه ئي یو نفسیاني ارخ دا هم دی چي که د حضور صلی الله علیه وسلم اولاد ته د زکوة اخیستل روا وای نو خلکو به د خپلوي او نزدیکت په بناء هغوئ

ته دیرزکاتونه ورکول او بغیرله هغوبه ئي بل چاته په ورکولو سره اطمنان نه کیدی، او دابه دنورو غریبانو د سخت شکایت سبب گرزیدلی ؤ. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۳۹۱ مخ وفقه الزکوة ۲ جلد ۲۴۲ مخ)

**مسئله**: سید ته په زکوة نه ورکولو کي یورازدادی چي سید الثقلین صلی الله علیه وسلم به پخپله یعني پخپل لاس صدقي راټولولي ،نو که هغه صلی الله علیه وسلم خپلو قریبانو او هغه چاته چي د هغوئ نفع د حضور صلی الله علیه وسلم نفع وه دزکوة خوړلو جواز فرمایلی وای، نو ددي ویره به وه چي خلک په حضور صلی الله علیه وسلم باندي بد گمان شوی وای. او بیا به ئي د سید المرسلین صلی الله علیه وسلم په حق کي هغه خبري کولي چي بالکل به له حقیقت او ادب څخه لیري وای ،نو له دي امله حضور صلی الله علیه وسلم د غه دروازه دخپل اولاد په مخ وتړله او وئي فرمائل چي زکوة ددوئ له شتمنو څخه واخلئ او ددوئ فقیرانو ته ئي ورکړئ. (اسرار شریعت ۱ جلد ۳۰۵ مخ)

## سیّد ته دزکوة نه ورکولو نقلي وجوهات:

**مسئله**: د مجبوري په وخت کي هم سید ته دزکوة ورکولو او خیستلو اجازه نشته او فتوی هم په همدي قول ده په حدیث شریف کي حضور صلی الله علیه وسلم زکوة ته (اوساخ الناس) د خلکو خیري ویلي دی او حضور صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي چي د غه صدقي محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه صلی الله علیه وسلم اولادي ته حلالي نه دي. (مشکوة ۱ جلد ۱۲۱ مخ)

په د غه حدیث شریف کي سیدانو ته دزکوة د حرمت وجه دزکوة علت (چي د خلکو د مالو خیري دي) ښودل شوي دي او له بیت امال څخه ئي

دهغو د پاره د خاصي مرستي مقررول نه دي فرمائلي او دغه علت تر او سه هم پخپل ځاى پاته دى، نو ځکه د زکوة د حرمت حکم هم لا تر او سه په ځاى پاته دى او په دي کي احتياط هم دى او د سيدانو محترمينو احترام هم دى. په يو حديث شريف کي راځي چي يو وخت حضرت حسن رضى الله تعلى عنه د صدقي يوه خورما په خوله کي واچوله په داسي حال کي چي هغه لا ماشوم ؤ . نو حضور صلى الله عليه وسلم هغه بير ته د ده له خولي څخه راوايستله او ورته وئي فرمائل چي مونږ صدقه نه خورو. (مشکوة ۱جلد ۱۲۱مخ)

په درمختار او شامي کي راځي چي بني هاشمو ته زکوة نه دى روا، نو ظاهر المذهب هم دادى چي بنى هاشمو ته زکوة مطلقاً نه دى روا هغه که د بنى هاشم له طرفه زکوة ورکول او اخيستل منع دى، نو ځکه د واک، شتمنئ او ثروت خاوندانو ته لازمه ده چي دوئ له سيدانو سره په داسي بل څه مرسته وکړي چي هغه صرف د پاک خداى جل جلاله د رضا د پاره وي او په دي سره دوئ له تکليفو او مشکلاتو څخه خلاص کړي ځکه چي دا هم د ډير اجر او ثواب کار دى او هم له حضور صلى الله عليه وسلم سره ږښتنى محبت دى، د دغه کار د نه کولو په صورت کي داويره شته چي پاک خداى جل جلاله دوئ ورباندي ونيسي. (فتاوى رحيميه ۵جلد ۱۲۸مخ وفتاوى محموديه ۷جلد ۲۵۵مخ)

## سيّد ته د سيّد زکوة ورکول :

**پوښتنه**: آيا شتمن (مالدار) سيد کولاى شي خپلو غريبو سيدانو ته زکوة ورکړي او کنه؟

**ځواب**: صحيحه خبره داده چي ورته نا روا دى. (فتاوى محموديه ۳جلد ۳۲مخ بحواله شامي ۲جلد ۲۲مخ)

## دسیّدمیرمني ته زکوة ورکول :

**پوښتنه** : زمایو سید ګاونډی دی چې په جسماني ډول بالکل معذوردی اوکه دخه ګټلوقدرت پکښې نشته، خودهغه میرمن چې سیده نه ده اودکورټولې چارې سمبالوي اودټول کورکفالت دهغې له غاړې دی، نوآیاسره له دې چې دهغې ماشومان اوخاوند سیدان دي هغې ته زکوة ورکول کیدای شي اوکنه ؟

**ځواب** : هغې میرمنې ته چې سیده نه وي اومستحقه وي زکوة ورکیدای شي، دزکوة له ملکیت وروسته که هغو وغواړي چې په خپلو بچویاخاوندئي ولګوي نوکولای شي .(آپ کي مسائل ۳جلد۳۹۲مخ)

**مسئله** : په دې وجه چې دیوې میرمنې خاوند سید دی او دا پخپله غریبه ده اوسیده نه ده هغې ته دزکوة ورکولو کې منعه نشته، بلکه زکوة وربانديې اداء کیږي اوخپل (رشته دار) غریب ته دزکوة ورکول زیات ثواب لري .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۲۲۳مخ)

## دسیّدي میرمني اولادته زکوة ورکول :

**مسئله** : سیده میرمن چې غیرسید ته واده شي نوپیدا کیدونکي اولادونه ئې هم سیدان نه دي، نوځکه دسیدي کونډې اولادونو ته زکوة ورکول روادی اودا پخپله ددغو بچود پاره زکوة اخیستلای شي، خودځان دپاره نه .(آپ کي مسائل ۳جلد۳۹۲مخ)

## دزکوة له مال څخه دسیّدقرض اداء کول :

**پوښتنه** : په یوّ سید باندې دیل مسلمان قرض دی آیاهغه کولای شي غه قرض په زکوة اداء کړي ؟

**ځواب** : نه، هغه نشي کولای دزکوة په روپو هغه قرضه اداء کړي

## ایا په سخت حالت کې سیّدته زکوة ورکول کیدای شي اوکنه؟

**مسئله** : که سید په ډیر سخت نا ارامي او خراب حال کې واقع ؤ، نو په بیا په دغه مجبورۍ کې دزکوة ورکول روا دي څنګه چې دپاک خدای جل جلاله ارشاد مبارک دی (فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِإِثْمٍ)(۲سپاره ) دحدیث شریف فتوی خو داده چې سید ته زکوة مه ورکوئ، که سید ته له یو خوا څخه رزق راځي نو دهغه بیا څه ضرورت دی چې زکوة اخلي؟ او که ورباندي سخت حالت ورغی دا بیا بله خبره ده .(اسرار شریعت۱جلد۳۰۷مخ)

## که سیّدته په غلطي زکوة ورکړشو:

**پوښتنه** : زید هاشمي دی، یو چا هغه ته زکوة ورکړ، نو دزید دپاره شرعي حکم څه دی؟

**ځواب**: که دزکوة ورکونکی دزکوة وسم لګښت ځای دپوره فکر کولو وروسته هغه ته زکوة ورکړی ؤ نو زکوة ئي اداء شوی دی، مګر زید چې په دی پوه شي چې دا راته زکوة راکړل شوی دی نو پري لازمه ده چې بیرته ئي هغه چاته ورسوي له چا څخه چې ئي اخیستی دی .(احسن الفتاوی ۴جلد۲۸۰مخ بحواله ردالمحتار۲جلد۷۴مخ)

## شیعه اوقاد یا نی ته زکوة ورکول څنګه دی ؟

**مسئله** : شیعه او قیدیاني ته زکوة ورکول روادی او کنه؟ او که څوک ئي ورکړي نو زکوة ئي اداء کیږي او کنه؟

**ځواب**: اوقیدیائیان او ځیني شیعه ګان کافران دي بلکه ترټولو کفار وهم بددي او کافرته زکوة ورکول روانه دی دوئ ته زکوة

ورکول سخته ګناه ده؛ نه یوداچي زکوة وربانديږي نه اداء کیږي بلکه هیڅ ډول صدقه باید ورنه کړله شي. (احسن الفتاوی ۴ جلد ۲۸۱ مخ بحواله رالمحتار ۲ جلد ۲۳۳ مخ)

## مستحق به څه ډول پیژنو؟

**پوښتنه**: زما خوخپلوان یادوستان دي چي په ظاهره ډیر غریبان او مستحق ښکاریږي، خوزه به دا څنګه معلوموم چي دوئ رښتیاهم غریبان یا نصاب نه لرونکي دي او کنه؟

**ځواب**: ظاهرته اعتبارد ی، که له ظاهرحال سره سم ستاداخبره زړه واخیسته چي دوئ غریب دي، نو هغوئ ته دزکوة په ورکولو سره زکوة اداء کیږي. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۲۹۳ مخ)

## ورور یا بل خپل ته زکوة ورکول:

**پوښتنه**: زما یوورودی چي ډیر غریب او دتبي (T.B) په ناروغي اخته دی هغه نه داوخت دتداوي دپاره خرڅه لري او نه څه آمدني لري، نو آیا زه کولای شم هغه ته ټول زکوة ورکړم؟

**ځواب**: هغه ته دزکوة په ورکولو کي ډیرزیات ثواب دی مګر په یووار دومره زکوة مه ورکوئ چي غریب وربانديږ دنصاب خاوند شي .اول ورته ترنصاب کمي روپی ورکړئ کله چي هغه ولګیږي بیاورته نوري اودغه رنګه دغه ترهغه پوري چي زکوة ختم شي.

او که هغه عیالدارهم ؤ، نو بیاپه یوه وار هغه ته دومره زکوة هم ورکول کیدای شي چي که په ټولوو ویشلي شي نو هریوه ته ترنصاب کم رسیږي (احسن الفتاوی ۴ جلد ۲۹۲ مخ بحواله ردالمحتار ۲ جلد ۷۵ مخ)

ترخپله وسه زکوة هغه چاته ورکوئ چي دزکوة اوخير تولونکی نه وي اودخپل عزت ساتلو په خاطرپه خپل کور کي ناست وي سره له دي چي مستحق هم وي. (محمدرفعت قاسمي غفرله الله)

## دکمي ا مد ني لرونكي ته زكوة وركول :

**پوښتنه**: زمايو دوست دی چي داسي کارکوي چي آمدني ئي ډيره کمه ده، آياهغه ته زکوة ورکول کيدای شي اوکنه؟

ځواب: که هغه دزکوة مستحق وي(دنصاب خاوندنه وي) نو ضروري ده چي په زکوة ورسره مرسته وشي .(آپ کي مسائل ۳جلد ۳۹۳مخ)

## په پلاردزكوة لگولودپاره دورورواسطه كول :

**مسئله**: وروړته هغه وخت زکوة ورکول روادی چي غريب وي مگر کله خلک داسي کوي چي له هغه ځخه داغوښتنه کوي چي زه دغه زکوة تاته درکوم ته به ئي بل چالکه (پلار) ته ورکوي داکارغلط اوناسم دی ځکه چي کله وروړته زکوة ورکړشونورنوزياتي دزکوة ورکونکي له ملکيت اوقبضي وتلي دي اودابيادورورخوښه ده چي په هرځه ئي لگوي.اوکه مقصودورځخه وروړته دزکوة ورکول نه، بلکه پلارته ورکول ؤاووروړهسي وکيل ؤ ،نوبياوروړته په ورکولوسره زکوة نه اداء کيږي .(آپ کي مسائل ۳جلد ۳۹۴مخ)

## ناسَكه مور(مَيرِي) ته زكوة وركول :

**مسئله** : ناسکه مورته (هغه چي ستاپلاردوهمه ښځه کړي وي) که غريبه وي (يعني دنصاب خاونده نه وي ) اوسيده هم نه وي زکوة ورکول روادی .(فتاوی محموديه ۷جلد ۲۲۸مخ)

## خپل ناروا اولاد ته زکوة ورکول:

**مسئله**: زناکار خپل هغه بچي ته زکوة نشي ورکولای چي له زنا څخه پیدا شوی وي دغه رنګه ئي هغه بچي ته هم ورکول روا نه دی کوم څخه چي هغه انکار کړی وي. (درمختار ۲ جلد ۱۰۷ مخ)

**مسئله**: که تیرواده ورسته ترشپږمیاشتي له مخه ماشوم پیدا شو، نو هغه د شریعت له نظره حرام زاده دی، دغه ماشوم چي د هرچاله نظفي (منو) څخه پیدا شوی دی هغه نشي کولای هغه ته زکوة ورکړي، او که ئي ورهم کړي نو زکوة ئي نه دی اداء شوی.
(فتاوی رحیمیه ۲ جلد ۱۴ مخ بحواله شامي ۲ جلد ۹۴ مخ وعالمګیري ۴ جلد ۳۹ مخ)

یادونه: په ماشوم او د هغه په مورباندي دومره لوی تهمت په ناخبرئ کي ویل نه یوازي چي کبیره ګناه ده بلکه له دي څخه دلویو فتنو دراپورته کیدلو ویره هم شته نو که خدای مکړه داسي یوڅه پیښیږي، نو په اړوندئي بایدډیر احتیاط وشي. (عبدالملک حصیف)

## صرف د شیدو خوړونکي ته زکوة ورکول:

**مسئله**: کوم ماشوم ته چي تاسوشیدي ورکړی دي هغه ته هم زکوة ورکول روادی او د چاشیدي چي تاسو په وړوکوالي کي خوړلي دي هغو ته هم زکوة ورکول روادی. (امداد مسائل زکوة ۷۴ مخ)

په وړوکوالي کي د شیدو خوړلو څخه رضاعت حقیقي مورا و زوی کیدل نه ګڼل کیږي، نو ځکه زکوة اخیستل او ورکول روادی.
(محمد رفعت قاسمي غفرله الله)

## دزکوة په روپو شفاخانه جوړول:

**پوښتنه**: مونږ غواړو يوه دواخانه جوړه کړو چي دزکوة او دقربانيو د پوستکو په روپو به ئي چلوو، او له هغې څخه به هرهرڅوک ګټه اخيستلای شي، دلته بلاله ناروغانو څخه لږروپی هم اخيستلي کيږي او بيا به په ده دواخانه کي لګولي کيږي، نو آياهرڅوک کولای شي له دغه درملتون څخه ګټه واخلي او کنه؟

**ځواب**: په درملتون(دواخانه) کي دزکوة او دقرباني د پوستوکودروپو لګښت په دي ډول کيدای شي چي په دغو روپو باندي درمل واخيستل شي او په مفت(بي قيمته) ډول مسکينانو ته ورکړل شي، له دغو روپو څخه د درملتون د ډاکټرانو اونورو کارکونکو تنخواه دځای کرايه نشي ورکول کيدای همدارنګه به دغه روپی درغوني په کاراوميزونو څوکيواوداسي نوروسامانوباندي نه لګوي، اوکه په دغه رنګه ځايو کي ولګولي شوي نودزکوة ورکونکوزکوة نه دی اداء شوی. ددغه درملتون ددرملو په بدل کي له غريبانو څخه روپی اخيستل، اوشتمنو ته درمل ورکول دواړه روانه دي.

(احسن الفتاوی ۴جلد۲۸۱مخ بحواله ردالمحتار۲جلد ۲۲۸مخ وفتاوی دارالعلوم ۱۴جلد ۱۴۴مخ)

**مسئله**: که په هسپتالونوکي غريبانوته درمل په داسي ډول ورکول کيدل چي غريب ئي په پوره ډول مالک وي، نود هغو درملو قيمت دزکوة په روپو کي شميرل کيدای شي. (معارف القرآن ۴جلد ۴۰۹مخ)

**مسئله**: که يو غريب محتاج ناروغ وي او يوڅوک ورته درمل واخلي يادخوراک پاره ورته څه واخلي اوورئي کړي، نوپه دي ډول هم زکوة اداء کيږي .(مستفاداحسن الفتاوی ۴جلد ۲۸۱مخ)

## دزکوة اداء کیدلو یو صورت:

**پوښتنه**: که یو چا دزکوة روپۍ په جلا ډول په کوړکي ایښي وي خو په بهرکي له یو غریب سره مخ شو او د جیب روپۍ ئي هغه ته په زکوة کي ورکړي، نو که هغه د غو مره روپۍ دزکوة له روپو څخه ورواخلي نو زکوة به ئي اداء شوي وي او کنه؟

**ځواب**: بلي: دهغه دهغه زکوة اداء شوی دی. (آپ کي مسائل ۳ جلد ۳۷۸مخ)

## سیلاب وهلیوته زکوة ورکول:

**پوښتنه**: سیلاب وهلیوته دزکوة له روپو د پخو شوو خوراکو نو نغدو روپو او یا نورو سامانونو لیږل روا دی او کنه؟

**ځواب**: که غالب گمان داوي چي دغه خلک دزکوة مستحق دي یعني له دوئ سره دنصاب په اندازه شتمني (چي دزکوة اخیستلو او روکولو مانع ده) نه وه، نو هغوته زکوة ورکول روا دی. په دي شرط چي دوئ به ددغو شیانو یا روپو مالکان گرزول کیږي، که ددوئ ملک ونه گرزول شول بلکه دغسي وربانډي ولگول شول، نو زکوة نه اداء کیږي همدارنگه که څه پاخه کړل شي او په دوئ وخوړل شي نو هم زکوة نه اداء کیږي دمسکین په ملکیت کي دپاخه شوي شي ورکول ضروري دي. (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۹۴مخ)

دپیښو او فساد وهلیو علاقو کي بعض خلک دنصاب خاوندان وي؛ دمثال په ډول که دچا دوکان یا کارخانه په سیلاب یا بل آفت کي له مینځه تللي ده، نو په بانک کي ساتلي شوي روپۍ ئي همداسي روغي پاته دي، او یائي بل ځای، کور، ځمکه او یا بل شی وي چي دنصاب اندازه ورڅخه پوره او یا تردي هم زیات وي؛ نو دهغه رنگه

خلک شرعاً د زکوة مستحق نه دی، او زکوة ورباندي نه اداء کیږي.
همدارنگه ډیرځله په دغسي ځایوکي دزکوة روپی یامال اصل
مستحق ته نه رسیږي بلکه غیرمستحقین ئي وراخلي، نوځکه په دغه
رنگه ځایوکي احتیاط ډیرضروري دی.

## قید یا نو ته د زکوة له روپو خوراک ورکول څنگه دی؟

**مسئله**: نفلي صدقي قیدیانوته ورکول روادی خوپه زکوة کي تفصیل دادی
چي که قیدي دنصاب خاوندنه وي او هغه دخوراک پوره مالک وگرزول شي
نوزکوة اداء کیږي؛ اوکه ئي اباحةً خوراک وکړیادخوراک مالک ونه
گرزول شونوبیازکوة نه اداء کیږي. ځکه چي په زکوة کی تملیک
(دفقیرملک گرزول) شرط دی. (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۹۷مخ آپ کي مسائل ۳جلد ۴۰۲مخ)

## فوجي ته زکوة ورکول څنگه دی؟

**مسئله**: که په جگړه کي کوم مسلمان عسکر (یافوجي) زخمی شواو چاورته
دهغه دضرورت سامان دزکوة په روپو واخیست، یائي دزکوة روپی په
نغدي ډول ورکړي، نو بیاچي هرکله ددغه عسکرداحال یقیني شوچي هغه
دنصاب خاوندنه دی نوزکوة اداء شوی دی او که هغه دنصاب خاوندؤ بیانه
دی اداء شوی. ځکه چي دزکوة داداء دپاره شرط دی چي داسي یوڅوک به
ئي مالک گرزول کیږي چي دنصاب خاوند نه وي. (والله اعلم)
(فتاوی دارالعلوم ۶جلد ۲۴۳مخ بحواله ردالمحتار ۲جلد ۸۵مخ واحسن الفتاوی ۴جلد ۲۸۹مخ)

## لیږلوپه کرایه کي دزکوة روپی لگول:

**مسئله**: که څوک چرته یوڅه لیږي، نودهغه کرایه (دوړلو لگښت)
دزکوة له روپو څخه ورکول روانه دی، او په ورکولو سره ئي زکوة نه
اداء کیږي؛ ځکه چي دزکوة داداء دپاره داشرط دی چي فقیرته به

بلاعوض ورکول کيږي، نو دغه شرط په دغه صورت کي نشي پوره کيداي. (فتاوی رحيميه ۵جلد ۱۵۰مخ)

## د غو حضرا تو ته دزکوة و رکو لو سره زکوة اداء کيږي:

(۱) خپلو حقيقي (هغه چي موراوپلاردواړه ئي سره ګډوي)، علاتي (هغه چي پلارئي سره ګډاو مورګاني جلاجلاوی)، اخيافي (هغه چي مورئي سره يوه اوپلرونه جلاجلاوي)، او رضاعي (هغوته چي ديوي مورشيدي ئي سره خوړلي وي) وروراوخوردواړوته زکوة ورکول روادی، همدغه رنګه دهغواولادوته هم دزکوة ورکول روادی.

(۲) خپل تره (دپلارورور يا آکا) اوترور (دپلارخور) اودهغواولادونوته زکوة ورکول روادی.

(۳) خپل مامااواکويا خالي (دمورخور) اودهغواولادونوته زکوة ورکول روادی.

(۴) خپل ناسکه پلار (پلندر) اوناسکه مور (ميري) اودهغو اولادونوته زکوة ورکول روادی.

(۵) خپلي خواښي اوخسراوددوئ اولادوته زکوة ورکول روادی.

(۶) دشتمن (بډای) پلاراومورته (چي دزکوة مستحق وي) زکوة ورکول روادی.

(۷) دشتمن بالغ اولادته (چي دزکوة مستحق وي) زکوة ورکول روادی.

(۸) دشتمن ميرمني ته (چي دزکوة مستحقه وي) زکوة ورکول روادی.

(۹) دشتمني ميرمنی خاوندته (چي دزکوة مستحق وي) زکوة ورکول روادی.

(۱۰) خپل زوم (دلور خاوند یامیره) او مرور (د زوي ښځې) ته (چي دزکوة مستحق وي) زکوة ورکول روادی.
(۱۱) شاگرد خپل استاذ، او استاذان خپل شاگرد ته زکوة ورکولای شي، دشاگردوالي او استاذوالي تړاو دزکوة ورکولو مانع نشي کیدای
(۱۲) خاوند (میړه) دخپلي میرمني هغه اولاد ته زکوة ورکولای شي چي له بل خاوند څخه وي.
(۱۳) میرمن دخپل خاوند هغه اولادته زکوة ورکولای شي (که دزکوة مستحق وي) چي دهغه له پخوانۍ میرمني څخه وي.
(۱۴) مسافر ته زکوة ورکول هغه وخت روادی چي له هغه سره په سفر کي مال نه وي، که څه هم په کورکي ترنصاب زیات مال لري.
(۱۵) نابالغ ته دهغه وخت زکوة ورکول روادی چي پلار ئي دنصاب خاوند نه وي؛ که څه هم مور ئي دنصاب لرونکي وي
(۱۶) میرمن دخپل خاوند هغه اولاد ته چي له بلي میرمني څخه وي او دزکوة مستحق وي زکوة ورکولای شي.
(۱۷) دیو چاآمدنی سل روپۍ ده او کورهم لري خو تول لگښت ئي دري سوه روپۍ ده نو هغه ته زکوة ورکول کیدای شي، چي نور نصاب و نه لري.
(۱۸) دیو چاآمدني دلگښت دپاره کافی ده خو هغه ډیر قرضدار دی او نشي کولای چي دآمدني روپۍ دقرضو اداء کولو او دکور دلگښت پوره کولو ته ورسوي، نو هغه ته هم زکوة ورکول کیدای شي،
(۱۹) زکوة هر هغه چاته ورکول کیدای شي چي ورسره ترنصاب کم مال وي؛ که څه هم هغه روغ جوړ او گټلو ورتیا لرونکی وي.

(پورته ذکرشوي ټول که دزکوة مستحق وي نو دزکوة په روپوورسره مرسته کیدای شي، اودوئ ته داویل هم ضروري نه ده چي زه دغه په زکوة کي درکوم، بلکه صرف پخپله دزکوة نیت کول ورته کافي دی )
(محمدرفعت قاسمي غفرله الله)

پورتنئ مسئلي له (۱) نمبرڅخه بیاتر (۱۹) نمبرپوري له لاندنیو کتابوڅخه رااخیستلي شوي دي.

(امدادالفتاوی ۳جلد ۱۲مخ )

(فتاوی دارالعلوم ۶جلد ۲۳۷، ۲۳۸ مخ، ۱۹۶مخ ۲۴۵مخ ۲۴۶مخ ۲۹۲، مخ ۲۹۰مخ ۲۷۹مخ ۲۸۹مخ )

فتاوی محمودیه ۱۳جلد ۹۵مخ، ۱۰۲مخ )

(احسن الفتاوی ۴جلد ۱۲۹مخ )

(فتاوی عالمګیري ۴جلد ۳۹، ۴۰مخ )

(کتاب الفقه ۱جلد ۱۰۱۴مخ )

(طحطاوي ۴۱۹مخ )

(هدایه ۱جلد ۲۰۵مخ )

(آپ کي مسائل اور اُن کاحل ۳جلد ۳۹۴مخ )

## دغوحضراتو ته دزکوة په ورکولوسره زکوة نه اداء کیږي؟

(۱) خپل پلاراوخپلي مورته دزکوة په ورکولوسره زکوة نه اداء کیږي . همدغه حکم دنیکه اوآناترهغوروپورته نیکه ګانواوآناګانودی. هغه که دمورله خواوي که دپلار.

(۲) دخپل حقیقي زوی زوی (لمسی ) اولور (لمسی ) او کړوسواودهغواولادوته زکوة ورکول روانه ی.

(۳) خپلي مور، اودمورمور(آنا) اوپلار(نيکه) اودهغو پلرونوته تراخيره زکوة ورکول روانه دی.
(۴) دخپلي حقيقي لوراولادو(لمسواولمسيانو) اودهغو اولادوته بياتراخيره زکوة ورکول روانه دی.
(۵) دخاوندزکوة ميرمني ته، اودميرني زکوة خاوندته ورکول روانه دی.
(۶) داسي مطلقي ميرمني ته چي په عده کي وي، دهغي دخاونددپاره هغي ته زکوة ورکول نارواده دی.
(۷) دشتمن نابالغومحتاجانوماشومانوته زکوة ورکول نارواده دی.
(۸) دشتمني کونډي (چي دنصاب لرونکي وي) نابالغو ماشومانوته زکوة ورکول نارواده دی.
(۹) دمدرسي اوستاذاودمسجدامام ته زکوة په تنخواه کي ورکول نارواده دی.
(۱۰) دحضور صلی الله عليه وسلم کورنۍ والو(سيدانو) ته زکوة ورکول روانه دی، که له دوئ څخه څوک غريب شي نوبايدله بلي لاري ورسره مرسته وشي.
(۱۱) شتمن (دنصاب خاوند) ته زکوة ورکول روانه دی.
(۱۲) دزکوة روپۍ دمدرسي، مسجد، عبادتخاني، مسافرخاني، يتيمخاني، ښوونځۍ شاه راه په جوړولو، اود ځاګانواوويالوپه کندلوکي لګول روانه دی.
(۱۳) دزکوة روپۍ دمړي په کفن لګول، اويادهديري دپاره ورباندي ځمکه اخيستل روانه دی.
(۱۴) هغه ټول صورتونه چي پکښي زکوة دچاملک نه ګرزي دزکوة مصارف (لګښت ځايونه) نه دي په پورتنيو
۱۴ مسئلو کي ته لاندي کتابو څخه استفاده شوي ده:

(معارف القرآن ۴ جلد ۴۱۲ مخ)
(فتاوی دار العلوم ۶ جلد ۲۱۲ مخ ۲۱۳ مخ ۲۳۸ مخ ۲۹۲ مخ ۲۸۲ مخ ۳۹ مخ)
(احسن الفتاوی ۴ جلد ۳۲۹ مخ ۴۲۹ مخ)
(کتاب الفقه ۱ جلد ۱۰۱۴ مخ)
(درمختار ۱ جلد ۱۴۱ مخ)
(فتاوی محمودیه ۱۳ جلد ۸۷ مخ)
(آپ کي مسائل اوان کاحل: ۳ جلد ۵۰۴ مخ ۳۹۰ مخ)
(عالمګيري ۴ جلد ۳۹ مخ)
(امداد مسائل زکوة ۷۲ مخ ۷۲ مخ)

## د قرض په نوم زکوة ورکول څنګه دی؟

**پوښتنه**: یو مستحق ته زکوة ورکونکي په څه وجه وویل چي دغه روپۍ قرض درواخله، او حال داؤچي دزکوة په نیت ئي ورکړي وي اودبیاغوښتلو امیدئي نه لاره نو آیا زکوة به ئي اداء شوی وي او کنه؟

ځواب: په پورتني صورت کي چي زکوة ورکونکي دزکوة په نیت دغه روپۍ مستحق ته ورکړي دي او بیائي دعوی نه لري، خو مستحق ته ئي دقرض وویلي دي، دهغه زکوة اداء شوی ی. په فتاوی عالمګیري کي لیکلي دي چي که مسکین ته په زکوة کي ورکوم، نود په ډول هبه کړي اوخپل نیت ئي داؤچي دغه زه مسکین ته په زکوة کي ورکوم، نود هغه زکوة اداء شوی دی. (فتاوی رحیمیه ۳ جلد ۱۱۲ مخ بحواله عالمګیري ۱ جلد ۱۷۱ مخ)

**مسئله**: زید بکر ته سل روپۍ دزکوة په نیت ورکړي، خو له دي امله ئي ورته دزکوة نوم یاد نه کړي چي دزکوة اخیستل عیب ګڼل کیدی، او ورته وئي ویل چي ته په دغو روپو خپل کارکوه، هر کله چي

تاته خدای جل جلاله درکړي هغه وخت ئي بیاماته راکړه دوه کاله
وروسته بکر بیرته هغه روپۍ زید ته ورکړي، نوزید ته
دهغو روپو اخیستل روانه دی ځکه چي زید خو په زکوة کي ورکړي
وي بلکه پري لازمه ده چي بیرته ئي بکرته ورکړي. که بکرته ئي
دانشوای ویلای چي هغه خو مازکوة درکړې ؤ، نو بیادي ورته ووائي
چي ماقرض درته وبخښلی او یادي بیرته د تحفي یاهديي په ډول
ورکړي. (احسن الفتاوی ۴ جلد ۲۲۴ مخ و فقه الزکوة ۲ جلد ۳۲۹ مخ)

## دزکوة روپۍ په کوم بل عنوان غریب ته ورکول:

**پوښتنه**: آیا دزکوة ورکولو پروخت مستحق ته داویل چي دغه زکوة دي
ضروري ده او کنه؟

**ځواب**: دزکوة ورکولو په وخت داویل ضروري نه دی چي دا زکوة
دی، صرف هغه نیت هم ورته کافي دی چي دزکوة ورکونکي په زړه کي
دی، همدارنګه که مستحق ته داوویل شي چي دغه تحفه ده یاهدیه ده
خو نیت ئي دزکوة وي نو هم زکوة اداء کیږي. (فتاوی رحیمیه ۲ جلد ۱۳ مخ و علم الفقه ۴ جلد ۴۵ مخ)

**مسئله**: د چاوروړ غریب دی، د نصاب مالک نه دی (یعني اوه نیمي
تولي سره زر یادوه پنځوس نیمي تولي سپین زر یاد هغو قیمته ورسره
نشته) نو هغه کولای شي زکوة ورکړي. (شامي ۲ جلد)

**مسئله**: کولای شئ چي دزکوة روپۍ وروړ، وریندارئ او بچوته
د تحفي، هبي، عید مبارکي او شاباسی په نومونو ورکړئ (په دې شرط چي
مستحق وي او نیت مو دزکوة وي) (فتاوی عالمګیري ا جلد ۱۷۱ مخ و فتاوی رحیمیه ۵ جلد ۱۵۳ مخ)

**مسئله**: دزکوة مستحق هغه څوک دی چي ورسره ترحاجت اصلي
او ضروري زیات دومره څه نه وي چي قیمت ئي له دوه پنځوس
نیمو تولو سپینو زرو سره برابر شي. دغه رنګه څوک که دزکوة

ایستلو ته مجبورشو ،نو ایستی ئي شي. که زکوة ایستونکي ته داویل چي دا زکوة دی دحال او وخت په لحاظ مناسب نه ؤیا زکوة اخیستل بدګڼل کیدل نو دتحفي او هدیي په نوم هم ورته ورکول کیدای شي .خو دهغه چا تحقیق چي دایي معلومه نه وي چي زکوة حقداردی او که نه باید په پټ ډول وشي .(فتاوی رحیمیه ۵ جلد ۱۲۲مخ).

**مسئله** : خپلو خپلوانو او دهغو ماشومانو ،او یابل هغه مستحق ته چي دخه شي دزیري خبرئي راوړی وي انعام او شاباسي په ډول زکوة ورکول روادی (په دي شرط چي د زکوة په نیت ورکړل شي ) دغه رنګه که دعید ،ښي ښپي او نوروورځو دخوشحالي په مناسبت مستحقینو ته دزکوة په نیت څه ورکړل شي نو زکوة اداء کیږي. (فتاوی عالمګیري ۴ جلد ۴۱مخ)

**مسئله** : که یو چابل چا ته ظاهراً دانعام په نوم څه ورکړل ،خو نیت ئي دزکوة ؤپکښي ،نو هم زکوة ئي داء شوی دی .(بهشتي زیور ۳ جلد ۲۸مخ بحواله شرح التنویر ۱ جلد ۱۴۲مخ)

**مسئله** : چا ته چي زکوة ورکول کیږي هغه ته ددي وربنوول ضروري نه دی چي دا زکوة دی ،البته دا ضروري ده چي هغه باید دزکوة له لګښت ځایونو څخه وي .(فتاوی دارالعلوم ۲ جلد ۹۰مخ بحواله ردالمحتار ۲ جلد ۱۲مخ)

**مسئله** : خپل عزیز غریب ته هم دزکوة په ورکولوکي دا ضروري نه ده چي ورته وښوول شي چي زه تا ته دغه په زکوة کي درکوم ،بلکه دتحفي او هدیي په نوم خپل زکاتونه او صدقي دوئ ته ورکړئ ،تر څو شریفو او نیکانو خلقو ته دخپلي کهتری احساس ونشي (معارف القرآن ۴ جلد ۴۱۲مخ آپ کي مسائل ۳ جلد ۳۹۸مخ)

**مسئله** : دغه رنګه خپلوانو ته په زکوة ورکولو سره دوه ثوابونه ګټل کیږي یو دزکوة ورکولو بل دصله رحمي . (مشکوة شریف ۱ جلد ۱۷۰مخ وفتاوی دارالعلوم ۲ جلد ۱۳۲مخ ودرمختار ۲ جلد ۳۵۳مخ)

## شتمن ته د هغه شي استعمال چي دغريبي په زمانه كي په زكوة كي وركړل شوى وي:

**پوښتنه**: له ما سره دزكوة او سود روپي دي او زما يو زوم دى چي ډير غريب او قرضدار دى نو آيا زه دغه روپي هغه ته وركولاى شم او كنه؟
او كه هغه وروسته تر كور جوړولو شتمن شي، نو بيا ورته په دغه كور كي اوسيدل روادى او كنه؟

**ځواب**: كه ستاسو زوم (دلور ميړه) غريب وي، نو تاسو ورته خپل زكوة وركولاى شئ او هغه په دغو روپو دكور بيا رغونه هم كولاى شي.. او كه هغه په نژدي راتلونكي كي ياډير وخت وروسته شتمن شي، نو هم ددغه كور استعمال ورته روادى، ځكه چي همدا اوس (دزكوة اخيستلو په وخت) خو هغه غريب دى. (فتاوى رحيميه ۵جلد ۱۲۱مخ)

## ايا فقيرته په زكوة كي وركړل شوى شى غني ته روادى؟

**پوښتنه**: كه يو غريب ته څوك كتاب په زكوة كي وركړي، نو غني (شتمن) ته دا روا ده چي له هغه څخه كار واخلي او كنه؟
دفتاوى رشيديه له لاندنۍ مسئلي څخه دهغه نه جواز څرګنديږي.
طالبانو ته چي له كوم ځاى څخه خوراک مقرروي او له هغه ځايه ورته راوړل كيږي دهغه خوړل دنصاب خاوندته د طالبانو له رغبت سره سم روادى او كنه؟

**ځواب**: دطالبانو هغه خوراک چي ورته مقرر دى كه دواجب، لكه زكوة، كفاري، عشر او نذرنه وي، نو غني هم كولاى شي دطالبانو په اجازه هغه له دوئ سره وخوري، خو كه په هغو كي ديو دپاره خوراک مقرروي، نو بيا كله چي هغه طالب العلم څوک دهغه مالک وګرزوي

هغه وخت بیا شتمن کولای شي هغه وخوري، په دغه خوراک کي له دوئ سره ګډېدل ورته صحیح نه دی. خو ددي برعکس څومدرسولکه دیوبند، سهارنپور، مدرسه امینسي (ډیلی) دجوازفتوی ورکړي ده ،نولطفاًمودخپل تحقیق څخه خبرکړئ.

**ځواب** : دفتاوی رشیدیي مسئله پرځای اوسمه ده، که فقیر خپل دزکوة مال غني (شتمن) ته اباحةً یاعاريةً ورکړنو هغه ته حلال نه دی، خو که دهغه ملکیت وګرزول شي بیاحلال دی دحضرت ابوهریره رضی الله تعلی عنه له څخه روایت شوی حدیث شریف څخه څرګندیږي چي حلالوالی په وجه دبدلون دملکیت سره ترلاسه کیږي، نه په اباحت سره، په دغو عباراتوسربیره په هدایه ،عنایه فتح القدیراونورو کتابود فقهي شریفي کي دغه مسئله له پوره وضاحت سره راوړله شوي ده جوازورکونکو حضراتود فتوی ورکولو پروخت دغو کتابوته رجوع نه ده کړي. (احسن الفتاوی ۴جلد ۲۷۰مخ)

## زکوة ورکونکي ته دزکوة اخیستونکي هدیه قبلول څنګه دی؟

**مسئله** : که یو څوک له خپلوانو څخه یوچاته چي فقیراود نصاب خاوندنه وي زکوة ورکوي؛ اوبیازکوة اخیستونکي (فقیر) هغه زکوة ورکونکي ته څه شی په هدیه کي ورکوي، نوقبلول ئي روادی. (فتاوی محمودیه ۷جلد ۲۴۹مخ)

## دزکوة روپۍ که غلوواخیستي

**پوښتنه** : یوچادزکوة روپۍ جلا په بټوه کي ایښي وي چي ترزکوة اداء کولوله مخه ورڅخه غلاشوي یاپه بل ډول ضائع شوي نودهغه زکوة اداء شوی دی اوکه به ئي بیااداء کوي؟

**ځواب**: په پورتني صورت کي نه زکوة اداء شوی دی او نه ساقط شوی دوهم ځل به بیا زکوة اداء کوي .(فتاوی رحیمیه ۲جلد ۱۴مخ وفقه الزکوة ۲جلد ۳۷۴مخ)

**مسئله** : که هغه روپۍ له چاڅخه ورکي شوي ،اویائي یوځای ایښي وي او هغه ځای ورڅخه ورک شو یاغلو پټي کړي ،نو دغو مره روپۍ به دهغو پرځای په زکوة کي ورکوي .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۹۲مخ وفتاوی محمودیه ۱۱جلد ۱۴۸مخ)

## دزکوة روپۍ دپوستخاني یابانک له لاري لیږل:

**مسئله** : دزکوة روپۍ دپوسټ خاني یادبانکي خاني (مسودي) له لاري هم لیږل کیدای شي ،ځکه چي مجبوري ده ځکه چي نه دغه رنګه بدلون څخه په زکوة باندي هیڅ اثرنه لویږي ،خو دپوسټ خاني او بانک په لګښت کي دزکوة روپۍ نشي لګول کیدای. (فتاوی رحیمیه ۵جلد ۱۲۴مخ)

**مسئله** : مګر دډاکخاني اوبانګ لګښت به په جلا دول روکوي (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۳۳۵مخ)

**مسئله** : دپوسټ له لاري دزکوة په لیږلو کي هیڅ منعه نشته صَرف دمدرسي مهتمم صاحب ته ولیکئ چي دادزکوة روپۍ دي دي سره ستاسوزکوة اداء کیږي .(فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۱۰۱مخ وفتاوی محمودیه ۷جلد ۲۵۹مخ)

او که موبل کوم مستحق ته زکوة لیږونودا ورسره مه لیکئ چي دازکوة دي ،ځکه چي دزکوة په لفظ سره مستحق دشرم احساس کوي .صرف پخپله ورته دزکوة نیت وکړئ بس همدغه نیت ورته کافي دی .مګرمدرسواوښوونځایوته ځکه خبرورکول ضروري دی چي دوئ پوه شي اودزکوة روپۍ په مناسب ځای ولګوي .(محمدرفعت قاسمي رحمة الله علیه)

## که دپوسټ له لاري لیږل شوی زکوة ونه رسیدی:

**مسئله** : که یو چادپوسټ خاني له لاري چاته دزکوة روپۍ ولیږلي خو هغه ونه رسیدلي ،نودزکوة لیږونکي زکوة اوفطري نه دی اداء

شوی، ځکه چې ډاک خانه دلیږونکي وکیله ده، دهغه چاوکالت ورسره نشته چې زکوة ورلیږل کیږي. (کفایت المفتي ۴جلد ۲۷۹مخ)

**مسئله** : له رجسټراونوروڅخه دنه ترلاسه کیدلوپه صورت کې دزکوة دغومره برخه بیا اداء کول ضروري دی. (فتاوی دارالعلوم ۲جلد ۸۹مخ بحواله الدرالمختار ۲جلد ۱۵مخ)

## په زکوة کې ورکړل شوی شی بیرته اخیستل :

**مسئله** : که یو چاد کتابو په زکوة کې مسکینانوته کتابونه ورکړل اوبیائي په تاجرانه قیمت ددواړو په خوښه وزڅخه بیرته واخیستل، نودغه بیعه (خرڅول) بالکل صحیح دی او که له نښانواوعلائموڅخه دامعلومیدله چې هغه (فقیر) زما په خاطردغه قیمت قبول کړنوبیائي په اخیستلوکې کراهت شته. (امدادالفتاوی ۲جلد ۵۷مخ)

**مسئله** : تایوفقیرته څه په زکوة کې ورکړل اوهغه غوښتل چې وئي پلوري، نوبهتره داده چې ته هغه ورڅخه مه اخله، ځکه چې ښایي هغه ستامراعت ورکړي. (تعلیم الدین ۴۵مخ وفتاوی محمودیه ۷جلد ۲۵۱مخ بحواله ابوداؤد ۱جلد ۲۲۵مخ)

## که غیرمستحق ته زکوة ورکړل شو:

**مسئله** : که یوچابل چاته په دې خیال چې دغه ډیرغریب اودزکوة مستحق دی زکوة ورکړ، خووروسته معلومه شوه چې هغه ئي شرعي غلام یاکافردی، نودهغه زکوة نه دی اداء شوي ځکه چې دغلام ملکیت خودبادار(آقا) ملکیت دی، اوکافردزکوة دلګښت ځای نه دی، نوځکه زکوة نه دی اداء شوی. اوکه دزکوة له ورکولووروسته ،میرمن ،یا سید ، هاشمي یاشتمن ؤ، نوبیادزکوة بیااداء کول ضروري نه دی ، ځکه چې دزکوة روپۍ یامال دهغه له ملکیت څخه

وتلی اود ثواب ځای ته رسیدلی دی. اودلګنبت ځای په تپاکلوکي چي غلطي شوي ده په هره وجه چي وي هغه ورته معاف دی.
(درمختار۲جلد ۹۲مخ معارف القرآن۴جلد ۴۱۳مخ وفتاوی دارالعلوم ۷جلد ۲۲۷مخ)

**مسئله** : که دزکوة ورکولو پروخت دزکوة ورکونکي غالب ګمان داؤچي دغه نفربه دزکوة مستحق وی، نوزکوة ئي اداء کیږي .(آپ کي مسائل ۳جلد ۳۹۸مخ)

**مسئله** : که له یوچاسره داشک ؤچي فلاني ته زه زکوة ورکوم خونه پوهیږم چي هغه به شتمن وي اوکه غریب ، نو ترڅوچي ئي دهغه تحقیق نه وي کړی زکوة دي نه ورکوي ، اوکه ئي بي تحقیقه ورکړ،نوبیادي خپل ګمان ته وګوري که غالب ګمان داؤچي دغه نفرچي مازکوة ورکړی دی غریب دی نوزکوة ئي اداء شوی دی،اوکه غالب ګمان ئي داؤچي هغه مالداردی نوزکوة ئي نه دی اداء شوی ،بیابه ئي اداء کوي،اوکه له ورکولو وروسته معلومه شوه چي هغه غریب دی،نوبیائي دراګرزولو ضرورت نشته .(شامي،امدادمسائل زکوة ۷۴مخ)

****************************************

اللهم اجعل هذالي زاد الآخرة واصبُب سجال
عفوك علی ذنوبي ومن علی باصلاح عیوبي
واختم بالخیراجلی واجعلني من
الأخیارالمرزوقین ط آمین ...

## دلاس ته راوړلو ځایونه

- په خپله مکتبه رشیدیه کویټه
- مکتبة العرفان کانسي روډ کویټه
- مکتبه محمدیه کانسي روډ کویټه
- مکتبه نورالقرآن پښتون اباد خدایداد چوک کویټه
- اسلامي کتاب گهر ستهلائټ ټاؤن گول مسجد
- کلیم استهشنرز مسلم باغ
- مکتبه نشرالقرآن نعیم مارکیټ قلعه سیف الله
- مکتبه عبدالعزیز ژوب
- مکتبه شاه محمد ژوب
- جدید کتب خانه وانه
- الفریدي کتب خانه خانوزئي
- مکتبه محمودیه نزدډاکټر نسیم کلینیک پښین
- مکتبه اسلامیه پښین
- مکتبه رشیدیه لورلائي
- مکتبه سراج الدین دکی
- طالب جنرل سټور دکی
- ضیاء القران کتب خانه بوغره روډ چمن
- مکتبه حقانیه بوغره روډ چمن
- اسلامي کتب خانه تاج میر روډ چمن
- مکتبه علوم اسلامیه تاج میر روډ چمن
- دارالاخلاص محله جنگي پیښور
- مکتبه غفاریه ارگ بازار قندهار
- مکتبه رشیدیه سنگین بازار هلمند

